# په افغانستان کي مهمي

## تاريخي پېښي


مؤلف

م، ج «سيال» مومند



چهاپونکے

يونيورسټي بُک ايجنسي

خيبر بازار ـــــــ پېښور

# په افغانستان کې مهمې

## تاریخي پېښې

مؤلف: م. ج «سیال» مومند

چاپوونکی

یونیورسټي بک ایجنسی

خیبر بازار ــــــ پېښور

# دکتاب پېژندنه


دکتاب نوم : په افغانستان کې مهمې تاریخي پېښې

مؤلف : م . ج «سیال» مومند

دچاپ کال : ۱۹۸۹ع

خپرونکی : یونیورسټی بک ایجنسي پښاور

خطاط : خان بهادر «سرچوال»

قیمت : -/۳۰

د چاپ شمېر : یوزر ۱۰۰۰ ټوکه

# انتساب او اهداء

د افغاني مبارزینو په درانه نوم

م ج «سیال» مومند

# فهرست


| شماره | عنوان | مخ |
|---|---|---|
| ۱ | ابو مسلم خراسانی . | ۵ |
| ۲ | یعقوب صفاري . | ۶ |
| ۳ | ساماني دولت . | ۸ |
| ۴ | غزنوي دولت . | ۹ |
| ۵ | سلطان محمود . | ۱۱ |
| ۶ | سلطان مسعود . | ۱۳ |
| ۷ | دغزنويانو دوره . | ۱۹ |
| ۸ | علاؤالدين جهانسوز . | ۲۳ |
| ۹ | غياث الدين غوري . | ۲۹ |
| ۱۰ | شهاب الدين . | ۳۲ |
| ۱۱ | طاهري دولت . | ۳۸ |
| ۱۲ | هخامنشي دولت . | ۴۳ |
| ۱۳ | يوناني دولت . | ۴۹ |
| ۱۴ | مقدوني سكندر . | ۵۳ |
| ۱۵ | يونان باختري دولت . | ۵۷ |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۶ | کوشاني دولت. | ۶۱ |
| ۱۷ | کوشانیان تر یفتلیانو پورې. | ۶۲ |
| ۱۸ | یفتلي دولت، | ۶۹ |
| ۱۹ | ساساني دولت. | ۷۲ |
| ۲۰ | د عربو استیلا. | ۸۰ |
| ۲۱ | د اسلام پیغمبر صلی الله علیه وسلم | ۹۲ |
| ۲۲ | امویان . | ۹۴ |
| ۲۳ | عباسي دولت. | ۹۹ |
| ۲۴ | په افغانستان کې د عربو نفوذ. | ۱۰۱ |
| ۲۵ | د افغاني ولس پاڅون او د اموي دولت له منځه وړل. | ۱۲۳ |
| ۲۶ | د مغلو یرغلونه. | ۱۲۶ |
| ۲۷ | چنگیزخان. | ۱۳۲ |
| ۲۸ | د مغلي دولت تشکیل. | ۱۴۰ |
| ۲۹ | د مغلو فتوحات. | ۱۴۲ |
| ۳۰ | په منځنۍ آسیا کې د مغلو حملې. | ۱۴۶ |
| ۳۱ | په افغانستان کې د مغلو یرغل. | ۱۵۰ |
| ۳۲ | په افغانستان کې د مغلو اداره. | ۱۸۶ |
| ۳۳ | امیر تیمور. | ۱۹۱ |
| ۳۴ | تیمور څوک و. | ۱۹۳ |

| | | |
|---|---|---|
| ۳۵ | د تیمور فتوحات . | ۲۰۰ |
| ۳۶ | د تیمور یرغل او د افغاني ولس مقاومت . | ۲۰۷ |
| ۳۷ | د تیمور مرګ. | ۲۱٤ |
| ۳۸ | دخارجي دولتونوله خوا د افغانستان تجزیه . | ۲۱۹ |
| ۳۹ | افغانستان او شیباني دولت. | ۲۲۱ |
| ۴۰ | افغانستان او د ایران صفوي دولت. | ۲۲۳ |
| ۴۱ | د هند بابري دولت . | ۲۲۵ |
| ۴۲ | د رو بنانیانو مبارزه . | ۲۴۴ |
| ۴۳ | د هوتکي دولت تأسیس. | ۲۴۹ |
| ۴۴ | د هوتکو دولت. | ۲۵۷ |
| ۴۵ | د ایران فتحه . | ۲۶۵ |
| ۴۶ | په قندهار کې د غلجو حکومت. | ۲۸۷ |
| ۴۷ | په هرات کې ابدالي حکومت . | ۲۹۳ |
| ۴۸ | د هرات د حکومت سقوط . | ۳۰۴ |
| ۴۹ | د نادر افشاري دولت . | ۳۱۶ |
| ۵۰ | نادر څوک وو . | ۳۱۶ |
| ۵۱ | افغانستان د (۱۸) پېړۍ نه تر (۲۰) پېړۍ پورې. | ۳۲۹ |
| ۵۲ | د احمد شاه سلطنت . | ۳۳۲ |
| ۵۳ | د احمد شاه وفات. | ۳۵۲ |

| | | |
|---|---|---|
| ۵۴ | د تیمور شاه حکومت . | ۳۵۳ |
| ۵۵ | د تیمور وفات . | ۳۶۱ |
| ۵۶ | د زمان شاه سلطنت . | ۳۶۳ |
| ۵۷ | د شاه محمود سلطنت . | ۳۶۸ |
| ۵۸ | د شاه شجاع سلطنت . | ۳۷۳ |
| ۵۹ | د شاه محمود بیا سلطنت . | ۳۸۲ |
| ۶۰ | د ابدالي دولت په وخت کې ټولنیز حال . | ۳۹۹ |
| ۶۱ | په افغانستان کې انګلیسي سیاست . | ۴۰۰ |
| ۶۲ | هند ته د انګریزانو راتلل . | ۴۰۳ |
| ۶۳ | د رنجیت سنګ پادشاهي . | ۴۰۹ |
| ۶۴ | د رنجیت سنګ مرګ . | ۴۱۱ |

بسم الله الرحمن الرحيم

# سريزه

تاريخ د يو قام آئينه گڼلی شي او ځيني عالمان خو وائي چې تاريخ د قوم حافظه ده. نو په دی حساب که سړی د افغان ننګیالی او میړني ملت تاریخ وګوري. نو ضرور به د دې ملت شهامت، غیرت، حمیت شجاعت او قوي اراده او پوخ عزم ور ښکاره شي او د براعظم ایشیا په زړه کې چې دا قوم تل د تاریخ په قلمرو کې هر وخت او هره زمانه د پردو د تاړاکونو یرغلونو او ظلم او ستمونو سره مخامخ شوي دي او د هر زورګیر تیری کونکي په مقابل کې یې مقاومت او رشادت او خپله میړانه یې ښودلې ده نو په ربښتیا او په حقه دا قوم د ستاینې ور دی ما په دې کتاب کې کوښښ کړی دی چې د دغو لوستونکو ته یو اځې او یواځې د پردو د یرغلونو او چپاوونو او د دې ننګیالی ملت دفاع او مقاومت او د آزادۍ او خپلواکۍ په لار کې د دوی مبارزه او مجادله او د خپل وطن سره مینه او علاقه او د خپلې خاورې

د تمامیت او خپل ملي حاکمیت سره اړیکي وښایم او درانه لوستونکي په دې پوه شي چې دې قوم تل او هر وخت د زورګیرو مخنیوی کړی دی او د هر زورګیر په مقابل کې جنګېدلي دي او قربانۍ او فداکارۍ یې ورکړي دي او خپل وطن او خاوره یې د پردو یرغلګرو نه ساتلې ده او دا د تېرو زمانو یادله دې کبله شوی دی چې محترم لوستونکی پوه شي چې د دې قوم مقاومت او د آزادۍ مبارزه یواځې په دې زمانه کې د روس د زورګیرۍ او یرغلګرۍ په مقابل کې نه ده شوې بلکه په هره زمانه کې پرله پسې دې قوم خپل ملي سنت او ملي پت او عزت له پردو نه ساتلی او خوندي کړی دی د روسي یرغل د اخوږې او د غم او اندوه نه ډکه قصه اوږده او ځانله کتاب نه کتابونه غواړي او ما او نورو د رنو لیکوالو د هر یاد داشتونه را ټول کړي دي که څه وخت د روس او د هغه د ګوډاګیانو سره د افغان مسلمان ملت دا د آزادۍ او خپلواکۍ جهاد سرته ورسېده او افغاني ملت چې په خپلو پښو ودریږي نو د دې غمجنو پېښو په داستان به د هر څه ولیکل شي او د دې جهاد او جنګ نظامي ، سیاسي او اقتصادي خواوې به وڅېړل شي او د دې جنګ د ماتې او فتحې عوامل به ښکاره کړی شي او دا کار ځانله او ښه کافي وخت غواړي او په دې کتاب کې یې ځای کول بې موقع او مشکل و نو له دې امله چې دا

د آزادۍ جنګ لا خلاص نه دی او قطعي نتیجه یې لا نه ده معلومه نو موبنږه دا مهم کار بل فرصت ته پرېښودلو، که عمر وو زه او زما د وخت نور محترم لیکوال به دا کار ضرور کړي او د رښتیو لوستونکو ته به ویړې درد ناکې او زړه وړونکې او د زړه دردونکې قصې - وړاندې کړي انشاءالله او زه د لته نور د افغان ننګیالي او غیرتي او میړني مسلمان ملت د بري او برم په هیله بس کوم او د دې توریالي تمام بری او برم د لوی متعال خدای نه غواړم.

و ما توفیقی الا باالله علیه توکلتُ و الیه اُنیب ط

"سیال" مومند

مارچ : ۱۹۸۹ع

# هغه افغاني اشخاص چي د عربي تسلط په مقابل کښي يې قيام کړی دی

لکه قارن سوري[۱] ، نيزک ، بازان[۲] ، حبان[۳] ، سندباد[۴] ، استادسيس[۵] اذرويه ، ابرم ، ابو مسلم خراساني ، برمکي کورنۍ ، د ال سهل کورنۍ حمزه ، طاهر ، او يعقوب او نور دي

---

(۱) ـ دا د سوري کورنۍ يو نامتو شخص وو.

(۲) ـ بازان د مرو او د « اوسني بادغيس » امير وو. « مسير تاريخ ».

(۳) ـ حبان هغه څوک وو چي قتيبه سره يې مقابله وکړه او آخر قتيبه عرب آفسر ، و وژل شو.

(۴) ـ سندباد د هرات په غرب کي د يو کلي هر دانف او سيدونکی زردشتي وو او د عباسي دولت سره يې جنگونه کړي او آخر مات شو په طبرستان کي په يو کورکي خپل کوربه و وژلو او سر يې عباسي خليفه ته وليږلو.

(۵) ـ استادسيس د هرات يو بوه مشر وو چي آخر عباسيانو مرکزه « مرجيله » د هغه لور چي هارون الرشيد ښځه او مامون د هغې ځوی و.

# ابومسلم خراساني:

اصلي نوم یې عبدالرحمن وو او په ۷۲۰ میلادي د سفیدنج «سپیدمن» په کلي کې چې دابنار «وسنی سرپل» د مقابل ته وو چې د افغانستان په شمال کې د جوزجان په ولایت کې واقع دی پیدا شوی دی تحصیل یې کړی وو په عربو پوهیده، منځ ومیانه ونه یې وه او غنم رنګه جذابه څېره یې لرله او زړور سړی وو ده د عربي حاکمانو د استبداد په مقابل کې پاڅون وکړو او په «۱۲۹» هـ برابر «۷۴۶ م» په پنځم د رمضان په مرو کې د اموي خلافت نه په بغاوت لاس پورې کړ او په «۷۴۷ م» کې یې مرو آزاده کړه او تر «۷۴۸ م» پورې یې ټول افغانستان د امویانو نه آزاد کړو او په «۷۵۰ م» کې یې کوفه ونیوله او د عباسي کورنۍ پټ غړی یې د بند نه راخلاص کړو، چې دوه ورونه وو، عبدالله سفاح یې د عباسي خلافت لومړی خلیفه وټاکلو او بل ورور یې منصور دوانیقي چې ور سره وو او وزیر یې ورسره ابوسلمه جعفر همداني مقرر کړو او اموي ورستنی خلیفه یې «حمار» د تېښتې په وخت کې چې مصر ته تللو په ذات السلاسل کې ونیولو او ووژل شو او هم دلته د اموي کورنۍ د خلافت خاتمه وشوه[1]. او عباسي-

---

(۱)- اموي دولت په «۶۶۱ م» کې د خلفاء راشدینو نه پس منځ ته راغی، د خلفاء راشدینو زمانه «۳۰» کاله وه.

خلافت منځ ته راغی - په (۷۵۳م)، کې ابومسلم د حج بیت الله د پاره ورغی سفاح لاژوندی و ورېنه استقبال وکړ و خو د حج په ورځو کې سفاح مړشو او ورور یې منصور د وانیتی په (۷۵۴م)، کې خلیفه شو او مخه په دغه کال ابومسلم مبلمه کړ و او پچل دربار کې یې ووژلو.

# په افغانستان کې صفاري دولت

## د ۸۷۲م نه تر ۹۱۰م پورې

## یعقوب لیث صفاری

دا ځوان د سیستان د یو کلي قرنین او سیدونکی ووا او په زرنج کې د یو مس گر سړي د ورځې په نیم درم مزدور وو او بیا د عیارانو د ډلې سړی یو ځای شو بیا د دلته د عابنکاره شوې په دغه وخت کې د اموي خلافت د نارضایانو نه په افغانستان کې د وه-مهمې ډلې چې یوه د مطوعه په نوم وه او بله ډله د عیارانو په نوم مشهوره وه موجودې وې د ایرو ول حزبی تشکیلات وو او کله ناکله به یې لارې هم وهلې د دغه ولرا وسیني اثار دافغانستان په نورو ځایونو کې هم را پیدا شوي دي لکه په قندهار کې د

«ځوان» په نوم او په کابل کې د کاکه نوم دوست بچه اذر، بچه بهائی، پیرو
بچه ادی، کاکه طلا کاکه نقره کاکا شکور، میرزا عبدالعزیز، لنګر زمین
صرفي غني او په کابل کې نورې داسې ځوانې دلې وې د کابل کاکه
ګانو په پاین چوک شور بازار، او چنداول کې او مرادخانه کې ډېرې
وې او دلې یې لرلې. دوی به مخصوص پټکی ترل شمله به یې آن
د پښو پورې زنګېدله، او د دوی بقایا او اثار تر شلمې پېړۍ پورې
وو. خبره بل پلو لاړه اصل بحث دا و چې یعقوب لومړی د عیارانو
په ډله کې شامل وو او ښه قدرت یې وموندلو خو هر څه به یې
چې پیدا کول پخپلو ملګرو به یې خرڅ کول. ښه رسوخ یې پیدا کړ
آخو دی ای صالح سره وجنګېد او صالح یې مغلوب کړو، په
«۸۵۸م»، کې درهم بن نصر سیستانی چې د صالح مطوعه یو افسر وو
د سیستان امیر شو او یعقوب یې سپه سالار شو د وه کاله پس په
«۸۶۰م»، کې یعقوب درهم بن نصر د امارت نه خلع کړو او پخپله یې
د امارت اعلان وکړو. او اخر په «۸۷۸م»، کې وفات شو د افغانستان
متمرکز کړو او لومړی بادشاه وو چې د عباسي خلیفه سره به یې په
خطبه کې نوم یو ځای یادېدلو او په دغه کال «۸۷۸م»، کې یې
ورور عمرلیث بادشاه شو د دې کورنۍ سلطنت تر «۹۲۳»، یا اخر
د لسم قرن پورې دوام وکړو.

# د افغانستان ساماني دولت

## د ۸۹۲ نه تر ۹۹۹ پورې

د سامان کورنۍ د بلخ او سیدونکې وه او په زردشتي دین وه. سامان خدا د دې کورنۍ مؤسس او د بلخ دلویانو نه وو او د بلخ حاکم وو د خراسان عربي والي «اسد» داتم قرن په نیمائي کې د سامان سره اشنا او دوست شو او سامان د هغه په تلقین مسلمان شو او د خپل ځوی نوم یې اسد کېښود. د سامان زامن لایق سړي وو په نهمه پېړۍ کې د عباسي خلیفه مامون په وخت کې د ماوراالنهر او هرات حاکمان مقرر شو د هغوی نه نوح په سمرقند او احمد په فرغانه او الیاس په هرات کې حاکم مقرر شو ابراهیم د الیاس ځوی وروسته د طاهري دولت سپه سالار شو. احمد په فرغانه کې په «۸۷۴» کې مړ شو او ځوی یې نصر یې په سمرقند کې حاکم شو او د نصر ورور اسمعیل په بخارا کې حاکم شو او دا سړی وو چې د ساماني حسابي دولت اساس یې په «۸۹۲م» کې کېښود خو په «۹۹۹» کې پایتخت ترک ایلک خان ته تسلیم شو او ساماني دورد هدلته ختم شو. او امیر عبدالملک دوم ساماني بادشاه د

ایلک خانیه ور و په بند کې مړ شو او سامانیانو قصه هم د لته د تاریخ پاڼو ته وسپارله شوه .

# د افغانستان د غزنویانو دولت

## د ۹۶۲ نه ۱۱۴۸ میلادي پورې

الپتګین د سامانې د ربار یو ترکې زبې غلام وُ او په شاهي ګارډ کې شامل او آفسر شو اولې وروسته په لویه رتبه - حاجب الحجاب مامور شو او په (۹۵۶م) کې د بلخ په حکومت مقرر شو او په (۹۵۹م) کال د افغانستان د شمالي ولایت والـي او د فوځ سپه سالار مقرر شو او دا په سامانې دولت کې لوړ مقام وو. په (۹۶۰م) کې عبدالملک سامانې امیر په بخارا کې مړ شو او الپتګین د هغه وزیر ابوعلي بلعمي ته وویل چې د- هغه ځوی باد شاه که خو د دربار متنفذ و امراو د هغه ورور منصور باد شاه کړه، نوې باد شاه منصور سامانې په (۹۶۱م) کال کې په الپتګین پسې بلخ ته لښکر وکړو الپتګین په خلم کې دغه لښکر ته ماتې ورکړه خو ځان یې د افغانستان زړه غزني ته ورساوه. او غزني په توره د ابوبکر ویژک د هغه ځای د حاکم نه ونیولو او په (۹۶۲م) کې هلته یې د یو محلي مستقل

حکومت تا داوکښېنود ساماني باد شاه دحکم د ماتې نه پس د-
الپتګین سره پوست او خوږ شو او د خراسان دحکومت فرمان
یې ورته راولېږلو، الپتګین په (۹۶۴م)، کې مړ شو او د غزنې-
حکومت د هغه ځوی ابراهیم ته په لاس ورغی او بیایې افسرانو
بلکاتګین او پیراتګین ته په لاس ورغی. د وی ۱۳ کاله یو په بل
پسې محلي حکومت وکړ و خوحدودیې صرف د غزنې علاقه وه ځکه چې
ګردیز کې بل محلي حکومت موجود وو.

# سبکتګین

په (۹۷۷م)، کې سبکتګین نوی مسلمان شوی دالپتګین زوم (ځوم)
حاکم شو او هم دی د غزنوی دولت مؤسس وو او د خراسان د
امیر عنوان یې غوره کړ او ژر یې ورپسې د بُست بنه ودانه صوبه
(ایالت)، هم رالاندې کړه او دغه ایالت یې د بای توز د هغه-
ځای د محلي حاکم نه ونیولو او د بست مشهور عالم او ادیب-
(ابوالفتح بستي)، چنل د بیر مقرر کړه. او ورپسې خضدار هم په-
بلوچستان کې ونیولو او په (۹۸٦م)، کې د کابل برهمن شاهانو
سره وجنګېد او د لغمان ولایت یې تر ې ونیو. او د اسلام د دین
خورول یې پیل کړه. د برهمن دولت چې لږ وږ د وه سوه

کاله د عربو او اسلام په مقابل کې جنګېدلی وو سبکتګین لمن يې تر پېښاوره وروتوله کړه . برهمن شاهان د اټک په غاړه په «ویهند» کې پاتې شوه .

په دغه وخت کې د بخارا دولت کمزوری شوی وو او دلوی خانانو لکه د فایق او سمیجور د لاس لوبونې وو کله به يې یو شان لوباوه او کله بل شان ! سبکتګین د بخارا په کومک وروپاڅېد او دغه د واړو سره وجنګېد او ماتې يې ورکړه سمیجور بندي شو او فایق وتښتېد . په (۹۹۳ م) کال کې سبکتګین هرات هم ونیولو او وروسته نیشاپور هم رالاندې کړو په دې ډول يې د افغانستان په شمول د تخار ، بلخ ، هرات ، نیشاپور ، بست ، بلوچستان ، د سند د رود تر غاړو پورې په غزنه کې زمکې رالاندې کړې او سیاسي وحدت يې تامین کړو ، په (۹۹۷ م) کې امیر سبکتګین په افغانستان کې او ساماني امیر نوح په بخارا کې مړشو .

# سلطان محمود غزنوي

## د ۹۹۸ نه تر ۱۰۳۰ میلادي پورې

سبکتګین د سلطان محمود پلار چې مړکېده نو محمود په نیشاپور کې وو او (۲۷) کلن وو هلته يې خپله بادشاهي اعلان کړه خو ورور يې اسمعیل په بلخ کې د خپلې بادشاهۍ اعلان کړی وو ـ دواړه

وروته په غزني کې سرته مخامخ شو او اسمعیل ماتې وکړه او بندي کړی شو او جوزجان ته یې واستولو. بندی وو ترڅو چې مړ شو. محمود ساماني لښکر وته په مروه کې هم ماتې ورکړه او توس یې ترې ونیولو او د بغداد خلیفه منشور لکه څنګه چې معمول وو ده ته په (۹۹۹م) کال کې رالیږی او محمود د مملکت د داخلي اداري متمرکز کولو ته په پام شو د غرجستان مرکز (افشین) یې د شاه ابونصر نه ونیولو - او د سیستان مرکز (قلعه طاق) یې د خلف بن احمد محلي امیر نه رالاندې کړو.

د شرق په محاذ محمود په (۱۰۰۱م) کې برهمنی باد شاه جیپال ته ماتې ورکړه او د ویهند مرکز یې د اباسیند په غاړه یې ترې ونیولو او پیښور یې خپل عسکری مرکز کړو او په (۱۰۰۵م) کې د ګومل په لار ملتان ته ورغی او د هغه ځای حکومت یې د اسمیلي مذهبه حاکم نه ونیولو، په (۱۰۰۷م) کې یې په پنجاب حمله وکړه په (۱۰۱۴م) کې یې تانسیر او په (۱۰۱۵م) کې یې کشمیر او په (۱۰۱۷م) کې یې قنوج فتح کړو په (۱۰۲۵م) کې د برهمن شاهانو مرکز بتهنډه (کوټ) د ستلج په چپه غاړه د منځ نه ویوړه او ګوالیار او کالنجر یې په (۱۰۲۲م) کې نیولي وو او سومنات یې هم په (۱۱۲۵م) کې فتح شوي وو. او په دغه کال مکران هم نیولی شوی وو او ری (وسنی طهران)، همدان او اصفهان په (۱۱۲۸م) کې مجدالدوله د ایلمی نه ونیول شو او د افغانستان قلمرو

د ایران د قزوین نه د شمالي هند وستان د ستلج ترغاړو رسیدلي وو. سلطان محمود آخر په ۱۰۳۰م، کې د ۵۹ کلن وفات شو محمود ښه قوي وجود لرلو او په سورلۍ او د هر ډول وسلې په استعمال کې ماهر وو که څه هم په عربي ژبه نه پوهېدلو خو د ادبي او دیني او اسلامي تاریخ نه ښه خبر وو. د محمود په دربار کې ډېر لوی عالمان، ادیبان او شاعران وو.

د محمود د وفات نه پس یې ځوی محمد د جوزجان نه غزنۍ ته راغی او د ځېلې باد شاهۍ اعلان یې وکړو او په عېش او عشرت یې شروع وکړه خو ورور یې مسعود چې په ایران کې حاکم وو وریسې راغی محمد خولامخکې د سلطان محمود افسرانو نیولی وو او د مندېش په قلعه غور کې بندي وو مسعود د اصفهان نه چې راغی، نو ځېل ورور یې محمد چې د سلطنت مدعي وو ړوند کړو او د ځېل سلطنت اعلان یې وکړو.

# سلطان مسعود

## د ۱۰۳۰ نه تر ۱۰۴۱م پورې

مسعود ښه زده کړې کړې وه په فارسي، عربي او ترکي ژبو ښه پوهېده، ښه قوي وجود یې لاره او ښه زړور واو مستبد خو

خواه او بدگمانه ، حریص او تجمل پسند سړی وو ؛ د خپل پلار د د لبار مجرب او دکار پوه اشخاص یې څوک بندیان کړه او څانه یې مال او جایداد ضبط کړه. مسعود دڅه حده پورې په د باندې سیاست کې موفق وو خو په داخلي سیاست کې پاتې وو د خپل د ربار مشران تري خفه وو او د شمال له خوا ترکانو بغاوت کولو او هرات او مرو او قرس او چغانیان به یې تالا کولو- دالتونتاش څوی هارون د خوارزم د پلوه د غزني والي د بخارا د بادشاه علي تگین په مقابل کې کمزوری وو او د مسعود د دوه رنگه پالیسي نه خفه وو او د خپل استقلال اعلان یې وکړو د مسعود خپل رعیت هم خفه وو او زیات تمایل د ماوراءالنهر د ترکانو پلو وو او دا وجه وه چې ترکمنان په افغانستان باندې حملې کولو ته زړور شو- مسعود یواځې د ترکانو په باب خطانه وه کړې د علي تگین په باب یې هم سمه لار نه وه نیولې- مسعود د مجلس وزراؤ رایې خلاف د (۱۰۳۲م)، نه پس دوه واري په هند حمله وکړه او د سرستي او هنسي قلعه گانې یې ونیولې او د هغه سالار احمد لا هکې بنارس نیولی وو. هدا رنگه یې گرگان او ساری او رمل ته هم عسکر ولیږل او په خلکو یې زور زیاتی وکړل او د رمل او طبرستان په خلکو یې یو میلون طلا، حواله کړې د مسعود د دربار وزیران لکه حسن میمنوی

د مسندرکته

او خواجه عبدالصمد او بونصر مشګان او نورو غټانو هم د مسعود د عیاشۍ او خودرائۍ نه شاکي وو ـ مسعود پخپله عیاش و او ډېر شراب به یې خوړل او د هرې علاقې حاکم به چې ورته ډېرې تحفې او هدیه رالېږله هغه به یې خوښ وو که څه هم چې د ده د رعیت د پوستکي نه به یې ورته دغه تحفې جوړولې د مسعود تاج او تخت په درې کاله کې د میلونو روپو په لګښت جوړ شوی وو چې سره طلا پکې کار شوې وه او ډېر قیمتي جواهر پکې لګېدلي وو ـ بیهقي د مسعود د دربار مورخ لیکي چې دغه تجمل او ښکلا چې ما لیدلې وه نو نور هر څه ورته هیڅ ښکارېده ـ مسعود څلور زره غلامان لرل چې د ځینو کمربندونه د سرو زرو وو او د ځینو د سپینو زرو او ځینو به یې توري مرصع په جواهرو لرلې ـ مسعود ډېر سخي هم وو او غنیمت بخښنې به یې کولې لکه یوه ورځ ابو نعیم ندیم ته یو میلون روپۍ او علوي شاعر ته یې هم یو میلون روپۍ وبخښلې او د اختر په ورځ یې عنصري ته یو زر دیناره ورکړه او سازندو ته یې (۳۰۰۰۰) دیرش زره درهمه ورکړه او مانک علي میمون چېل صاحب کار ته چې څو زره دیناره او پسونه باقي وو هغه ټول بخښش کړه خو د خلکو نه به یې په یو بهانه او بله بهانه ډېر څه اخیستل ـ په دې وخت کې د سلطان مسعود

تر شا خپل ملت ولاړ نه وو او لښکرې هم د زړه څه کار نه کولو ترکمنانو او سلجوقیانو ته هم دا حال ښه معلوم شو د - مسعود په حکومت یې حمله وکړه او مسعود ته یې پرله پسې ماتې ورکړه او د تخارستان نه ینولی تر نیشاپوره پورې علاقې د - سلجوقیانو په لاس ورغلې مسعود د غزنې نه هند ته روان - شو چې په (١٠٤١م) کې خپلو فوځیانو د اتک سره خلع او بندي کړ او سلطنت یې د مغه تره رانده محمد ته وسپاره چې د مغه نه هیڅ نشو کیدلی مغه حکومت خپل ځوی احمد ته حواله کړ و احمد لومړی کار دا وکړ وچې مسعود یې و واژه - او غزنی ته بیرته را روان شو - مودود د مسعود ځوی چې په بلخ کې حاکم وو - ورپسې راغی او د جلال آباد او پیښور په منځ لاره کې دا احمد لښکر ته ماتې ورکړه او احمد یې سره د کورنئ و واژه ، او - مودود غزنې ته راغی او په تخت کښیناست خو د غزنې سلطنت کمزوری شوی وو په (١٠٤٢م) کې سلجوقیانو په بست حمله وکړه او په پنجاب کې هم شورش وشو سلطان مودود په (١٠٤٩) کې مړ شو او په تاج او تخت باندې د شهزادګانو په منځ کې بې اتفاقي او کشمکش جوړ شو خو اخر عبد الرشید د سلطان محمود ځوی سلطنت قبضه کړ و خو زړ پوځي منصبدار طغرل عبد الرشید و واژه او ورپسې طغرل هم ووژل شو او په (١٠٥٢م) کې

فرخ زاد باد شاه شو د فرخ زاد د مرګ نه پس په (۱۰۵۸م) کښې
امیر ابراهیم باد شاه شو او دغه ځمکې چې د افغانستان نه
سلجوقیانو نیولې وې ددوی نه یې پرېښودلې او د هند ته متوجه
شو او په (۱۰۸۳م) کې دوه درې قلعه ګانې په هند کې ونیولې
خو په (۱۰۸۸م) کښې مړ شو چې (۳۶) ځامن او (۴۰) لوڼه ترې پاتې
شوې د دوی نه دویم امیر مسعود باد شاه شو چې تر (۱۱۱۴م)
پورې باد شاه وو او مړ شو په دغه کال ارسلان شاه دویم
یې په ځای باد شاه شو دغه چېل خاندان تباه کړو د دغه د
ظلم نه بهرام شاه د دغه ورور چېل ماما سنجر سلجوقي ته ورغې
سنجر په (۱۱۱۷م) کښې په غزني لښکر وکړو او ارسلان شاه
مات شو او بهرام شاه د غزنې باد شاه شو بهرام شاه د چېل
سلطنت په وخت یو تن د غوري کورنۍ یو شهزاده قطب الدین
محمد چې د چېلو ورونو نه مرور راغلی وو او په غزني کې د
استوګن وو په څه اشتباه ووژه. او په دې کار ترې د
غوري باد شاهانو کورنۍ سوريان وقارېده او د قطب الدين
ورور سیف الدین په غزني پسې لښکر وکړو او غزنی یې
ونیو او بهرام شاه هند ته وتښتېد بهرام شاه بیا په ژمي کې
چې د غور لارې واورو بندې کړې وې په غزنې لښکر وکړو
او سیف الدين غزنی ونیولو او سیف الدین یې ووژه - د

سیف الدین وور علاوالدین غوري په غزني پسې لښکر وکړ او- بهرام شاه ئې ماتې ورکړه او په (۱۱۴۸م) کې يې غزنی وران او وسېزه چې په دغه وجه ورته خلک علاوالدین جهانسوز وائي- په (۱۱۵۲م) کې بهرام شاه مړ شو او ځوی يې خسروشاه په (۱۱۴۹م) کې په- غزني کې بادشاه شو په دې وخت کې د مرکزي آسیا نه کېږدۍ نشينان راپاڅېدل او په شمالی افغانستان راتوی شول او ډېر داسې جنګونه جوړ شو ایلکخاني ترکانو د سامان دولت ځای ونیولو او سلجوقيان د غزنويانو په ځای راغلل. دا د هجرت او هجوم سلسله لا روانه وه چې د غز- ترکانو ډلې د ماوراءالنهر نه را ووتلې او سلجوقیانو ته يې ماتې ورکړه او سلطان سنجر سلجوقي يې مات او بندي کړو او په غزني پسې يې هم لښکر وکړو او د غزنويانو روستنی بادشاه خسروشاه ته يې ماتې ورکړه او هغه لاهور هند ته وتښتېد او غزنی هم د غزانو په لاس ورغی خو غوريان پسې راپاڅېدل او غزنی يې بېرته د غزانو نه ونګارکړ و خسروشاه او د هغه ځوی خسروملک په یو وړوکي حکومت په لاهور کې د (۱۲۰۱م) پورې ګذاره کوله. او هم هغلته يې خاتمه وشوه- او د غور بادشاه محمد سام سوري دی په هند کې بندي کړو او جوزجان ته يې واستاوه ترڅو چې څلور کاله پس مړ شو او د غزنوي کورنۍ چراغ هدلته خاموش او منست شو.

# په افغانستان کې دغوریانو د دولت دوره

## د ۱۱۴۸ نه تر ۱۲۱۴ میلادي پورې

سوري کورنۍ د افغانستان د ملوك الطوايفي زمانې نه دغور د ايالات حکمداري کوله او د اسلام د ظهور نه مخکې د دغه سوري کورنۍ د حاکمانو نه مشهور یو ماهویه سوري وو او چې یزدګرد ساساني پخوانی پادشاه چې د عربو نه راتښتیدلی وو ده وینولو او ویې وژلو او بیا د عربو سره یې مفاهمه وکړه او اسلام یې ومانه خو سوریانو وکړی شو چې خپل محلي استقلال څو پېړۍ نور هم وساتلی شي ، او د دوی جغرافيائي موقعيت او د هوا د سختۍ يخنۍ زور او سختۍ د تنګ راتنګ لارې د غوريانو کمکې وې چې په آسانۍ په چا حمله نشوه کولی . او د دوی ساتنه طبعي اوضاعو تامينوله .

د اسلام په دوره کې لومړی سوری افغان حکمران امیر فولاد د سوری شنسبي نفسی وو چې په اتم قرن کې د خپل ملت د پاخون سره مل شو او د اموي دولت د ظلم او زور زياتي مخه یې نیوله او د ابو مسلم خراساني سره یې مرسته ول کمکونه کول امیر کروړ د جهان پهلوان یو بل امیر د امیر فولاد ځوی د امیر

شنسب نسی او د خرنبک کړوسی دی چې ښه شاعر وو او د پښتو ژبې د حماسي اشعارو مؤسس هم دی ګڼلی شي ځکه چې م ده په (۱۳۰ هـ) کې په پښتو کې یو ښه پوخ حماسي شعر ویلی دی چې وایي:

زه یم زمری پر دې نړۍ له ما اتل نشته
په هند او سند او په تخار او په کابل نشته
بل په زابل نشته          له ما اتل نشته

ویلی شي چې امیر کروړ په (۱۳۹ هـ) کې په مندېش کې امیر[1] شو او په پښتو ادب کې خاص مقام لري.

امیر بنجي د دې کورنۍ بل شخص دی چې د اتم قرن په اخرو کې بغداد ته تللی وو او د هارون الرشید عباسي خلیفه نه یې منشور اخیستی وو او امیر سوري د دې کورنۍ دریم سړی دی چې په تاریخ کې یې نوم یاد شوی دی او د یعقوب لیث صفاري باد شاه معاصر ؤ د اغه زمانه ده چې د اسلام دین د غور علاقې ته راغلی وو او خلک مسلمانان شوي وو. د (۱۱) یوولسمې پېړۍ په لومړیو وختونو کې د غزنویانو په غور کې نفوذ وکړ او سلطان محمود د غور محلي حاکم امیر محمد سوري ونیولو خو د اغه

(۱) کتاب امیر کروړ ص ۳ د افغانستان د علومو اکاډمي کابل (۱۳۶۴ هـ.ش کال) چاپ

په ځای او حکومت یې د هغه ځوی بوعلي د هغه ځای حاکم مقرر
کړه او هغه به څه اسلحه باب چې د غورجوړ مشهوره وه د۔
غزني دولت ته په خراج کې ورکوله ۔ د غور غرونه لوړ او سخت
وو او د پردو د حملې د پاره آسان نه وو بل په غور کې ۔
د پرې جنګي قلعه ګانې وې چې په آسانه چا وهلې نشوې نو له دې
آمله د غور حکومت او ولس ګوښه او ځانله وو او د عربو
او افغانستان د مسلمانو حکومتونو د حملو او یرغلونو نه په امان
کې وو. خو د غور د خلکو په خپلو منځو کې داخلي او مذهبي
جګړې وې ځنې خلک مسلمانان شوي وو او ځینې نه وو د هغوی
په منځو کې به جګړې وې ۔ د بوعلي وراره عباس(۱) په حکومت
پاڅون وکړ و خو سلطان ابراهیم غزنوي د ۱۱ یولسم قرن په
دویم نیمائي کې دی ونیولو او بندي شو او حکومت یې د ویم
سوري محمد بن عباس ته وسپاره او د هغه نه وروسته ۔
قطب الدین حسن د محمد دوم په ځای کیناست خو د غور خلکو
په پاڅون وکړ و او په هغه جنګ جګړو کې ووژل شو عزیزالدین
حسین د ده ځوی وو چې ادیب او عالم شخص وو د غور
ټوله علاقه یې د خپلو او ۷ و ځامنو په منځ کې ویش کړه او په شمال

---

(۱) عباس مشهور په منجم وو

کې د سنجر سلجوقي سره هم ځینې مناسبات ښه کړه په دغه وخت
کې د غزنوي دولت مخ په ځوړ وو او خونده یې نه وه ـ نو ځکه
نو ځکه نیمګړی شان استقلال هم غور موندلی وو، قطب الدین
محمد د هغه ځوی او په ځای ناست لا مستقل شو او ملك الجبال
عنوان یې غوره کړه او د «فیروزکوه» ښار ده ور ساده،
او نژاره مرکز په ځای دا مرکز وټاکه ـ خو په کورنیو جنګونو
اخته شو د دوی د کورنۍ هر یو تن چې څه علاقه یې په لاس
کې وه بیلابیل د استقلال په نشه مست وو او ځانونه یې ـ
خپلواک ګڼل او د قطب الدین محمد سره مخالف وو هغه د ناکامه
د غزنی دولت ته پناه ویوړه سلطان بهرام شاه هغه ته ځای
ورکړو ـ خو لږ وروسته په څه بدګمانۍ یې هغه ته زهر
ورکړل او قطب الدین یې ووژلو او د سوري کورنۍ د
غور واکداران یې په ځان پسې راپاڅول ـ لومړی د قطب الدین
ورور سیف الدین سوري په غزنۍ حمله وکړه بهرام شاه د ـ
غزنۍ نه ووتلو د غزنوي د دولت منځختیزو ولایاتو ته
لاړ چې ژمی شو او د غور لارې د یخ نه وتړل شوې او نور
د غور امداد د غزنۍ ته نشو راتللی نو بهرام شاه بیا په غزنۍ
حمله وکړه او غزنی یې ونیولو او سیف الدین او د هغه ـ
وزیر مجد الدین ووژل او ځوړند یې کړل په دې خبره

بها والدین سام بن حسین د سیف الدین جانشین په غزني پسې لبنکر وکړو خو په لاره کې ناروغه او مړ شو. او ﷺ ځای یې علا والدین حسین بن حسین بن سام ونیولو.



# علاوالدین حسین جهان سوز

د غوري دولت حسابي مؤسس په (۱۲) قرن کې هم دا- علا والدین دی. دی د عجیبه شخصیت مالك وو متضاد صفتونه یې لرل زده کړې یې کړی وه د تاریخ او دري ادب نه ښه- خبر وو عربي یې هم زده وه او ښه شاعر هم وو. د عیش عشرت شراب او کباب، ساز او سرود شوقین وو او ورسره ښه زړور او جنګجو سړی و او قسي القلب او سفاك طبیعته وو او ورسره متکبر او چب زبانه هم وو څه وخت چې د غور د حکومت واکدار شو نو زړې په غزني پسې لښکر وکړو دا ته معلومه وه چې غزنی کمزوری او سلجوقي دولت هم د کوچیانو ترکانو په غم اخته دی. بهرام شاه علا والدین ته د صلح - مراجعه وکړه خو علا والدین و نه منله او په دریو جنګونو کې چې په زمینداور او تکین آباد او غزنی کې وشو بهرام شاه ته یې ماتې ورکړه او په (۱۱۴۸) کې علا والدین بریالی او د غزني

بنارېي را لاندې کړه او بهرام شاه وتښتېد او خپلو شرقي ولايتو ته يې پناه ورېوړه ترڅو چې په ۱۱۵۲ م، کې مرمته مړ شو.

علاوالدين د بنارونو ناوې غزنې سره داسې څه وکړه چې د تاريخ تراوسه هم ياد دي د غزنې بنارېي لوټي لوټې کړاو وېې سيزلوچي اوه (۷) شپاورځې پکې اور بل وو او د هغه وخت مورخ منهاج السراج جوزجاني وايي چې د دود له امله ورځ هم شپه وه غير د سلطان محمود او سلطان مسعود د قبرونو نورقبرونه يې هم ونړول - او وه ورځې نورې هم د غزني په کنډو والو کې علاوالدين په عيش او عشرت تېرې کړې، او دا فارسي شعرونه يې وويل؛

جهان داند که سلطان جهانم

چراغ دوره عباسيانم -

علاوالدين حسين بن حسينم

که باقي باد ملک جاودانم

علاوالدين د غزني د سون او ورانۍ نه پس چې د افغانستان د اقتصاد، علم او د هنرکان وو او د زماني نه د تمدن زانګوه د قندهار او بست په لاره بېرته غورته لاړ او د سلطان لقب يې غوره کړو د علاوالدين نه پس په ځاى ناستو شاهانو د غزني د ودانۍ بيا څه کوشش ونه کړو او د څه نه څه

غزنی بیا و دان شو څو د مغلو او چنګېز یرغل دا سې پسې وران کړ و چې د پخوانۍ مدنیت نښې نښانې یې له منځه لاړې علاوالدین چې اوس په جهان سوز مشهور شوی وو د سلجوقیانو ته هم خراج منع کړو سنجر سلجوقي په غور پسې لښکر وکړو او - علاوالدین هم مخې ته ورغی خو شپږ زره لښکر یې چې اکثر ترکان غز او خلج وو د علاوالدین نه واوښتل او د سلطان سنجر سره و دربېدل په دې د علاوالدین ښه په وښو ښېده لښکر یې مات شو او دی بندی شو خو په دې چې دېر ژبه ور شخص وو او په سلجوقي دربار کې اثر وکړو او د بند نه په دې چې سلجوقیانو د نورو کوچیانو غزانو او خوارزم شاهانو - خطره درلوده نو علاوالدین یې له بنده خوشې کړو او بېرته د فیروزکوه په حکومت مقرر کړی شو- سنجر په (۱۱۵۲م) د قراختائیانو د یرغل نه مات شو او په (۱۱۵۳م) کې د خپلو کوچیانو غزانو د ښمنانو پلاس بندي شو او سلجوقي دولت هغه لته روستی سلګۍ و وهلې، علاوالدین هم فرصت وموندلو غوري یې سره را ټول کړ او د کشي د علاقې یو زور جنګي قلعه ګانې ورانې کړې او د خپل حکومت دبدبه یې قایمه کړه ورپسې بامیان، تخارستان، ګرم سیر، زمینداور، او بست د - مرغاب د حوزې سره یې را لاندې کړه او ور سره یې غرجستان

او تولک هم وېنول خو تخارستان، بامیان او بدخشان يې چل مش وروروړې ملک فخرالدین ته ورکړه، او له دې وخته نه د بامیانو د حکمدارانو سلسله منځ ته راغله چې د خوارزم شاهانو تر نفوذه يې د وام وکړو. د ملک فخرالدین نه يې روسته ځوی شمس الدین محمد د بامیانو امیر شو او د غور د دربار نه د بلخ ولایت هم ده ته ورکړه شو. او غیاث الدین غوري اجازه ورکړه چې ملک شمس الدین دی تر رچتر چې د امارت نښه ده ودروي. او ملک بها والدین سام د شمس الدین ځوی د بامیانو د مشهورو امیرانو نه وو چې یو يې تعصبه سړي ؤ د- علماوو او پوهانو سره يې چې د هر مذهب به وو ښه گذاره او رویه کوله، امام فخرالدین رازي د ده په نوم د «بهایه» رساله ولیکله او تاج الدین زوزني د ده زماني د دربار ملک الکلام وو او جلال الدین اوراسل د ده د وخت د- حکمرانانو د مرکز قاضي او شیخ الاسلام وو د ده د حکومت دکشیر د بریدونو نه ینولی کاشغرستان پورې او ان تر غور د حدودو پورې وو. ملک بهاوالدین (۱۴) کاله حکومت و کړو او بیا يې ځوی جلال الدین علي په ده پسې اووه کاله حکومت وچلاوه خو سلطان «محمد شاه» خوارزم پرې یرغل وکړو او دی وېنولو او مړ يې کړو او د بامیانو

خزانې تالاترغه شوې او د امارت داسلسله هم دلته غوڅه شوه.

علاوالدین جهانسوز چې د نورون دروم د اول قرن د امپراتور په شان چې خپل پایتخت سپرلی وو غزنی وسپزه او غوبنتل یې چې د سکندر په شان د نور وځمکې رالاندې کړی خو په دې مطلب کې پاتې راغی او حتی چې د نورو ځمکې څه کوي چې د غورخپل لس ختیز حدودیې هم رالاندې نه کړي شوې چې په (۱۱۵۵م) کې مرگ ورته راورسید او ده د تاج او تخت سره مخه بنه وکړه او وفات شو د ده په مرگ د قرمطي فرقه دیره خفه شوه ځکه چې علاوالدین مذهبي تعصب نه لاره او دله بازي یې نه کوله ځکه خو د اسمعیلي فرقې مبلغین د ازالموت د ایران نه د ده دربار ته راغلل او سلطان علاوالدین یې احترام وکړو او دوی ته یې د تبلیغ اجازه هم ورکړه . سره د دې چې فقهاوو د ده په دې وضیعت هم د غزنویانو د پخوانی روش نه چپ وو خفه شو د علاوالدین د مرگ نه پس په (۱۱۵۵م) کې یې ځوی سیف الدین محمد د ده په ځای کښناست مخه کوشش وکړو چې د خپل پلار د ظلمونو ازاله وکړي او خلکو سره یې مینه مدارا وبنه گذاره کوله خو د فقهاوو د تاثیرلاندې وو

او مذهبی تعصب یې لاره او امریې وکړو چې د اسمعیلی فرقې مبلغین دې و وژل شي او د غورنه دې و شړل شي - په دې وخت کې غزانو د خراسان سلجوقي دولت مات کړی وو او د غزني او غور او غرجستان برید ونو ته را رسیدلي وو . - سیف الدین یې هم د فاع ته ور پاڅېد او په ( ۱۱۶۲م ) کې د مرو او د مرغاب ، او غرجستان پلو ورغی خو د جنګ په میدان کې د خپل سپه سالار ابوالعباس له خوا په شا په نېزه و واهه شو او و وژل شو سیف الدین څنګې د ابوالعباس ورور په مندېش - کې وژلی وو ابوالعباس د هغو انتقام واخیست . هغه سیف الدین - غیاث - الدین او مشهور شهاب الدین د اجیرستان د قلعه د بندي خانې نه خوشې کړه .

ابوالعباس د بیعت لاس غیاث الدین ته ورکړ و خو غیاث - الدین ابوالعباس د خپل تره د خوی سیف الدین د قتل انتقام کې و وژلو .

# د سلطان غیاث الدین زمانه

سلطان غیاث الدین سره د خپله وروره شهاب الدین محمدسام او وه کاله د چنل تره علاوالدین جهانسوز په بندي خانه کښي تېرکړي وو او په لږ معاش یې گذاره کوله ، غیاث الدین د سیف الدین د مرگ نه پس په (۱۱۶۲م) کې بادشاه شو او ورور یې - شهاب الدین محمد سام د مغه د شاهي گارد قوماندان مقرر شو ، دې د واړو ورونو د افغانستان تللي عظمت بېرته تر لاسه کړو او د چنل واک دري ځلوېښت کلن سلطنت په زمانه کښي یې د غزنوي د ورتللي د بدبه بیرته د افغانستان په نصیب کړه او افغاني عظمت بېرته په ځای شو غیاث الدین چنل ورور شهاب الدین محمد سام غوري په غزني او قندهار کښي د فوځ سپه سالار مقرر کړو او بلخ او هرات یې په (۱۱۷۵م) کښي د تاج الدین او علاوالدین سنجري نه ونیول او غزنی په (۱۱۷۳م) د غزانو نه او نیشاپور او مرو په کال - (۱۱۷۹م) کښي د خوارزم شاهانو نه بېرته احیستي وو او - غرجستان او تخارستان او سیستان او مکران او گرگان او کابلستان او گردیز هم د غور د مرکز تابع کړي وو او په کال (۱۱۷۸م)

کي ملتان او په کال (۱۱۷۹م) کي پېښور او په کال (۱۱۸۱م) کي لاهور هم فتح شوی وو او ملک شاه د خسرو ملک غزنوي ځوی د غزنويانو روستنی بادشاه[۱] هم یرغمل ونیول شوی چې په غرجستان کي ووژل شو په (۱۱۸۶م) کي پنجاب هم فتح شو شهاب الدین که څه هم د هندوستان د ګجرات په جنګ کي د بهیم دیو راۍ نه په (۱۱۷۸م) کي ماتې خوړلې وه، او په کال (۱۱۷۸م) کي بیا د دیلي سره نژدې پتهوراۍ د راجستان اوګانډی راۍ د دیلي چي دوه لکه لښکر، درې زره پیلان یې درلودل غوریانو ته ماتې ورکړې وه، خو په کال (۱۱۹۱م) کي شهاب الدین بیا پتهوراۍ د راجستان او ګاندي راۍ د یلي والاته چي درې لکه لښکرې درلودل ماتې ورکړه او په کال (۱۱۹۲م) کي بنارس د چیچن راۍ نه ونیولو او په کال (۱۱۹۵م) کي تر اګره پورې یې سرقیات او مخکي تګ وکړو چي روسته قطب الدین ایبک د غور والي دیلي ونیو او د غلته یې پایتخت جوړ کړ. همداړول یې قنوج او نهروالة او بدایون او نورځایونه ونیول او د سلطان غیاث الدین په نوم خطبه د خذر د بحیرې نه ترجنا تر غاړې او د جیحون نه تر بلوچستانه پورې ویل کېدله؛ او د دې نه

---

(۱) ملک شاه په غرجستان کي ووژل شو (۱۱۸۲م).

ر وروسته مسلمان افغاني دولتونه لکه قطبیسی، شمیسی، غیاشیې خلجیسی، تغلقیې، خضرخانیې، لودي او سوري او کرلاني دولتونه یو په بل پسې د هند په بېلا بېلو علاقو کې منځ ته راغلل چې د دغه لوی ملک په تاریخ او تمدن او فرهنګ کې ډېر اثر پرېښود او شین پېړه د دغه لوی ملک په تاریخ کې یې نوې پاڼې ور ډېرې کړې. د غور د دولت نور دوره ډېر شوی وو چې ویلی شي د تکش خوارزم شاه د مرګ نه وروسته سلطان محمد خوارزم شاه د منهاج السراج مورخ په قول سلطان غیاث الدین - شهاب الدین غوري ته پیغام راولېږه چې ما په ځېل ځوی ولې؟ قبول کړې یعنې ځېلوي راسره وکړه او که دا نه وي نو زما مور دې سلطان غازی شهاب الدین په نکاح واخلي او مادې په فرزندۍ قبول کړي خوارزم شاه په دې ځل غوښتل چې نیشاپور او د خراسان ځینې برخې یې په لاس کې ور پاتې شي خو غوري شاهانو دا ونه منله او د خوارزم او غوري دولتونو په منځ کې جنګونه پېښ شول او خوارزم شاه مات شو او شمال مغربي افغانستان یې د لاسه لاړ او سلطان شاه هم چې د کاشغرستان او قراختایانو قوه هم ورسره وه د غوریانو په مقابل کې په (۱۱۹۱م) کې ماتې وکړه. او غوري دولت بنه په زور کې شو عباسي خلیفه مقتضی والناصر د بغداد نه د غور دربار ته سفیران ـــ

«ابن ربیع او ابن خطیب» را ولیږل او غور هم قاضي مجدالدین قدوه او مولانا سراج منهاج د طبقات ناصري د مؤلف پلار د سفیرانو په توګه د بغداد د خلیفه عباسي د دربار ته ورولیږل آخر سلطان غیاث الدین د «٦٢» کلنو په عمر کي په «۱۲۰۱» کي په هرات کي مړ شو او هم هلته ښخ دی او ځای او سلطنت یي غازي شهاب الدین ونیوه.

## غازي شهاب الدین غوري

شهاب الدین خپل ارث مملکت په ډیره هوښیاری او ښه تدبیر اداره که او د خوارزم د زورور دولت سره یي د دوستۍ معاهدې وکړې ځکه چي «۱۲۰۴» کال د جنګونو نه یي په زړه پوري نتیجه نه وه اخیستي او د فراختایانو او د ماوراالنهر د ترکانو چي د ختائي نومیالي جنګیالي تاینکو په مشری د غوریانو افغانانو سره جنګېده او د جیحون په غاړه او اندخوی سره نژدې یي افغانانو ته سختې ځپړې ورکړي وي اند هښمن ووا او غوښتل یي چي د دغي بدل واخلي خو عمر یي لنډ وو دی د پنجاب د کهکرانو یاغیانو په تادیب پسي هغه خوا ته لاړ او هغه شورشیان یي په قرار که خو غزنی ته د بېرته راتګ په لاره د جهلم یا نیلاب او یا داباسیند په غاړه د شورشیانو یوې ډلي په خپله خېمه کي شهید کړ.

جنازه یي د کرمي په لاره غزني ته راوړله شوه او په غزني کي ښخ شو او د غور افغاني قوي دولت مخ په ځوړ او توږېدو

ټوټې شو - د شهاب الدين د مرګ نه پس يې ځاى وراره -
محمود بن غياث الدين په کال (۱۲۰۵م) کې ونيوه - خو بې کفايته
او مسرف سړى وو د فيروزکوه غټه خزانه چې اته سوه صندوقه
طلايي لرلې ټولې په عياشۍ او درباري تجمل ولګولې او دڅلو
تره دځوى تاج الدين خزانه يې د يوجشن په ورځ په درباريانو
او خلکو ووېشله چې بې شماره طلاو او سپينو روپو هميانانې
دکې پکې وې او نور ظروف او لوښي هم وو.

د شهاب الدين د مرګ نه پس د افغانستان د غوري دولت
مرکزيت پاتې نه شو او لکه مخکې چې ويلى شوي دا لوى دولت
ټوټې ټوټې شو او د شهاب الدين افسرانو لکه تاج الدين يلدوز
په کرم او غزنې او پنجاب او ناصرالدين قباچه په سند او ملتان
او قطب الدين ايبک په منځني هند او پنجاب او غياث الدين
خلجي په لکهنوتي او غوريه په باميانو او ملک تاج الدين
په سيستان کې خپل خپل مستقل حکومتونه اعلان کړه او د
افغانستان د غوري دولت مرکزيت له منځه لاړ - لکه چې ويلى
شوى محمود د غياث الدين ځوى د مشهور شهاب الدين وراره
او په ځاى ناست بادشاه بې کفايته شخص وو ټول جاګيرو
دارانو په خپله خپله برخه د ده د بې کفايتۍ او بې وسۍ
له امله په خپلو خپلو علاقو کې محلي حکومتونه جوړ کړه او د خپلواکۍ

دعوی کوله. د محمود د سلطنت په دوېم کال رکن الدين محمود بن علاوالدين د غزني نه په فیروزکوه د غور حمله وکړه خو ماتې وخوړه او کامیاب نشو په درېم کال پرې اتسز حسین د پلار د تره خوی یې د بامیانو نه خوارزم شاه ته راغی او کومک یې ترې وغوښت چې د هغه په مرسته فیروزکوه را لاندې کړي هم دغسې وشوه. محمد شاه خوارزم کمک ورکړو اتسز په فیروزکوه حمله وکړه خو د فیروزکوه خلکو د فاع وکړه او د خوارزم شاه او اتسز لښکر ماتې وکړه او د فیروزکوه پایتخت بچ شو. دې لویې او حادثې خوارزم د افغانستان نیولو ته امیدوار کړو او اتسز یې پخپل دربار کې وساتلو خو یو کال پس علی شاه د خوارزم شاه ورور فیروزکوه ته راغی او پناه یې واخیسته، خو د غور سلطان د هغه پیشنهاد په اساس چې خوارزم شاه له غوري سلطان نه وکړو هغه علي شاه په فیروزکوه د «کوشک برین» په ماڼۍ کې بندي کړو دا هغه مشهوره ماڼۍ وه چې په سر یې پنځه د طلاو منارې چې هر یوه پنځه پنځه گزه لوړه او دوه گزه پلنه وه ولاړې وې او دوه د هما مجسمې د طلا وڼه جوړې د اوبن د جسامت هومره جوړې وې د علي شاه ملگري د هغه په بندخېشو او د شپې په غلا د مشرف غره نه په «۱۲۱۲م» کې

د سلطان محمود په ماښې راپرېوتل او د غه مست اوبې خوښا مدهوش بادشاه‌یې و واژه. په سبا‌یې درباریانو دده په ځای ځوانلس کلن ځوی بهاوالدین سام و دراوه - معنه د شاهي کورنۍ سړي بندیان کړل او د علي شاه پنځه شلوېښت تنه ملګري او د پلار قاتلان‌یې اعدام کړه په دې وخت‌کښې سلطان محمد خوارزم شاه مداخله وکړه - او اتسز‌یې د خپل ان ماېلې لښکر سره فیروزکوه ته راولېږه او جنګ جوړشو په دوو ورځو کې د فیروزکوه ښار اتسز ونیولو او‌یې بادشاه شو او بهاوالدین سام‌یې سره د مورره او خوېندو او وروڼو بندیان کړه او سره د پلار د تابوته او د غور د خزانو‌یې د هرات پلاره د خوارزم پایتخت ته واستول - اتسز سره د دې چې د ولس خلک ترې په دې خفه وو چې د غوري دولت‌یې د خوارزم شاه په کومک او لمسون له پښو وغورځاوه بیا‌یې هم تر (۱۲۱۴م) حکومت وکړو په دغه کال (۱۲۱۴) تاج الدین یلدز د غزني حکمران په غورپسې د نصرالدین حسین د غزني دامیر شکار په مشرتابه لښکر وکړو او جنګ جوړ شو په نتیجه کې اتسز ووژل شو او د غور حکومت علاوالدین محمد بن ابوعلي د غیاث الدین غوري د تره ځوی ته ورکړه شو دی سړی هم په دغه کال (۱۲۱۴م)

کې غور د خوارزم شاهانو ته وسپارلو او پخپله هم خوارزم ته
ورغی او هم هلته مړشو دا سړی مخکې په نیشاپور کې حاکم وو
او نیشاپور هم خوارزم شاهانو ته ورکړی وو او دا وعده
یې ورسره کړې وه چې د خوارزم شاه په مقابل کې به کله هم
توره نه گرځوینه وي. د دغه نامردانه وعدې د وفا دپاره
یې خپل آزاد مملکت پردو ته بخشش او هدیه کړو. فعتبروا یا اولی
الالارباب او د غوري د دولت دشان او شوکت هلته خاتمه
وشوه !! چې د (۱۱۴۸) نه منځ ته راغلی وو او تر (۱۲۱۴م)
پورې دوام وکړو. د غوري دولت په وخت کې په مملکت
کې فیوډالیزم په وده کې وو د مملکت ډېرې برخې د شهزادگانو
او د شاهي کورنۍ د خلکو په لاس کې وې او د دهقانانو ژوند
تنگ وو تمدن او فرهنگ هم د غزنوي دورې بقایا وې چې
په ورثه ورپاتې وې د غوري بادشاهانو د ځینو مذهب
کرامیه وو او د دغه مذهب حمایت به یې کولو د دې مذهب
باني د سیستان یو عالم وو چې کرامیه مذهب هغه ته منسوب
دی. چې اصلي نوم یې ابو عبدالله محمد بن کرام وو دا مذهب
د کلامیه مذهبونو نه یو وو او مرکز یې نیشاپور وو ابوبکر
محمد بن اسحاق یې په نیشاپور کې مبلغ وو چې د سلطان محمود
په وخت کې سر د وی چې د زندقیانو او مرتدانو په مقابل کې

به یې د سلطان محمود مرسته کوله خو هغه ورته مخه نه وړ کوله او هغه هلته د روحانیونو مشر ابو علي حسن بن محمد تاکلی وو، او آخر یې ابوبکر بندي کړو او مال یې تري ضبط کړو او نور علویان یې هم وشړل۔ دغوري دورې د معارۍ نمونه د هرات جامع جومات دی چې د مغلي دورې نه شل کاله مخکې منځ ته راغلی دی، د غور د وسلې جوړولو صنعت هم منلې کاریگري وه، ښې زغرې، تورې، خولونه او نیزې به په غور کې جوړېدلې او دې صنعت ته د غور د خلکو جنګیالیتوب ګنور هم انکشاف ورکړی وو، دوی به پخپلو منځو کې هم جنګونه کول او د نورو پردو یرغلګرانو سره به هم جنګېده او د غور دفاع به یې کوله د غوري دورې ځینې خاص اثر لا په تاریخ کې شته دی او وې به، خو چنګیزي یرغلونو د غزنوي او غوري دورې هر څه د خاورو سره خاورې کړه او اوس د هغه د وړو تنش په تاریخ کې نوم پاتې دی او بس.

تلك الایام نداولها بین الناس.

# په افغانستان کې طاهري دولت

## د (۸۲۱م) نه تر (۸۷۲) میلادي پورې

په اتمه پېړۍ کې د هرات په ولایت کې پوشنګ یا اوسنی زنده جان، ښه ودان او کلک ځای او ورکوټی ښار وو لوی مدرسې او مسجدونه یې درلودل چې د اسلامي دین د علومو تدریس به پکې کېده. د طاهري کورنۍ هم د دې ښار وه او د مملکت د نورو معززو کورنو لکه د برمکي کورنۍ د سهل کورنۍ مشره هم د نه کورنۍ دا م وه. د خپل ځای د محلي حکومت او د بغداد د خلافت سره یې ښه او دوستانه مناسبات لرل او زړیې د خلافت په دربار بغداد کې ځای پیدا کړ او طاهر ذوالیمینین د امین او د مامون د واقعې نه وروسته د بغداد د نظامي قوې قوماندان مقرر شو، او منصور بن طلحه طاهري د مرو او خوارزم محلي حاکم شو او عبدالله بن طاهر حاکم (شحنه) د بغداد وو او سلیمان بن عبدالله په ایران کې د طبرستان والي وو د طاهري کورنۍ اشخاصو د بغداد په-عباسي خلافت کې ښه نفوذ کړی وو او ښه مقامونه او ځایونه

يې ښولې وو. عباسي خلافت داموي خلافت په خلاف د هرځای د خلکو سره ښه سلوک کولو او د محلي حکومت چارې به هم هغه خلکو اداره کولې اموی د وره صرف د پيسو را ټولول مهم ګڼل او خالص نژادي تفوقِ خوښاوه او عرب خلک به یې په حکومت مقرر ول عباسيانو بر خلاف د مختلفو ځايونو دخلکو نه کار اخيست ځکه خوامويي دولت زر د پښو ولويد او ايله یې يوه پيړی څه کم عمر وکړو خو عباسي دولت پنځه پيړۍ دوام وکړی شو. په هرصورت د طاهري کورنۍ د علم او پوهې برخه درلوده او غوښتل يې چې په افغانستان يو ښه منور حکومت منځ ته راوړي او د ماورالنهر علاقه هم د خپل تاثير د لاندې ولري ، طاهر پخپله عالم وو او په عربۍ کې اديب او شاعر وو او عبدالله د هغه ځوی هم د پلار په شان شاعر وو او طلحه په علم نحو کې ښه وارد وو. او منصور د طلحه ځوی د مرو حاکم په فلسفه کې ځینې رسالې ليکلي دي - طاهري دولت په افغانستان کې د پوهې په خپرولو او د کروندې په ښه کولو کې ډیر کار وکړی شو. حتی چې په فقهاوو یې د اوبو دلګولو د حقوقو په باب يو قانون هم جوړ کړو - طاهريانو خپل ملي استقلال او خپلواکي غوښتله خو ورسره يې د عربي ژبې او اسلام د دين او اسلامي خلافت مرسته او حمايت هم کولو ويلې شي چې د اسلام

په مرسته عبدالله ابن طاهر د زړ د شتيانو څو کتابونه هم په (۸۲۸م)، کې سيزلي وو، په هرحال پوشنګی طاهربن حسين په کال (۸۲۲م)، کې افغانستان ته راغی او د افغانستان خپلواکي يې اعلان کړه او د افغانستان شمالی او غربي ايالتونه چې مسلمانان شوي وو په اداره کې راوستل او يو مرکزيت يې جوړ کړه د طاهر نه پس يې ځوی طلحه په کال (۸۲۲م)، کې واکدار شو او د بغداد د خلافت سره يې ښه رويه او ګذاره کوله او ساتله په (۸۲۸م)، کې يې ورور علي ابن طاهر بادشاه شو او د خلکو د يو شورش په منځ کې ووژل شو او په (۸۲۹م)، کې د بغداد نه عبدالله د طاهر مشرځوی راغی او په ځای يې کېناست.

د طاهريانو پايتخت نيشاپور وو- عبدالله ډير تجربه کار او ښه لايق آفسر وو او د خليفه د پاره يې د مصر او شام په شورشونو کې ډير ښه کار کړی وو او د (۸۲۱م)، نه تر (۸۲۹م)، پورې د خليفه په ګټه يې ډير کارونه کړي وو د عبدالله د زمامدارۍ په وخت کې په افغانستان کې ښه کارونه وشو او د دهقانانو تقويه شو او پخپلو حاکمانو به يې د دهقانانو سپارښتنه کوله- د ده په باب عبدالحی ګرديزي پخپل تاريخ کې ډير ښه څه ليکلي دی او؟ د د وز حکومت-

ستایلي دی. د عبدالله د مرګ نه پس یې ځوی دویم طاهر په کال (۸۴۴م) کې بادشاه شو او تر (۸۶۱م) پورې ووخود پلار په شان اداره یې ونکړی شوه د سیستان او بست خلکو پاڅون وکړو او د صالح سیستاني په مشره کې ولس پاڅون نه وکړل او مملکت تجزیه شو. بیا محمد د طاهر دویم ځوی واکدار شو چې (۸۷۲م) پورې وو خو یو لټ او بې کفایته عیاش سړی وو او کارې نشو کولی ځکه د افغانستان صفاري دولت نه چې یو نوی او ښه دمه وو پرېښود چې یادې په مخکې پاڼو کې تېر شوی دی. طاهري دولت په افغانستان کې د صفاري دولت نه مخکې منځ ته راغلی وو. د طاهري دولت په وخت کې دري ژبه بیا ژوندۍ شوه که څه هم عربي لغت پکې ډېر ننه وتلي وو او د حنظله بادغیسي عباس مروزي او ابوحفص سغدي په شان شاعران یې پیدا کړل او نوی رسم الخط هم منځ ته راغی. د دولت عواید د کال (۴۸) میلونه درهمونه هم پوره ته وو په دې دوره کې د دهقانانو او کروندې ترقي کړې وه د خلافت د بغداد سره یې ښه تعلقات وو او څه خراج به یې ورکاوه، امنیت ښه وو خو د خوارجو او د عیارانو د ټولګو نه به کله کله سردردي ورپیښېدله. چې آخر په ځای په افغانستان کې صفاري دولت یعقوب لیث تاسیس کړه او تردې په افغانستان کې د تللو-

راغلو چلو د ولتونو څه سرسري ذکراو یاد وشو. او س به د پردو یرغلگرو دیرغلونه او تاراکونو او د افغان ننگیالی ولس د پرله پسې مبارزو په باب څه لیکل وغوارو په دې هیله چې گوندې د بناغلو لوستونکو په کار راشي او د تېرو واقعاتو نه عبرت واخلي. او د پردو یرغلونوته موقع ورنکړي.

# د پردو یرغلونه او تاراکونه

## او د افغاني ولس مبارزې

# په افغانستان کې هخامنشي دولت

د میلاد نه ز رکاله ترمخه په افغانستان کې کرونده اود او به خوړ چارې او ورسره د لاسي صنایعو پېشه ښه په مخ روانه وه - باختریان چې د منځنۍ ایشیا ، هندوستان او ایران د سوداګرۍ لارې له د نه تېرېدلې - د اقتصاد له نظره یې په منځنۍ ایشیا کې ښه نقش درلود او د ودانۍ او ښتوله کبله د خلکو په سترګو کې وو ، د دې مملکت په شمالي خوا کې د سوړو او کوچیانو ، ترک ، مغل ، تاتار او مورو[1] تاخو بې وو چې د دوی ښتو ته به یې تل سترګې نیولې وې او کله ناکله به یې پرې یرغلونه هم کول.

د ایران ماد قبایل د ایران په مغرب او شمال مغرب کې او د فارس په جنوب د ایران کې لا د حکومت جوړولو قابل نه وو او دا قدرت یې نه درلود ، داووم قرن قبل المیلاد پورې به تل پرې د اشوریانو له خوا حملې او یرغلونه کېدل همدارنګه

(۱) په اصل کې د اتول د یو مغل نسل نه دی.

د هندوستان په لوی مملکت کې هم چې د افغانستان په نمرخاته کې واقع وو خلک قادر نه وو چې یو لوی مرکزی حکومت جوړ کړي شي البته واړه واړه محلي حکومتونه لکه کرووس او پنچالا «د جمنا او گنگا په حوزه کې» وو او ورپسې د «کوسالا» دولت په اوده د کاشي د بنارس په حدود و کې منځ ته راغلی وو دغسې نور واړه حکومتونه هم وو خو د هند مرکزیت لا نه وو تامین شوی، ترڅو چې د «مکده» سلطنت منځ ته راغی او د هند مرکزیت یې جوړ کړ. خو افغانستان نه ترې څه وړه او تړه نه وه. دغه حکومت د څلورم قرن قبل المیلاده پورې عمر وکړ.

په افغانستان باندې لومړی د سرو کوچیانو له پلوه د شمال له خوا حملې پیل شوې او د افغانستان باختري دولت یې ولړزاوه او حکومت د سیاسي نظره کمزوری شو او آخر توټې توټې شو او په هره توټه یې یو ځانله محلي حکومت جوړ شو او مرکزیت یې ورک شو او ډیر د فاع قوان پکې نه وه پاتې - په ایران کې د اومې قبل المیلاد پیړۍ کې لومړی د ماد دولت او بیا د هخامنشي فارس دولت تاسیس شو

چې دا بنه زور اور شوا او د اشور د دولت په شان یې د نورو ملکونو نیولو ته سترگې خړې کړې - د هخامنشیانو اووم بادشاه

«کورش» په شپږمه پېړۍ قبل المیلاد کې د ماد دولت له منځه ویوړ او په وړه آسیا کې د لیدي دولت هم چې د دوو پېړیو نه هلته موجود وو له منځه ویوړ او وروسته یې یونانیانو ټینولې زمکې هم رالاندې کړې او په ایران پورې یې وتړلې او کورش د کلده حکومت بوټې او منقرض کړو او دبین النهرین زمکې یې ترې رالاندې کړې او په ایران پورې یې وتړلې او دا وخت وو چې کوروش بندي یهودیان له بنده خلاص کړه - کوروش د دې زور سره د باختریان خواته په پام شو او د (۵۴۵م) نه ټینولی تر (۵۳۹م) پورې د افغانستان د خلکو سره هم یو مرکزي حکومت یې نه درلود وجنګېد او د افغانستان ولسي حکومت شپږ کاله د کورش د قوت سره جنګېده کوروش کرمان، پارتیا، باختر، ستاګید یا «هزاره جات» سیستان بلوچستان او کندهار وټول او کاپیسا کې سخت جنګونه وکړه او د (۵۳۹) قبل المیلاد په دغه جنګونو کې کوروش ووژل شو او په ځای کامبوزیا ځوی یې کېناست هغه د ومره قوت درلود چې (۵۲۵) قبل المیلاد کې د مصر دولت او حکومت یې د فرعونیانو د سلسلې له (۲۶) شپږویشتم روستني فرعون نه ونیوه او ول داریوش د سکې ضرب وکړی شو او دا په ایران کې لومړنۍ سکه ګڼلې شي، او چې د اسکیتینو مملکت او تراس او مقدونیه هم

په ، ۵۱۲ ، قبل المیلاد کې وینول، نو د دغه ځایونو د نیولونه - وروسته افغانستان ته متوجه شو او په افغانستان هم راغی او د سنده پوری علاقې یې ونیولې خو وروسته بیاد هخامنشي شاهانو توجه چې د ایران غرب پلو ته وه نو نمرخاته ، شرق، ته یې فرصت پیدا شو چې د افغانستان شمال او غرب والیانو ورو ورو قوت پیدا کړو او پخپله د یو سلطنت د جوړېدلو په فکر کې شو- په څلورمه پېړۍ قبل المیلاد کې یونانیانو په ایران لښکر وکړو نو دریم داریوش یې په ، ۲۳۸ - ۲۳۳ق م، په دفاع کې پاتې راغی او افغانستان ته یې مخه وکړه خو د - افغانستان ولس یې په مقابل کې پاڅون او دفاع وکړه - او په دې وخت کې د باختریان والي ، بسوس، د خپلې خپلواکۍ اعلان وکړو او ځان یې د مشرقي زمکو بادشاه وباله . او هم ده په جنګونو کې داریوش ووژلو . مقدونی سکندر هم په دغه مال کې په ایران حمله وکړه او د دغه معروف جهانګیر په افغانستان هم یرغل وکړو او د بسوس د لښکرسره یې جنګ وکړو او پخپله بسوس ووژل شو او د ایران مقتدر هخامنشي دولت د پښو نه ولوید او افغانستان هم د تاریخ یوې نوې دورې ته راغی ،د شپږم قرن نه نیولې ترڅلورم قرن قبل المیلاده پورې افغانستان د سیاسي نظره کمزوری وو او نه یې

شو کوم چې دا تې او شپږمې قبل المیلاد پېړيو په شان وسعه او وپر خلك پیدا کړي شي نو سیاسي مرکزیت ورك شو او محلي حاکمان دخپلو ګټو د ساتلو په غرض د هخامنشي سیاست تابع وو. خو دا د خلکو او مملکت د سیاسي ژوندانه پوري تړلې وو خو د تدریجي اجتماعي تکامل خواته روان وو، د افغانستان خلکو دا تې پېړۍ قبل المیلاد نه مخکې په زردشتي دین وو او د غه دین يې ایران ته هم نقل کړی وو او د شپږمې پېړۍ قبل المیلاد نه يې پرسم الخط (خروشتي) وو چې مبداء د «ارامی» الفبا نه شوې وه او د ایران د لارې نه راغلی وو او دا په مملکت کې يو نوی اجتماعي انکشاف ګڼلی شي ارامی الفبا مخکې هند او ایران ته رسېدلې وه او په ایران کې ځینې اصلاحات هم پکې شوي وو خو بیا يې هم نقایص درلودل خروشتي رسم الخط د ښي نه چپ خواته لیکل کېده - دې خط په افغانستان کې تر پنځم قرنه پورې دوام وکړ او رسمي د فتري رسم الخط وو چې اثار يې د تیږو په کتیبو او فلزاتو باندې شته او سکې هم میندل شوي دي، دا خط په یوه پراکریتي شعبه کې معمول وو او په قلم او تور رنګ به لیکل کېده - د دې خط اثار د وردګو په (خوات) او د دورنتې په بیمارانو کې میندل شوي دي او د جلال آباد په هډه کې

هم وو. دا په اول او دوهمې مسيحي پېړيو کې د کوشاني دورې پورې مربوط دی. دا منلې خبره ده چې په افغانستان کې ديانت وو او دا افغانستان د پنداروخلکو معبدونه درلودل - خو په افغانستان کې د ميخي خط او نه د مادي او هخامنشي خطونو نمونې په لاس نه دي راغلي، خو د کابل د حضوري چمن د څينو سکونمونې پلاس راغلي دي هخامنشيانو د علم په برخه کې په افغانستان کې څه نه دي کړي خو په معماريه او اداره او ابياريه او حجاريه کې د څه نه څه کړي دي په دې منځ کې هخامنشي دوره لاړه او په افغانستان هم ديونان د جهانگيرو دولت تاثير راغی.

# د یونان د ولت په افغانستان کې
## د ۳۳۰ نه تر ۲۵۰ قبل المیلاد پورې

یونان یو ورکوټی ملک دی چې یو نیم میلون نفوس یې - د رلود ، د د وو زرو (۲۰۰۰) او یو زر (۱۰۰۰) کلونو قبل المیلا د نه د وی د کلیوالو او شپنو سره او سپدل د ې خلکو د ا نه ، سیند شبه جزیره ، پلو پونز ، یونان او د انه جزایر وا او د آسیا - صغیر غارې نیولې وې اولا د قبل التاریخ او د گټي د نوې د ورې د زمانې په شان ژوند کوله . د دوی خط او لیکل نه وو او د پخوا نه به یې په خولې قصې او ربړلې او مشهورې افسانې د رلودلې لکه د « تراوه » مشهوره افسانه - د دې خلکو مذهب د ارباب الانواع پرستش وو - او څه خاص اخلاق یې نه لرل . خو وروسته د یونان ټولنې تکامل وکړو او یونانیانو د ( اژه ) د جزیرو د او سیدونکو نه چې تر دوی نه مخکې متمدن شوي وو او په خط کتابت پوهېدل او صنایعو هم پکې رواج مینده وو د هغوی نه اداب او هنر زده کړو او د پخوانو شرقي قومونو په بنیاد ونویې لکه د

مصري ، کلداني ، فنيقي او نورو په شان ښه ړو ښانه تمدنونه
تشکيل او منځ ته راوړي چي د هغه وخت د ښو او ډيرو تفکر
او ذوق ښه نماينده ګي کوله ، که څه هم د يوناني خلکو په
بشري تمدن کې لويه برخه په ادب او فلسفه او نکلو صنايعو
کي ده . خو بيا هم د وی د علومو ګروندګر ګڼلی شي او د -
ميلاد نه او وه پيړۍ مخکې حکيم تالس د ټولو موجوداتو
بنيادي ټولوالي ته په پام شو او هغې ته به يې مادة المواد -
ويلو ، د قبل الميلاد نه مخکې شپږمه پيړۍ کې سولون چيل
مشهور قانون د اتن د پاره وليکلو په پنځمه پيړۍ قبل المسيح
کي دميکريتس د اتوم نظريه وړاندي کړه او د جهان د ټولو
اشياو او اجسامو وجود يې د خلا او اتوم نه مرکب ګڼل
او د اجبو نه پلوی وو - سقراط هم د اخلاقو د تدريس دپاره
راپاڅيد په څلورمه پيړۍ قبل الميلاد کې افلاطون هغه
مشهور فيلسوف وو چي د عالم مثل ، نه يې خبري وکړي او
څه يې وتخيل او « جمهوريت » کتاب يې وليکلو - ارسطو مشهور
فلسفي او عالم په هغه وخت کې د يونان د فلسفي د تکامل
روستنی ټولنه وو ، د هغې د فلسفي مکتب د « اتن ليسه » و
چي د هغه زماني د علم او فلسفي اثار و کان ګڼل کيده او د
پخوانۍ زمانې د جهان لوی دايرة المعارف حسابيده ، روسته

د یونان د سیاسي، اقتصادي او علمي ماتي نه د علمي او فلسفي مطالعو سلسله اسکندریه ته نقل شوه او هلته د فلسفي مختلف مکتبونه منځ ته راغلل لکه د اپیکور مادي فلسفي او مکتب د سینیک او کلبیانو او د اصحاب شک او نور وو. خو د سیاست له نظره یونان شل بېلابېل دولتونه وو چې هر یو یې خانله پایتخت درلود. خو مهم د دغو نه د اتیک، د شبه جزیرې دولت وو چې اتن یې مرکز وو، د لاکونی مرکز اسپارت او د بوېتي مرکز تب وو، او د ټولنیز ترکیب له نظره د یونان ملت په درې طبقو ویشل وو، لکه آزاد، بنده او پردي.

د آزادې طبقې د حکومت اداره په لاس کې وه او د دغوی زده کړه او پالنه هم په خاص ډول کېده خو د نجونو د زده کړې پلو ته څه پام نه وو شوی.

آزادو خلکو چې د معاش د تکلیف نه خلاص وو او د دوی د معاش د پاره زحمت د بنده او پردي طبقې په غاړه وه او دوی فرصت میندلی وو چې په فلسفي او اجتماعي چارو کې فکر وکړی شي. په دغه وخت کې د اتیک د شبه جزیرې خلک په پنځمه قبل الميلاد پېړۍ کې څلوېښت زره تنه وو خو ورسره (۱۵۰) زره تنه مریان او پردي وو په دا رنګه ټولنیز ترکیب کې استقراطي او سوفیستي تعلیم نورم د بې شوې خلک په-

استدلال او خبرو وغولوي او د ځاني ګټو د پاره یې استعمال کړي. دې خبرو نه د یونان انحطاط او زوال منځ ته راغی له دې امله چې دولت فاسد شوی وو، د پنځمې پېړۍ په آخري نیمايي کې د ښارونو خلک په دوو ډلو وېشل شوي وو یوه ډله شتمن وو او بله ډله یې خواران او بې وزلي وو او د یو بل په ضد یې مبارزه کوله.

د غریبانو ډله د اتن د حکومت ملګري وو او د شتمنو ډله د اسپارت د حکومت ملګري وو. د دې جګړو ډېر و ډېر دوام وکړو چې ترڅو رومیانو په شرقي مدیترانه کې نفوذ وکړو او شتمنو د رومیانو نه کومک وغوښت او خپل خوار وطنوال یې په رومیانو ووهل او آخر یې دا شوه چې په (۱۴۶) قبل المیلاد کې د یونان استقلال او خپلواکي د رومیانو د تسلط لاندې شوه او وطن ټوټې شو، خو د یونانیانو تمدن او فرهنګ په شرق او غرب کې لا پاتې وو او رومیانو هم په مدیترانه کې دغه تمدن او فرهنګ خور ولو.

# د مقدوني سکندر زمانه

یونان په پنځمه ق م پېړه کې د ایران او اسپارت په یرغلونو اوجګړو اخته وو او په څلورم قرن ق.م کې د فلیپ مقدوني باد شاه له خوا و نیول شو په (۳۳۸ ق.م) کې یو کال وروسته فلیپ ووژل شو(۱) او د هغه ځوان ځوی د هغه په ځای کېناست دا ځوان یو قاړندوکی او مبارزچي د ارسطو شاګرد هم وو او په زړه کې د قهرمانۍ او د ملك ګیرۍ هوس هم وو په (۳۳۴ق.م) کې د دېرش زره پیاده او څلور زره سوړو عسکرو سره چي د څلو ېښتو ورځو اذوقه او خوراکه یې هم د رلوده د ایران په هخامنشي دولت یې یرغل وروړ، په دریو جنګونو کې چي په وړه اسیا (اسیا صغیر)، د اسکندرون د خلیج په غاړه او په کردستان او اوسنۍ ترکیه کې وشول ایراني فوځونه یې ماتې ورکړه او وروستي ورځی ایران یې هم والاندې کړو، سکندر چي یو تن د مشهورو جهانګیرانو نه وو وکړی شوچي د خپلو زورا ورو عسکرو په قوت د وړې اسیا (اسیا صغیر) نوي

---

(۱) ویلی شي چي فلیپ خپلې ښځې او ځوی سکندر وژلی دی.

دولتونه لکه مکه ، ایران او مصر یې په څلورکاله کې له منځه وړل نو د هند د نیولو په فکر کې هم شو او په دغه تکل او عزم - روان شو نو په لومړي قدم کې یې په لاره کې افغانستان په مخکې وو - سکندر د مور له خوا یې ځان د (اشیل) افسانوي قهرمان ته منسوبولو او د پلار د پلوه به یې (هرکولیس) د قوت رب النوع ته منسوباوه - د مصر د گټنې نه پس هلته ده د (پرامون) لقب - فراعنه یې، غوره کړو - په کال (۳۳۰ ق.م) کې د ایران نه - افغانستان ته ورغی چې هلته کوم مرکزي حکومت هم موجود نه وو او سکندر په یرغل وکړو خو خلاف د توقع د افغاني ولس د سخت مقاومت سره مخامخ او د افغانستان او سغدیانه په نیولو یې څلور کاله وخت تیر شو او د ډیرو کړاونو او تاوانونو او جنگونو نه پس د توس په لاره هرات او قندهار او کابل او بیا بلخ او د جیحون غاړو ته ورسید او (۱۹) زره نوی فوځ چې ورته را ورسید نو بیا د هندوکش نه را تیر شو او په (۳۲۷ ق.م) کې په هند ورغی د سکندر لښکرو په توس او هرات، قندهار، غزني، کابل او بلخ په جنگونو کې درې کاله زحمتونه لیدلي وو او پخپله سکندر سره د بطلموسه په شرقي افغانستان کې زخمي شوی هم وو نو ځکه په جنگونو ستړی شوی وو خو دومره یې وکړي شو چې د اباسیند نه ور تیر شي

او دجهلم په غاړه «پوروس» دپنجاب بادشاه ته ماتې ور کړې او تر بیاس سینده پورې مخ په وړاندې لاړ خو نور یې په فوځ کې دجنګونو طاقت نه وو پاتې نو سکندر بیرته ستون شو او د بلوچستان او ایران په لاره بابل ته روان شو او هم هلته د «۳۲» کلنۍ په عمر مړشو (۱).

سکندر ېنولي لوی ملکونه د اباسیند نه ېنولی دبحرا راتیک پورې او د مصر نه ېنولی تر قفقازه پورې د یونان د قدرت طلبه سردارانو پلاس ورغلل او د مقدونی سلطنتي کورنۍ د غړو دحمایت په نوم د یوبل سره په جګړو اخته شو ترڅو چې نور د منځ نه لاړل او دری تنه یکي پاتې شو او هغه لویه بادشاهي د دوی په منځ کې وېش شوه- مقدونیه او یونان انتيکونس او مصر بطلموس، شام اوایران د سیلوکس برخه شوه، نو د افغانستان د باختر او سغدیانه علاقه او دکابل او د هغه اطراف او هرات او سیستان علاقه او د قندهاراوبلوچستان علاقې د شام د والي په «۳۱۱ ق.م» لاس ورغلې، لنډه وروسته سلوکس پخپله دایران په لاره افغانستان ته راغی او په کال «۳۰۵ ق.م» کې د اباسیند نه ورتېر شو او هند ته ورغی په

(۱) مورخین وایي چې په ملریا ناروغه او مړ شو.

دې وخت کې هند کې ډېرې تبدیلۍ راغلې وې او د موریانو مقتدر حکومت ، د چندرګپتا، په مشره منځ ته راغلی وو دا هغه شخص دی چې د هند مقتدر دولت یې جوړ کړو او د سکندر د مرګ نه پس یې د مکده سلطنت ته ماتې ورکړه او یوناني متصرفات تې رالاندې کړه او د افغانستان شرقي ایالتو ته متوجه شو دې بادشاه (چندرګپتا)، سیلوکس مجبور کړو چې د اباسیند د غاړې نه بېرته وګرځي او په عوض د پنځه سوه فیلانو کې د هندوکش بنې غاړه جنوب پلو ټولې زمکې (ګپتا)، ته پرېښوې له دې وخته نه بودايي دین او مبلغین افغانستان ته راننوتل د سیلوکس اخلافو په افغانستان کې څه مهم رول نه دی لوبولی او د افغانستان د یوناني حاکمانو له خوا تش په اطاعت قناعت کولو خو اخر د شام او مصر د اختلافاتو له کبله د افغانستان والي - استفاده وکړه او په (۲۵۰ ق.م) کې یې د خپلې خپلواکۍ اعلان وکړو او خپلواک شو او د یونانیانو د زورګیرې مستقیمه دوره له منځه لاړه .

په دغه وخت کې د افغانستان ټولنیزه وضعه

سکندر او یونانیان افغانستان ته یوازې د فوځي قوت سره نه وو راغلي بلکه علمي او هنري قوتونه هم ورسره وو د سکندر او یوناني علما او هنرمندان هم وو او د هغوی ژوند

اثر ضرور د افغاني ولس په ماده او روح کېدی شو، شک
نشته چي د افغانستان اجتماعي وضعي او تمدن او فرهنګ ته يې
تکان ور کړی و خو په قطعي صورت يې له منځه نه دی وړی او
د داړو مدنيتونو د ګډون سره د تمدن يوې نوې دورې
ته ور داخل شو خو افغاني جامعې سره د هر رنګه زور او
قوت خپل مشخصات او اجتماعي خصوصيات ساتلي وو چي په دغه
ګډون کي هم ځلېده - او د افغان ملت د مقاومت لويه نښه ده.

# په افغانستان کي يوناني باختري دولت

## د ۲۵۰ ق.م نه تر ۱۳۵ ق.م پوري

اول ديودوت د انتيوکوس دوم شاهي بادشاه له خوا
د باختر او سغديانه والي مقرر شوی وو او هم ده د افغانستان
د يوناني باختري دولت د استقلال اعلان وکړو.

دوم ديودوت په (۲۳۰) ق.م کي د اشکاني يا پارتي نوي
ايراني دولت سره ښه مناسبات جوړ کړه چي د افغانستان
په شمال غرب کي او سني خراسان کي منځ ته راغلی وو او په
۲۴۹ ق.م کي يې خپله خپلواکي اعلام کړې وه او د شام د سيلوسي

سلطې په مقابل کې سره متحد وو.

ایوتیدم د یونان باختر مقتدر باد شاه وو چې په کال (۲۲۷ ق.م.)

کې د انتیوکوش دریم شامي بادشاه سره چې په افغانستان یې یرغل کړی وو په قرارې څه صلحه وکړه او په شاپې کړو او د هندوکش په جنوب کې زمکې یې هم .یې جنګه د هند د دولت نه یې آزادکړې - ایوتیدم تر ترسه پورې د مملکت په غرب کې مخ په وړاندې لاړ. او داکار غالباً په (۲۰۶ ق.م.) کې شوی وي او هم ده کاشغرستان هم رالاندې کړو او بلوچستان هم د ده په وخت کې په افغانستان پورې تړلی شوی دی په دی وخت کې مالداریه، زمینداریه، تجارت او صنعت په افغانستان کې وده کړې وه د مملکت صوبې د والیانو په واسطه اداره کېدلې چې غالباً د شهزادګانو نه به وو او هر یوه به یې خانله سکه هم پخپل نوم وهله - دایوتیدم طلائي او نقره یې سکې په موزیمونو کې شته دی او په کابل موزیم کې یې څو یې پرتې دي.

د متریوس (۲۰۰-۱۶۰ ق.م.) تر سنده او نږدې تر پنجابه مخکې لاړ او تیکسالا یې ونیوله او د مغاندرد دمتریوس یو جنرال یې شمالي هند د ګنګا تر غاړې ونیولو - نو په دې حساب د مملکت سیاسي بریدونه د ایران د د بښتونه ینولې

د گنګا تر غاړو او د سیحون او جیحون د حوزو نه ینولی
تر دریابه پورې غزېدلې وو د یونان باختري دولت -
فتوحات په (۱۷۵ ق.م) کې بس شې.

او وروسته ایوکراتېد په (۱۷۵ ق.م) کې بادشاه شو د ده
په وخت کې د یوناني باختري سردارانو په مفتوحه هند کې خالله
د بېل دولت اعلان وکړو او له دې نه پس د یونان باختري
دولت مخ په خوړ شو - په دننه کې یې نفاق وو او له دباندې
نه اشکاني دولت پرې زور راوړ او د مملکت په غربي ایالت
کې یې نفوذ وکړو خو لویه حادثه د «سیتي» قبایلو مهاجرت
وو چې د شمال مشرق له خوا او د سیحون له حوزې نه په سفلیانم
راتیری شو لومړی د دې مهاجرت لومړی چپه د اسکایانو
له خوا په ماوراءالنهر باندې راغله او وروسته چې د جیحون
نه تېر شو په باختر باندې وروپرېوتل خو دې چپو او طوفان
په غرب کې د اشکاني او پارتي دولت سره ټکر وکړو له ناکامه
جنوب خواته وګرځېده او سیستان او قندهار یې راالاندې کړه
او دا وجه وه چې پخوانو درانګیانانو به اسکایان په «ساکستانا»
بلل - او اسکایان د سیستان او قندهار نه د سند د حوزې
پورې مخ په وړاندې لاړه.

د اسکایانو زور او د اشکاني دولت یرغلونو دا وکړه

چې هیلوکس د یونانیانو باختري باد شاه په (۱۲۵ ق.م) کې خپل پایتخت د شمال نه د هندوکش جنوب خواته را نقل کړو او - کاپیسا (اوسنی تګاو) یې مرکز کړو داد ولت په منمرخاته تر اباسینده غزیدلی وو د هیلوکس په ځای ناستو باد شاهانو لکه انیتال کیداس او امین تاس او هرمایوس او نورو د لومړی ق.م پیړۍ پورې د یونانیانو باختري دولت ته دوام ورکړو خو د دې پیړۍ په آخر کې د پارتیانو او اسکایانو د زور په اثر په کلي توګه له منځه لاړ پارتیان او اسکایان په (۱۲۰ ق.م) تر اول میلادي پیړۍ تر آخره (۲۵ ق.م) پورې په سیستان او قندهار او د سند تر غاړې پورې حکومت وکړو خو تاریخ یې روښانه نه دی د دوی - مسکوکات په دوو ژبو یوناني ژبه او رسم الخط او پراکریت او خروشتي وو.

# په افغانستان کې کوشاني دولت

## د ۴۰ نه تر ۲۲۰ میلادي پورې

سیستي قبایل لومړی اصلاً د کاشغرستان او سیدونکي وو او دچین همسایه وو، همداسې دوی د سیحون په حوزه او د خزر د بحیرې په شمال کې او د توزې بحیرې په شمال کې هم اوسیدل او د۴ وو[2] مې پیړۍ میلادي نه تر دریمې پیړۍ[3] پورې د تیانشان نه تر ارال پورې وغزیدل،

کوشانیان یا یوچیان د سیستي قبایلو د نمر ختیزې خوانه وو چې نژن هوانګ او کی لین په منځ کې اوسیدل، او د هوانګ نویانو سره په جنګ جګړو اخته وو کوشانیان د هوانګ نویانو د زور له کبله له خپل ځای نه په کډه شو او دایلي او تارم د د سیحونه تېر او د بین النهرین ژمکې (سیحون اوجیحون) ته راغلل او د دوی زور وو چې د اسکای قبایل د تخاریانو سره له نعفه ځایه افغانستان ته راغلل او د تخارستان سیمه د دوی په نوم تخار مشهوره[5] شوه، خو یوچیان د میلاد په لومړنۍ پیړۍ کې راغلي او له جیحونه را تېر شوي وو او د افغانستان شمال کې یې باختر نیولی وو - د افغانستان په شمال کې د شتمینو-

د پر والی او د دفاع بقوت په منشتوالی تل به دا ملك د شمالي خواد کوچیانو او سوارکارانو د تهدید او یرغل ننبنه وو او پیړۍ پیړۍ به یې ناارام ژوند کولو. همدغسې د کوشانیانو هجوم هم په شمال افغانستان راغی او هم دلته یې کډه واچوله او ورو ورو په نورو قبیلو لکه یوچي اونورو زورا ورشو او وې کړلی شوچي د نورلو قبایلو واړه واړه ریاستونه یې رالاندي کړه او یوکوشاني دولت یې منځ ته راوړ د کوشانیانو لومړنی مقتدر باد شاه (کجولا کدفزس) ووچې د هندوکش نه په جنوب تیر شو او د مسیح په (۴۰) کال د کابلستان دولت او د پارتیانو (پهلویان) نفوذیې له منځه لرې کړو - کجولا کدفزس کاپیسا او کابلستان د اباسینده پورې د باختر او سغدیانه سره یوځای کړو او د غرب خواته د پارتیا ایالت (اوسنی خراسان) هم رالاندي کړو او په دې ډول د یونانی باختر دولت په شان یې د افغانستان سرتاسري یو- دولت تشکیل کړو - او داکار یې تر (۷۸) میلادي پورې تر سره کړو.

ویما کدفزس دوم د پلار نه پس د هند شمالي خوا هم رالاندې کړې او د رومي امپراطورۍ (ترجان) دربار ته یې د دوستانه مناسباتو د جوړولو د پاره نماینده ګان ورولیږل څکه چې رومیانو د مدیترانې اسیايي غاړې نیولې وې او د ورېښمو د تجارت په

په لارکې خنډ وو ـ رومیان پښه داروو او تجمل پسند
وو او د ورېښمو توټې یې خوښولې چې په چین کې جوړېدلې
او عطرونه او دارو گانې یې هم چې له هند نه به راتلل پکار وو
او په بدل کې به یې طلا ورکوله خو ددې مبادلې لار په
افغانستان ورغلې وه او څه طلا به په افغانستان کې هم تر
پاتې کېدله .

د وهم کدفزس داغوښتل چې د کاشغرستان په نیولو سره
د ورېښمو دلارې ښه سرشته وکړي . خو د چین حکومت
چې په ۱۲۱ میلادي کې د ورېښمو لار په څو جنگونو خلاصه
کړې وه نو د کدفزس دغسې اقدام په مقابل کې کلک غلي پاتې
کېدی شو ! د چین حکومت راپاڅېده او په کاشغر کې کوشاني
لښکر و ته ماتې ورکړه او کوشاني دولت سره د زوراور قوته
د چین د حکومت باج او خراج ومانه او دغه باج او خراج به
یې د چین دولت ته کال په کال ورکولو .

د کوشانیانو ډېر مقتدر باد شاه ( کنښکا ) دی چې په ۱۲۰
او ۱٦۰ میلادي کلونو کې یې سلطنت کړی دی هم دا باد شاه وو
چې د هندوکش د شمال نه یې پایتخت جنوب خواته راواړاوه
او په کاپیسا کې د گرمو داورې او پېښور یې د ژمي پایتخت وو
کنښکا وکړی شو چې په شمال مغرب کې اشکاني دولت مغلوب

کړي او په شمال شرق کې یې چیني ترکستان دکاشغر، یارکند او ختن، یې دچین نه فتح کړه اوځو تنه چیني شهزادګان یې هم یرغمل کړه او دخپل دولت حدود دګنګ او جیحون د سیندونو په منځ کې او د تارم نه بیولی تر ایرانه پورې ورسول،

دکنشکا نه وروسته یې په ځای ناست اشخاص دلوی هند قوي جاذبې رابنکل او لاړل پکې ورک شو- (داسودوا) د- کوشانیانو وروستنی بادشاه ووچې تر (۱۸۲-۲۲۰ میلادي پورې) ووچې په هند کې له منځه لاړ او په افغانستان کې یې ځای - وړو وړو محلي حکومتونو ونیولو چې قوي او زورور حکومت پکې دکابلستان ووچې دکاپیسانه بیولی تراباسیند دغاړو پورې مسلط وو.

## د دغه وخت ټولنیز حال:

دغتو کوشانیانو په وخت کې د میلادي اول قرن نه بیولی تر دریم میلادي پورې هم هغه د یونان باختري سلسله روانه وه خو وړو وړو پکې ځینې بدلونونه راتلل - دعقیدو او مذهبونو به د پخوا په شان به احترام کېده او دولت به زردشتي برهمني او بودایي دینونو ته احترام کاوه خو بودایي دین پکې ودې کوله او اخر کنشکا پخپله بودایي شو کډ فزس د پخوانه په شیوایي مذهب وو.

د کوشانیانو ژبه ختني ویل کېده د تخاري ژبې نه بیل-
رنګه وه او په سکوکاتو او کتیبو کې به تري کار اخیستل کېده.
د یوناني حروفو نه هم کار اخیستل کېده خو یوناني حروف-
د ورو وران شوي وو تر دې چې د لوستلو نه هم پاتې شو
د هندوکش په جنوب کې سانسګریت او پراکریت خطونه او ژبې
هم وې د دې وخت رسم الخط هم د افغانستان پخواني -
رسم الخط «خروشتي» وو چې د ښي خوانه په چپه لیکل کېده
او په افغانستان کې د میلاد نه پنځه پېړۍ مخکې تر پنځمې پېړۍ
میلادي پورې رواج وو چې زرکاله عمر یې کړی دی، او د
سیستان نه تر پنجابه او د بلخ نه د مهنجودړو پورې خور
وو، او د هغې آثار په بلخ، بامیانو او وردګو او هډه کې-
پیدا شوي دي او مذهبي آثار د ونو په پوټکو چې د کاغذ په
شان وو په تورا او سور رنګ لیکل کېده په جنوب د هندوکش
کې برهمي رسم الخط هم وو چې د چپې خوانه به ښي خوا ته لیکل
کېده.

عالمان او پوهان او هنرمندان د دربار له خوا او هم په ولس
کې د احترام وړ وو فرهنګ او ادب د بودایي مذهب له برکته? 
بنه د مخکې تګ په حال کې وو، صنایع هم پخې وو چې آثار یې
په سمرقند او ختن کې میندل شوي دي د معارې او هیکل-

تراشي کارونه هم ښه مخکې روان وُه چې د باميانو حيرانوونکی لوی (٥٣) متره مجسمې لويه بلگه ده - چې دجهان دلويومجسمو نه گڼل کيږي.

دافغانستان تجارت هم په دغه وخت کې ډير ښه وو - ځکه چې د چين او هند د مال التجاره ترانزيتي لار په افغانستان راغلې وه - موسيقي اوگڼا په دغه کوشاني وخت کې ښه ترقي کړې وه چې د باميانو رنگه تصويرونه يې او د موسيقي نوازانو مجسمې چې د هډې نه راوتلي دي د هغه وخت د ذوق ښه ښايسته گې کوي د موسيقي د هغه وخت الات رباب ، طبله، دولک او شپيلۍ او نور وو ، د نارينه وجامې پرتوگ او کميس وو او مرزې به يې په پښو کولې ، ښځو به يې اوږد کميس او پرتوگ اغوسته او د مرواميلونه به يې په غاړه کول، ويښته به يې شانه د وه چوټنې کول چې په اوږو به يې زنگيدلې.

# د کوشانیانو نه تر یفتلیانو پورې

## د ۲۲۰ نه تر ۴۲۵ میلادي پورې

د کال «۲۲۰» نه د لویو کوشانیانو د ولت تجزیه شو، د یفتلي دولت تر ظهوره پورې «۴۲۵» میلادي پورې چې - تقریباً دوه سوه کاله زمانه وه په دې منځ کې په افغانستان کې منه او خوا و شا ډېر مهم تغیرونه وشو. په چین کې د - «هانها» دولت توټې توټې شو او په «۲۲۰» میلادي کې په هند کې د «گپتایانو» دولت منځ ته راغی چې د کوشانیانو بقایا یې د منځه وړل او په شمال د هندوکش د جیحون په شمال کې د سوړو کوچیانو زورونو هم ډېر شو خوله ناکامه واړه کوشانیان د هندوکش د شمال نه د هندوکش جنوب ته راغلل او د دریم قرن میلادي په اخر کې یفتلیانو د جیحون په شمال کې زمکې ونیولې - او د افغانستان په غرب کې پارتي دولت چې د دوم قرن نه مخ په خوړې روان وو په «۲۲۴» میلادي کې د اردشیر ساساني له لاسه د منځ نه لاړ او هم دا پېړه وه چې د روم امپراطور «والیرین» ساساني پادشاه شاپور ته ماتې ورکړه «۲۶۰» میلادي وه چې هغه امپراطور بندي شو - د

افغانستان په ګاونډ کې د ساسانیانو یو قوي دولت منځ ته راغی او د افغانستان غربي ایالتونه او شمالي مغربي ایالتونه یې لاندې کړه. ساسانیانو د ورېښمو لار بنده کړه او رومیان مجبور شوې بحري لاره پیدا کړي او د هند سواحلو ته ځان ورسوي د دې واقعاتو د اثر وشوې ځینې کوشانیان چې په باختر کې پاتې وو هغوی هم د هندوکش جنوب ته را واوښتل د دې ډلې مشر «کیدار» و او هم د ده د وړو کوشانیانو د و باني ګڼلی شي دې دولت د کاپیسانه د سند تر غاړو پورې د مملکت اداره په لاس کې ونیوله او د یفتلیانو د ظهوره پورې یعنې تر پنځمې میلادي پېړۍ پورې عمر وکړ او د دې کورنۍ حکمرانان د کیداریانو په نوم یادیږي او د ساسانیانو سره یې ډېرې جګړې کړې دي او تر پنځمې پېړۍ میلادي پورې یې خپل موجودیت ساتلی و او ګپتایانو سره یې هم ښه ګذاره کوله.

# افغانستان دیفتلي دولت په زمانه کې

## د ۴۲۵ نه تر ۵٦٦ میلادي پورې

هیاطله یا یفتلیان په څو نومونو په تاریخ کې یاد شوي دي په اصل کې د سیستي قبایلو د اجزاو نه دي او د شمال له خوا د سیحون حوزې ته راتوی شوي او راغلي دي، او د دریم قرن د آخره پورې د جیحون «آمو» نه هم تیر او شمالي افغانستان ته راغلي او لومړی وارې په «۴۲۵» میلادي کې په تخارستان کې یې یو نوی دولت جوړ کړی شو، د یفتلي قبایلو نه یوه مشهوره قبیله «زوالی» وه چې د غزني په ولایت کې استوګنه شوه او هغه علاقه په زابل یا زابلستان یاده شوه.

یفتلي لومړی پادشاه «افتایلتو» او «مهرپوره» وو او په تاریخ کې په دغه نومونو یاد شوی دی، دوی د ایران ساساني دولت سره چې د افغانستان شمالي او غربی ایالتونه یې نیولي وو په جنګ اخته شو او د مرو سره نژدې یفتلیانو د بهرام ګور ساساني نه ماتې وخوړه خو د پنځمې پېړۍ په نیمایي کې ساساني دوم یزدګرد د مرغاب په علاقه کې ماتې

وکړه - د يفتليانو قوي ترين بادشاه «اخشنور» وو چې په «۴۶۰» ميلادي په حدود کې بادشاه شوی وو اخشنور هم د ساساني دولت سره ونښت او په سختو جنګونو کې د ايران لښکر ته ماتې ورکړه او د ايران شهنشاه «فيروز» چې په «۴۵۱» ميلادي کې بادشاه شوی وو بندي يې وينولو فيروز باج او خراج ومانه او د دواړو ملکونو په سرحدي ځای پاتې مناره کې خوشې کړی شو او څېل ځوی يې «قباد» يې يرغل پرېښود، باج ورکړو او قباد آزاد شو خو دوه کاله پس يې په «۴۸۰» ميلادي کې بيا په افغانستان يرغل وکړو خو د ايران لښکر بيا ماتې وکړه او فيروز په جنګ کې ووژل شو او په ايران کې د هغه ورور «بلاش» د زردشتي روحانيونو په مرسته بادشاه شو - خو اخشنور يفتلي بادشاه قباد چې د هغه خور د اخشنور ښځه وه او په يفتلي دربار کې پناه اخيستې وه اخشنور ورسره فوځي کومک وکړو او دی د ايران بادشاه شو او د يفتليانو خراج يې ومانه، له دې نه پس اخشنور د هندوکش د جنوب کاپيسا نه نيولې تر پېښور پورې زمکې د کيداري دولت نه چې په پېښور کې متمرکز وو ونيولې او هغوی غرخانه خوا غرونو ته لاړل او په دې ډول يې د افغانستان سياسي وحدت او «يو والی» جوړ کړو - د اخشنور د مرګ نه

وروسته یفتلي باد شاه « تورامانا» د هند خواته متوجه شو او تر پنجابه پورې یې ځمکې رالاندې کړې د تورامانا نه- وروسته یې ځوی «مهراکولا» دخپل پلار پالیسي ورپسې تعقیب کړه او هندوستان ته ورننوت او دگپتا یانو- قوي دولت ته یې ماتې ورکړه او دغه لوی دولت تجزیه شو او واړه محلي حکومتونه په هند کې منځ ته راغلل خو د هند خلك د یفتلیانو د زور زیاتي نه په تنگ وو ، نو ټول واړه محلي حکومتونه سره یو شو او په کال « ۵۲۸ » میلادي کې یې یفتلي دولت ته ماتې ورکړه او په شا تللو ته یې مجبور کړو چې د- سند او کشمیره پورې په شا لاړل - هدا واقعه د هند د آزادی او د یفتلي دولت د ټوټې ټوټې کېدو سبب شوه او افغانستان د ځو محلي یفتلي امیرانو په لاس کې وو چې د ځینو سکې هم شته او په دې ډول یفتلي امراو تر ۵۶۶ میلادي پورې دوام وکړو

## د یفتلی دولت ټولنیز حال:

یفتلیانو په افغانستان کې څه خاص نوی تحول نه وو کړی هم هغه د ورو کوشانیانو په زاړه پله روان وو خو په مذهبي ساحه کې د کوشانیانو په شان د بودایت پیرو نه وو او د بودایت په ځای یې برهمنیت او مترا پرستۍ ته اهمیت ورکولو

یفتلي دولت يو منظامي دولت وو نو په ښارونو کي پخواني رونق پاتې نه شو که څه هم د هند او چين سره يې تجارت روان وو، صنايع هم څه خاص پيشرفت نه وو کړی او د ګري ګوبو ديک صنعت هم له منځه تللی وو.

د خيرخانې د کوتل د حفرياتو نه د يفتلي دورې ځينې بلګې په لاس راغلي دي چې د پنځم قرن د يفتلي دولت متعلق ځينې اثار پکې ميندل کيږي د يفتلي دولت اهميت د سياست په ساحه کې وو چې پس د لويو کوشانيانو نه يې د مملکت وحدت تامين کړی شو او د افغانستان د وو برهمني او متزا پرستي دين ته به يې په ښه درنه سترګه کتل،

# په افغانستان کی ساسانی دولت
## او د ترکی عنصر نفوذ

مرکزي او شرقي آسيا د نمرخاته خوانه د منچوريا او خينګان غرونو او د چين د لوی د يوال سره او په نمر پريواته د خزر بحيرې سره لګيدلې ده د دې ارتې زمکې په شمال کې د سايبريا د ښتې او په جنوب کي د تبت او هماليه غرونه پراته دي. د خذر او بايګل په نمر پريواته برخه زمکې او د پامير دلوړ واو

د بایگل حوزه دچین د د هواله اوخنگان پوري نمرخاته خوا
ته دالویه علاقه تشکیلوي ؛- د مغلستان علاقه هم ددې
شرقي «نمرخاته» پلو په شمال کې واقع ده د دې علاقوشکلې
صحرا او سختې گرمۍ او سختې یخنۍ اولوړو و غرونو او
ښو گیاوو او وېرو او بو د ژوندانه مساعد شرایط منځ ته
راوړي دي، دا مساعدې برخې دي ؛ اول حوزه بایکل وو
چې د مغلو اصلي ټاټوبی دی. دویم ؛ د بالخاش حوزه چې ؛ د
ترکانو اصلي مسکن دی،. دریم ؛- د تارم حوزه ،چې د اریایانو
اصلي مسکن وو، او داتم قرن نه ترکانو لاندې کړه. څلورمه د
ارال حوزه د ماورالنهر سره او د سیحون او جیحون په منځ کې
زمکې او د خوارزم علاقه - دارال حوزه لومړی د اریایانو د
او سېدو ځای وو خو وروو ترکان او ترکمانان پرې-
راغلل او هلته یې حکومتونه جوړ کړه - ځینې مغل چې داریایانو
سره گډ شو نو د ترك نوم پرې کېښود شو او ترکمانان هم ددې
مخلوط نسل نه را پیدا شوي خلك دي. سلجوقیان هم ددې
ترکمانانو نه دي او ازبك د شرقي ترکانو نه دي او ژبه یې
هم هغه چغتائي ترکي او ترکمني ژبې ته نژدې ده - او دا
د واړه ژبې د یوبلې سره نژدې او د مفاهمې وړ دي - او
د واړه قومونه د یو بل په ژبه پوهیږي - خو نننې ترکان د دې ترکانو

دجلي نه دي ، د مرکزي او شرقي اسيا خلکو اکثرو بدوي او
د کيږدو شوند کاوه نو ځکه به يې په خپلو گاونډي شتمنو
ولسونو او ملکونو يرغلونه کول ـ او په چين او ماورالنهر ـ
افغانستان او ايران باندې به يې چپاونه او يرغلونه راوړل
او په هند باندې دحملي کولو مانع خود هماليه غرونو او هند
ته د تللو لاره په ماورالنهر او افغانستان ورغلي وه او دغي
ته د مهاجمينو سترگې وې چې بابري مغلو هم له دغې لارې نه په
هند ورغلل او هلته يې پلوى بابري دولت تشکيل کړو او
سلجوقي دولت د ايران له لارې تر ورې آسيا د اسيا صغير،
پورې ورسيده ، او دې دواړو د ولتونو دري شعر او
ادب په هند او وړه آسيا کې خپاره کړه او رواج ئې ورکړو
ترک خلکو چې کوچي ژوند يې کاوه ځيني شرقي ترکستان کې متمدن
شو او علم يې هم زده کړو او خط او ادب او صنعت هم ياد
کړو او سرياني خط يې په ترکي الفبا سره ومانه او دووبغورو
ترکانو په شان چې د ترکانو او مغلو د اتمې پيړى د تمدن په
سر کې وو ـ شو بناري شوندون او او به خور او کروندي
ته يې توجه وکړه ، مغلو په دولسم قرن کې ، خط د محمدي
اووبغورانو نه زده کړو ـ او قراخاني ترکانو سره چې څه د ـ
اويغورو او څه د چيني تمدن د تاثير لاندې راغلي وو

× روبغور

په شرقي ترکستان او غربي ترکستان او ماوراالنهر کې سیاسي مؤسسات تاسیس کړه. مدني ترکان او بدوي ترکمانان دواړه په مذهبي چارو کې د شرك نه ېنولي بت پرستي کړې ده او په زردشتي او مانوي بودایي عیسوي دینونو پیروي هم کوله. او څنې دلسمې پېړۍ نه پس د اسلام د دین سره بلد شو او بیا د اسلام د دین کلك مدافع شو.

او هغه ترکان چې ماوراالنهر افغانستان او ایران ته تللي وو ورو ورو د هغه ځای د تمدن د تاثیر لاندې راغلل او بیا د هغه ولسونو تینګ ملګري وو او د مهاجر بدوي ترکانو او مغلو په مقابل کې به جنګېدل؛ او هم دوی په اسیا صغیر او هند کې د اسلامي تمدن دخورولو په کار کې مهمه برخه ولخستله ترکو خلکو چې پخوایې کوچي ژوندون کولو ورو ورو مدني شو څه فرق او تفاوت چې د ترکو او ترکمانانو په راتللو کې وو هغه دا وو چې ترکانو وکولی شو چې په ځینو ملکونو کې اکثریت ترلاسه کړي او هلته یې حکومتونه تشکیل کړه او دیو مسلطې قوی په تکل هلته واکدار شو لکه ترکان په ماوراالنهر او خوارزم کې او ترکمانانو په اسیا صغیر او سنه ترکیه، کې خو په ځینو ملکونو کې ترکان د هغه ځای په اصلي ملت کې ورګډ شو او ژبه او تمدن د هغوی یې ومانه او د هغوی په شان شو

لکه په افغانستان او هندوستان او ایران کې په ادب او تاریخ کې یې بیاخه خاص بیلتون نه لیدل کېده.

او په هند کې خو ملت په دوو طبقو مسلمان او غیرمسلمان - وېش وو هلته خو یې هیڅ تفاوت نه وو یو شان ټول - مسلمانان یو ملت گڼل کېده، ترکي عنصر د شپږمې پېړۍ نه لومړي وار - افغانستان ته رانوت او التایي ترکان په پنځمه پېړۍ کې کله چې چې د «توپا» د امپراطورۍ زورېږي راغی په منگولیا کې په ځینو ځینو قبیلو غالب شو او بیا نو د غرب خواته متوجه شو او د تارم د حوزې نه تر د سیحون د حوزې پورې ورو غزېدل او په سغدیانه کې یفتلیان هم لاندې کړه او د شپږمې پېړۍ په دویمې نیمائۍ کې د دوی قوم د جیحون په غاړو کې هم راخور شو د ترکو لوی امپراطور «تومن» چې د منگولیانه تر اراله پورې فرمان چلېده - په دغه وخت کې مړ شو او د هغه لوی قلمرو په دوو برخو شرقي او غربي ووېشلی شو - په شرقي برخه کې «موگان خاقان» د تومن خان ځوی باد شاه شو چې په منگولیا کې وو - او په غربي برخه یې «ایستامي خان بیغو» باد شاه شو چې د مملکت ساحه یې کاشغرستان او د سیحون حوزه او اوال وو.

ترکي غربي دولت زر د ایران د ساساني دولت سره یوځای

او متحد شو او په افغانستان کې واړه یفتلي حکومتونه -
مات او له منځه یوړل. او په «٥٦٦» میلادي کې یې د جیحون
په ښي غاړه د ترکانو او چپه غاړه یې باختریان یې د ساسا-
نیانو سلطه راغلله او د افغانستان شمال غربي ایالتونه هم
ساسانیانو ونیول په دغه وخت کې د ایران ساساني باد شاه
«خسرو نوشیروان» وو. خو وروسته د دې دواړو اتحاد
په دې چې د وریښمو د تجارت په لار کې ایراني دولت -
واقع وو او ترکانو ازاد ترانزیت غوښتو او ایرانیانو دا خبره
نه منله د دوی اتحاد وران شو او د دواړو په منځ کې -
جنګونه جوړ شو او د غربي ترکانو «تارد وخان» پیغوی
یې د عیسوی شپږم قرن په اواخرو کې د ساساني دولت
د قوت سره سره د افغانستان د شمالي ایالتو د بدخشان
نه نیولې ترمیمږې پورې د غرب خواته په شا کړه او د ساسانیانو
ځای دغلته دوی ترلاسه کړو او دا وو چې غربي ترکانو
دا د له شمالي افغانستان ته راننوته او د هندوکش په شمال
کې طوایف الملوکي حکومتونه جوړ کړه چې تقریباً «٢٠» واړه
امارتونه وو او د ټولو مرکز قندوز وو چې د لوی واکمن
تابع وو دا حکومت د افغانستان په شمال کې او د کاپیسا-
حکومت د هندوکش په جنوب کې چې د کابلستان نه نیولې تر

سنده پوري ((۱۰)) محلي امارتونه وو او مرکزيې باگرام وو او لمن يې په جنوب کې تر ارغنداب رسېدله - د مملکت غټ حکومتونه وو چې لومړی يې د ساسانيانو او بيا د عربو په مقابل کې د افغانستان د استقلال او خپلواکۍ ساتنه کوله . دغه شمالي حکومت چې د افغانستان په تاريخ کې د ((تگين شاهي)) په عنوان ياد شوی دی د کابلستان د حکومت په شان د بودايي ديانت پيرو وو - ((هيوان تسنگ)) مشهور چيني سياح چې د عيسوي اوومې پېړۍ په اول کې - ((۶۳۰)) ميلادي کې چې د افغانستان د شمال نه نمرخاته خواته په سيل راغلی وو د خپل سفر په اوږدو کې د بلخ، قندوز باميانو او کاپيسا نه تر لغمان او گندهارا پورې يې زر معبدونه ليدلي وو چې اته زره بودايي راهبان پکې په تبليغ بوخت وو - له دې نه نور ډېر بودايي معبدونه او راهبان چې چيني سياح ليدلي وو په دې علاقه کې وو - چيني سياح د تخارستان د بادشاه ((تارود شاه)) د ميلمه پالنې او دين داری ستاينه کړې ده .

د دې بودايي دين نه په غير په افغانستان کې نور دينونه لکه برهمني او شيوايي دينونه او افتاب پرستي په شمال الشرق او څه په جنوب د مملکت کې او پخوانی

زردشتي دين يې په غرب کې لاره - د مملکت په شمال کې د تګين شاهي حکومت او په جنوب يې د کاپيسا حکومت وو او د مملکت غرب د ساسانيانو په لاس کې وو او نور وا په محلي امارتونه ووځو په اوومه ميلادي پېړۍ کې د چين د تانګيانو دولت وکړې شو چې کاشغرستان ونيسي او په چين ورتري او خپل سياسي نفوذ د سيحون او د افغانستان تر شماله پورې خور کړې خود تګين شاهي د حکومت د دوامه او د اسلام د ظهوره پورې پر نور څه ونکړې شو -

د زماني په تېرېدو سره د نورو اغلو ترکانو او د - ولس په منځ کې چې ګنتې سره ګډې وې داسې يو والى راغى چې توپير يې منشوکېدلى او په نتيجه کې يو ملت شو او اسلام د وحدت لا پسې نورو هم ټينګ کړو - چې - بيلتون او توپير يې هيڅ هم نه شو پاتې - او يو دين او يو ملت شو -

# د عربو استیلا او د افغاني ولس پاڅونونه

## د ۷ پېړۍ نه تر ۹ میلادي پېړۍ پورې

## «ظهور اسلام»



د دوهمې مسیحي پېړۍ پورې اکثر عرب خلک په داسې
ځمکه او سیمه کې چې او به پکې لږې وې او ګیاه یې هم لږه
لرله چې په اصطلاح عربستان ورته وایه شي . او قبیلوي
ژوند یې کولو په هغه وخت کې سوریایي عرب د بېزانتش(۱)
تابع وو او د فرات د وادۍ عرب د ساساني ایراني دولت
تابع وو . عرب خلک که څه هم مالدار وو او مالداري یې
کوله خو په ښارونو کې تجارت هم ښه روان وو او د مکې
معظمې ښار د تجارت مرکز وو او د چاپېریال اقتصادي مرکز
هم ګڼل کېده . او د مصر او شام تجارتي کاروانونه به د عربستان
له ښارونو نه تېرېدل ، او د دې کاروانونو سره به نوي
فکرونه د نورو خلکو سره تلل راتلل . په منځ کې راغلل ، مکه .

(۱) د روم دولت

مکرمه چې د عربو مذهبي مهم مرکز وو هلته غسې د تجارت مرکز هم وو. د بیت المقدس او شام، یمن او عمان رومي او حبشي او نورو خلکو مکې ته تګ راتګ کولو او تجارتي کاروبار به یې کولو. متوجي او کریمه احجار (بنه کاڼي) او نور به مکې ته وارديدل او بیا به ترې صادریدل د توکو شیانو د مکې د ښار په مادي رونق کې نور د پروالی «اضافه» کولو. د مکې خلکو ورځ په ورځ نوي معلومات وصولول او په معلوماتو کې به یې د پروالی کیده او د یهودو د توحید وعقیدې او د نصارا د معنویت نه هم خبریدل او په دغه وخت کې د عربو دا حال وو چې یوازې په بیت الله شریف حرم مکه کې د عربو د مختلفو قبیلو (۳۶۰) بتان پراته وو او خلکو به باطل پرستي کوله د قریشو قبیله چې د اقتصادي او مذهبي مشرۍ اداره د مکې د ښار د دوی په لاس کې وه د توکو نه مخکې د منظم او اداري او د مرکزیت د لزوم احساس کولو او دا ځکه چې د ښروندانه په ساحه کې لوی اختلاف او تضاد د ښاروزو او نورو خلکو په منځ کې موجود وو او د ایران او روم نه په عربو باندې د تجاوز او تیري د مخنیوي د پاره او یوازې د عرب قبیلو په منځ کې د جنګ جګړو د مخنیوي د پاره د مرکزیت او امنیت د جوړولو په فکر کې وو او هغوی د اغوښته چې د بحر

هند او بحر روم تجارتي لارې چې دوى ته يې ډېرې گټې راجع وې ښې وساتلې شي - عربو خلکو چې ښه ادبي او جنگي استعداد درلود او د آزادۍ خواهش او استقلال تمايل هم وو - خو د چېل اقتصادي طبيعي تنگسې نه هم په تنگ وو او غوښتل يې چې د گاونډيو ملتونو په شان د خوشحاله او آرام ژوندانه خاوندان شي عربو د علم نه څه برخه نه لرله يوازې طبابت او گياه شناسي او څه نجوم او ستارو سره اشنا شوي وو چې د بابلي سايبينو نه يې زده کړي وو - طب يې هم عبارت وو د دم، دوعا او د اندامونو غوڅولو نه وو - او ځينې دارو گان او شربتونه به يې هم استعمالول ، په فال گيرۍ يې هم عقيده وه او جادوگري يې هم کوله ، خو د دوى قوي ژبه خطابو ، شعر او د انسابو علم ته - وقف وه - د بلې خوانه د عربو په خوا کې د وه لوى امپراطورۍ ايران او شرقي روم پرتې وې او مغوى د ترقي قوس سعودي وهلي وو او اوس څه مخ په ځوړ ښکارېده د ايران ساساني دولت چې د افغانستان نه تر فرات[1] پورې او د قفقاز نه نيولې تر خليج فارس پورې حکم چلېده - او د چين او هند د تجارت لارې هم د مديترانې پورې په لاس کې وه نو د تجارتي -

---

[1] فرات او دجله د عراق مشهور سيندونه دي -

مالونو نه به یې محصول او مالیات اخېستل، ښه غني موږ دولت وو د ساسانیانو د دولت پایتخت په تیسفون کې چې د دجله په سرکې واقع وو پروت وو او د لیو معظم او ښکلی ښار وو د ساسانیانو هنرم په مخ تللی وو د ساسانیانو منساجي او فلزکاري ډېر شهرت درلود - مخابرات او مواصلات هم هغه د چاپار په سستم روان وو څو په مخ تللی وو مصنوعي اوبه خوړ ابیاري، هم وده کړې وه خو د ایران د دربار اسراف او تجمل د خلکو ملا ماتوله ځکه چې ډېره او بې شماره مالیه به ترې اخستل کېده -

ویلی شي چې دریم یزدګرد ساساني بادشاه چې د عربو د ښکرو نه ماتې وخوړه او د افغانستان خواته تللو نوم یو زر اشپزان او یو زر سازنده ګان د وه زره بازوانان او ښکاریان د هغه سره ملګري روان وو د ایران فیودالانو هم حرکتکولو قدرت په لاس کې وو او په ایران کې به یې یو حکومت لرې کولو او بل به یې په هغه ځای د خپلو منافعو د پاره راوستلو او د مرکزیت نه یې کرکه کوله او په ضد یې وو، د وی د دویم خسرو د مرګ نه پس په څلور کاله کې د ولس بادشاهان په تخت کښېنول او بیا یې ترې لرې کړل ترڅو چې دریم یزدګرد بادشاه شو - د ایران په جامعه کې طبقه بندي او اجتماعي تصنیف

ډېر سخت ؤ، چې چا نشو کولی چې لوړې طبقې ته ورشي او ځان ورسره ګډ کړي، جبر او مذهبي تعصب د ومره کلک وو چې خلک مقید ساتل شوي وو، که چا به غاړه وغړوله د ټولو حقوقو نه به محروم کېدلو، اشرافیت میراثي او قانوني وو او رسمي مقامونه هم په میراثي ډول د څو کورنیو په لاس کې وو، د شهزادګانو او متنفذو خلکو روحانیونو په لاس کې ځینې ځمکې وې چې د هغو مالیه هم معاف وه مالیه او نور ټول الابلا د د هقانانو په سر وه.

ګروندګر د ځمکې جزګڼل کېده چې د چا پلاس کې به ځمکه وه د هغه ځمکې کروندګر هم د هغه مال ګڼل کېده دې اوضاعو ته خلک ډېر په تنګ وو د قضاچارې هم د بادشاه او روحانیونو په لاس کې د اوېستایي سیاست په بناوې او سختې جزاګانې به ټاکلې کېدې.

د پنځم قرن په اواخرو کې «مزدوک»[1] نومې یو سړی پیدا شو او یو ډول کلي وال اشتراکیت یې منځ ته راوړ یې ډېره خلکو د هغه د نظریاتو حمایت وکړ، خو حکومت «نوشېروان» د خپلې وېرې مزدوک په (۵۲۹ م) وینوا وبندي

---

(۱) ویلی شي چې بادشاه قباد د نوشېروان پلار هم د مزدوک پیرو وو.

کړو او له منځه یې یوړ.

ساساني دولت د افغانستان د یفتلي دولت سره په جنګونو ستړي شوي وو او کامیاب نه وي راوتلي وو. د سوریې او ارمنستان د نیولو په سر د روم د دولت بیزانس سره په جنګ جګړو اخته شو دې جنګونو د واړو جانبو ډېر ستړي او تاواني کړه، دا جنګونه د شپږم قرن او اووم قرن په اوایلو کې وو. د ایران دولت تجارت، صنعت د رلودل خو مهم علوم نلرلې په لږ و ډیر طبابت پوهېدل او هنر او موسیقي یې هم درلوده، آهنګري او نساجي وده کړې وه، او د طلاو نقرې مسکوکات هم وو او ښکلې بناوونه یې هم لرل او د تجارت لارې یې شرق او غرب ته خلاصه وه.

د عربستان په شمال کې د روم شرقي امپراطوري پرته وه چې د اروپا د پخواني تمدن وارث ګڼلی کېده، اروپا پخوا د جرمن او هون قبایلو د یرغلونو له کبله د څلورم قرن نه تر پنځم قرن پورې مروړلي شوي او مضمحل شوي وه او د روم د امپراطورۍ او د هغه د بردګۍ نظام د سقوط او راڅپه کېدو سره یې بناري ژوند ګډوډ شوی وو صنعت او تجارت کمزوري شوي وو او علم او فرهنګ یې مخ په ورکاوي وو اروپایي ملتونه چې مسیحي شوي وو په څپلو

منځوکې سره د فیوډالي دولت حکومت په جوړېدو او د-
کلیسا په اغېزو سره ښېښتي وو. او مسیحیت هم د ارتقاپلو
دخپلو پیروانو د تللو مخنیوی په توجه سره کاوه - مسیحي
اروپا هم د هغه څلورم قرن نه د یونان دپوهې سره
مخالفه وه - او دخرافاتو او تقلیدي حکومت په ولسونو
کې چلېده - اوهم د دغه قرن په آخر کې دیني غونډې
(کارتاژ) د عیسویت نه پرته د نورو اثارو لوستل بندکړه
او په پنځم قرن کې د قسطنطنیه دیني شورا دکلیسا اسقف
او نسطوریان په دې گناه چې عیسوي دین یې دیونان
د فلسفې سره موافق ښودلو د پایتخت نه وشړل اوشپږم
قرن کې زوستینن د شرقي روم امپراطورۍ واکدار داتن
پوهنتون بندکړو او عیسوي پوهانو به هم د ونو په پوټکو
او یا په څرمنو د پخوانۍ علم کتابونه لیکل چې پکې به موجود
د واگانې وې - نو په دغه وخت کې اروپا د منځنیوپېړو
په دورانه خوب تر ډېره پورې ویده وه خو د شرقي
روم امپراطورۍ چې څه د اروپا په جنوب شرق او د-
اسیا صغیرکې او په شمال شرقي افریقا کې لاپاتې وه -له هغه
وخته چې د پخوانۍ روم امپراطورۍ په دوو برخو شرقي او
غربي په (۳۹۵) میلادي کې وېش شوه شرقي برخه یې د

غوبی برخې په نسبت قوي او مالداره وه او علم او فرهنګ یې هم درلود او په دغه شرقي برخه کې یې ښه غټ غټ ښارونه او تجارتي مرکزونه او صنعتي موسسې هم وې لکه د قسطنطنیې ښکلی او لوی ښار چې وو او په هم دغه دوره کې معاري ښه ودانه کړې وه چې د سنت صوفي کلیسایي مهمه بلکه ګنبد کیږي او د قسطنطنیې نور عمارتونه او میدانونه هم ډیر مشهور وو او د روم د امپراطورۍ هم دغه شرقي برخې چې د وچې او اوبو له لارونه د شرقي ممالکو سره تړلې وه نو تجارت یې هم ښه مخ په وړاندې روان وو او د چین او هند او افغانستان او ماوراالنهر او د عربستان او حبشې مالونه به یې بازارونو ته راتلل - او پخپله په دغه مملکت کې د ډیرې ښکلې او ښښې توتې هم جوړیدلې او شیشه یي لوښي هم پکې جوړیدل او وریښم د شینم قرن نه د غلته راپیدا شو، او د بېزانس[۱] سودا ګرو به د اروپا د مالدارو او لویو طبقو د خلکو د پاره تجملي اشیا رسول - او دولت یې د ګمرکي محصول له عایداتو نه ښه غني او موړ وو او د غلې تجارت هم انحصار وو

---

(۱) بیزانس د دغه امپراطورۍ مشهور ښار وو.

او د دولت په ولقه کې وو چې ګټه یې لرله. له دغه امله د
شرقي روم امپراطورۍ منظمې قانون وکړلی شو چې خپل
حدود او سرحدات د کوچیانو کېږدۍ والوله دا رو او
یرغلونو نه وساتلی شي او مملکت او قلمرو یې د شبه جزیرې
بالقان او وړې اسیا، اسیاصغیر، نه تر سوریه او فلسطین
او مصر او د مدیترانې د نمرخاته پورې ساتلی شوی وو او
امپراطور ژوستنین د واندالیانو قلمرو د افریقې په شمال
او په ایطالیا کې پر شرقي ګوتیانو هم بریالی شو او په غربي
ګوتیانو یې د هسپانیه په جنوب کې هم بری وموند او په دې
توګه د مدیترانې فرمان روا وګڼلی شو. د بل پلوه د امپراطور
استبداد او بې سرحده اختیار او واك خلك د ملك په اداري
چارو کې د برخې اخیستو نه محروم کړي وو او د مریتوب
نظام پرې چلېده. او مالیات ورځ تر ورځه پرې زیاتېده
په نتیجه کې خلك په تنګ شو او پاڅونونه یې وکړه د دې
پاڅونونو نه یو د قسطنطنیه په (۵۳۲) میلادي کې پاڅون و چې (۳۰) زر
دېرش زره شورشیان پکې ووژل شو. همدا ډول پاڅونونه
په مصر او سوریه او فلسطین کې هم وشوې د دولت هغه په
ډېر زور او شدت غلي کړي شو خو خلك د یو مساعد فرصت په
لټه کې وو لمبارډیانو ایطالیه د بیزانس د امپراطورۍ نه خلاصه

کړه . په دې ترتیب او ووړل د روم شرقي امپراطوري په ښکاره
خوځنده زور جلال او لوړ تیا په رسمي ووړل ښودله خو رښتیا
دا وه چې ټولنیز حال یې مخ په ځوړ او انحطاط ووا و قسطنطنیه
چې د پخوانه یو علمي مرکز د ټول جهان ګڼل کېده او س
دیو دیني او مذهبي مستخدم پوړ په اوځای ته راغلی وه
او په ولس کې په مذهبي تعبیرونو او تفسیرونو شخړې
او وهل او ټکول کېده او دا سبب وه چې د دولت د اجتماعي
ژوندانه د نور سمبنت نه پاتې وو . هم دا د شرقي روم
د دولت او د ایران د دولت د فسادونو نه ډک حال سبب
هم وه چې نوی ښکاره شوی عرب ملت په دواړو دولتونو
باندې حملې کولو ته تشویق کړ او په قوي عزم عربو کړی
شوې چې د ۶۳۳ نه تر ۶۵۱ م ، پورې د ۱۸ کاله په موده کې د
ایران ټوله شهنشاهي ونیوله او سوریه . مصر او فلسطین هم د
روم د شهنشاهۍ نه رابېل کړه د دغه رنګه اجتماعي شرایطو سره
داووم میلادي پېړۍ په اوایلو کې په عربو کې د اسلامي
تویانت اعلان وشو او په لسو کلونو کې عربو او د قریشو قبیلې
دغه دین ومانه او ور سره یې نږدې هم وکړه و رپسې نورو
عربي قبایلو د اسلام دین ځکه ومانه چې د دوی مادي ږغوښتنو
سره برابر او موافق وو د اسلام دین یو مرکزیت او یو دین

او عمومي امنيت او ملي استقلال د وی ته ورکولو او د دې نه هم ورته عرب ورځ په ورځ ډېرېدل او مملکت یې فقیرېدو او عمومي اقتصاد يې حقیر، سپک، وو نو د کلمة الله د لوړتیا په شعارونو راپاڅېدل او د پخوانۍ دنیا په جللو او شتمنو امپراطوریو راغلل او مشرانو به یې عرب د فتح او غنیمتونو د ګټلو پلو رهبري کول د اسلام دین قادر وو چې د مختلفو ملتونو او قبیلو تر منځه یو والی او کلک ملي وحدت جوړ کړي.

د اسلام دین وکولی شو چې خپل پیروان د اسلامي دین په اساس او عقیده په مرګ مقدر پوه کړي او ایمان پکې ولچاوه نو ځکه عربي لبنکر نه ماتېدونکی او ردو په شکل منځ ته راغی چې د اطاعت روحیه او د اسلامي قوانینو منه هم ورسره وه دا داسې سره ګډه وه چې هېڅ نه بېلېدل نو د دغسې اردو وظیفه د دنیا فتح کول وه او اجر یې په ژوندانه کې سرلوړي او ډېر غنیمتونه، ولېږ، وې او پس له مرګه موعود جنت وو- عربو د خپل ژوندانه مراد په ټولنه او سیاست او قضا او حکومت کې مانه او حتی چې مراد د فکر او معیشت یې هم په دین ولاړ وو، نو له دې امله د عربو قوي او فاتحه عربي جامعه منځ ته راغله البته د ینونو هر یوه پخپل وخت کې

نوي سازمانونه د خان سره راوړي وو لکه تورات شريف
دوه زره کاله مخکې د اسلام نه راغلی وو او احکام او مقررات
يې راوړي وو او رايج کړي وو او د خلکو حقوق او د
ملکيت حدود يې او د کورنو حدونه او د جرم جزاء يې
ښودلې او معلوم کړي وې هم داړول مسيحيت د غلامۍ په
سخت وخت او دوره کې راغی چې د مريونو دردونه او کړاونه
او فقرلن کړي او د مريونو دردونه تکور او تسکين کړي
تحول او تجمل د افراط نه ډډه وکړي او د مينې او
محبت اعلان وکړي، موسوي دين اکثره په د نيايي جنبه
او عيسوي دين په معنوي جنبه ولاړ وو او د اسلام دين
دا دواړه دينوي او معنوي جنبې سره يوځای کولې او
د مسلمان په يو لاس کې به قرآن او بل لاس کې توره وه
که څه هم عربو د خپلې ژبې د خورولو د پاره په خلکو زور نه
اچولو او توره يې نه ګوابنوله خو کله يې چې معنوي علم حاصل
کړو او ژبه او ادب يې مخکې ولاړ نو د عربي ژبې-
خورېدل په اسانه سره وشو او عربي ژبې د اسلامي
ملکونو په دفترونو کې رواج وموندہ او حال دا چې داوومې
پيړۍ د اواخرو پورې عربو به په دفتري چارو کې د بومي
منشيانو نه کار اخستلو او هغه څوک به يې د چارو د اجرا

د پاره استخدامول چي د صفه محل په ژبه به پرېښودل، اسلام د خپلو تعليماتو سره د پخوانۍ دنيا په مقابل کې يو مبارز دين وو او د ټولنې زاړه نظامونه يې لغوه کړل او د دولت اختيارات يې دا ډول مشخص کړه چي په نهايي د اول قرن کې اسلامي ديموکراسي د يونان د ښارې ديموکراسۍ او د مريتوب د رژيم نه يې توپير او امتياز درلود.

## د اسلام پيغمبر او خلفاء اربعه راشده يعني څلور ياران

حضرت محمد مصطفی صلی الله عليه وسلم د اسلام پيغمبر په (۵۷۰) مسيحي کې دنيا ته تشريف راوړ او په (۶۱۰) ميلادي کې يې د اسلام د دين په ښکاره تبليغ پيل وکړو پخپل اصلي وطن مکه معظمه کې ورته کفارو ډېر تکليفونه پېښ کړه او اخر د لوی خدای جل جلاله په امر د مدينې منورې ښار ته په هجرت کولو مجبور او مکلف شو. او په (۶۲۲) ميلادي کال کې يې مدينې منورې ته هجرت وکړو او د شلو کلونو په موده کې چي څو جنګونه يې د کفارو سره وکړه لکه د بدر مشهور جهاد د احد جهاد، د خيبر جهاد، داومته الجندل جهاد شو او -

ملحې لکه د حدیبیه صلحه ، د تبوك صلحه شوه ، د عربستان څه برخې فتح او ونیوله او د شام خواته یې د فتحې دپاره اسلامي لښکر ولېږلو او د اسلام پیغمبر د شرقي روم باد شاه او د ایران او حبشې باد شاهانو او د یمامه او بحرین او غسان امیرانو ته هم د اسلام د دین لیکلي بلنې ولېږلې او په (۶۳۱ میلادي) کې مکه معظمه هم فتحه کړه او د اسلامي دولت مرکزیت جوړ کړی شو او په (۶۳۲) میلادي کې یې د ژوندانه سترګې پټې کړې او د دې فاني دنیا نه یې کوچ وکړو.

د پیغمبر اسلام په ځای ناست کسان «خلفای راشدین» «امیرالمؤمنین ابوبکر صدیق (رض)، عمر ابن الخطاب (رض)، عثمان غني (رض) او امیرالمؤمنین حضرت علي ابن ابی طالب وو» دوی وکړی شول په (۶۳۲) میلادي نه تر ۶۶۱ میلادي پورې د (۳۰) کلونو په موده کې د بیزانس یعنې د روم د امپراطورۍ آسیایي برخه تر دمشقه شام پورې او مصر او شمالي افریقا تر قرطاجنه د دروازې پورې او عراق او د ایران مملکت د افغانستان تر بریدونو پورې فتحه کړې او د اسلامي لوی شهنشاهي یا اسلامي خلافت تاداو یې په دنیا کې کېښود او د دغه قوي اسلامي دولت یا خلافت د اخاصیت وو چې په چارو کې به یې د اسلامي مشرانو سره مشورې کولې او په

دربار کې ساده شوندوو او په تقوا متصف وو او په قول و فعل کې د قرآن د ارشاداتو سره او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د سنتو سره سم وو او د خلکو په منځ کې برابري او مساوات او اسلامي عدل د اسلام د قانون موافق ـ چلېده او دجهاد عزم او اراده او جذبه په جهان کښې د اسلامي اصولو دخوړولو د پاره په مسلمانانو کې وه ـ خو افسوس چې دغه اسلامي او عربي خصوصیتونه په مسلمانانو کښې تر ډېره پاتې نشو ځکه چې امویان منځ ته راغلل.

# امویان

اموي لوی شهنشاهیت په «۶۶۱ میلادي» کې د خلافت راشده ځای ونیولو او تر «۷۵۰» میلادي پورې وو په دغه موده کې څوارلس تنو امویانو سلطنت کړی دی او دغه وخت کې ښکاره په سیاسي او اجتماعي او اقتصادي وضع کې تغیر پیښ شوی دی، اموي دولت په کال «۶۶۱م» کې او «۶۶۲م» کې د افغانستان په شمال غرب کې د نیشاپور او هرات ولایتونه ونیول او مخ په بلخ روان وو او په غرب

او جنوب د افغانستان کې د کرمان ولایت او سیستان او مکران یې هم ونیول او وروسته یې د سند په حوزه کې هم قدم کېښود،

همدارنګه په (۶۷۴م) کې د بخارا په مملکت کې هم سوقیات وکړه او په (۷۱۱م) کې ماوراءالنهر ونیولو، اموي فوځونه په کال (۶۹۳م) د قرطاجنه نه د اتلانتیک د بحر سواحلو ته ورسېدل، او په کال (۷۱۰م) کې اسلامي فوځونه د اروپا په سواحلو کې ورښکته شو، او په کال (۷۱۲م) کې د توليدو ښار ونيولو او د بونيک حکومت يې له منځه ويوړ د دغه کار د انجام نه وروسته اسلامي دولت په کال (۷۳۲م) کې د فرانس د مملکت په جنوبي برخه کې هم عسکرکشي وکړه سره د دې چې مخکې يې د سيسيل او ساردين او همدغسې يې بلاد ارض روم يې تر (۲۰۰م) پورې نيولي وو او د شرقي روم د امپراطورۍ پايتخت قسطنطنيه يې يو وارې قلعه‌بند کړې وو نو پدې ډول اموي پادشاهت شرقاً او غرباً د اباسیند د غاړې نه تر بحراطلسه پورې او پنځه سوه وره دا ارت او پراخه دولت په دنيا کې د خپلې زمانې د ټولو نه لوی دولت ګڼل کېده، دا لوی اموي دولت د پيدايښت نه اخوا تر مرګه پورې د افغانستان د ولس د خلکو سره په

جنګ جګړه اخته وو او په دې دومره ډېر وخت کې سره د قدرته امویانو ونکړی شول چې ټول افغانستان ترلاندې کړي او د افغانستان خلکو په دې ټول وخت کې د سیاست په صحنه کې او نظام کې د ځان نه دفاع کوله او اخر افغانانو وکړی شوچې دغه لویه او زورور باد شاهي د پښو لاندې کړي او په ځای یې عباسي دولت ودرېږي - اموي دوره د خلفاء راشده د دورې سره فاحش توپیر درلود - په دې معنی چې د خلفاء راشدو په وخت کې د ژوندانه ټول شرایط او د عربو معیشت یو برابر (متوازن) وو او طبقاتي توپیرونه دومره سخت نه وو او امویانو په نیولو ملکونو کې په مړو (غنې) او مخکې تللو ملکونو کې چې دوی نیولي وو هلته - د تجارت پراختیا او د پیسو د راټولولو کار د ملاکې او تجاري طبقې په ګټه وو او د دهقانانو او زحمت کښو غلامانو او فقیرو خوارو خلکو سره یې ډېر توپیر او تفاوت وو او د امویانو یو بل غټه خطا خو داوه چې په خپلو نیولو ملکونو کې د خلکو سره د عربي او نژادي عصبیت په اساس رویش کولو او د نیولو ملکونو خلک به یې سپکول او تذلیلول او د یو برابر حقوقو نه چې د اسلام د دین خاصه وو خلک محروم وو، په اموي کورنه کې یوازې «عمر ابن عبدالعزیز»

اموي واکدار وو چې د اسلام داصولو په اساس چلېده او په دغه کار کې هېڅ کامیاب هم وو او خلک یې د خلفاو راشده و په ډله کې هم حسابوي ـ امویان ډېر و فتحواو ډېرو ملکونو والاندې کولو متکبر او مغرور کړي او بې دریغه او بې شماره دولت عیاش او تجلي کړه او د اسلامي قانون نه به چپ ـ چلېده مثلاً په اسلام کې بادشاهت یا خلافت انتخابي وو ـ دوی هغه میراثي کړو او عربي دربار چې د راشدو خلفاو په وخت کې به ډېر ساده وو دوی د روم د امپراطورۍ په شان ډولي او مجلل کړو او د دولت لوی کارونه به د کورنۍ خلکو او خپلوانو او د شاهي قوم خلکو ته او دولتمندانو ته ورکول کېده او په لږه مرتبه کې به عربي نژاده خلکو ته هم ورکول شو، او هم په دې دوره کې د عربو نژاد د قرآن په لحاظ او د عربي ژبې له امله او د لوړو بشري اخلاقو په درلودلو د دنیا په ټولو ملتونو لوړ ګڼل کېده ـ نو حاکم او قاضي او امام به په ټول ملک کې د عربي نژاده خلکو نه مقررېدل او هغه عرب چې مور به یې عربه نه وه بل څوک به وه ـ هغه به ناقص ګڼل کېده ـ او د امویانو دا تبعیض او توپیر او امتیاز دار اموي دولت د خپلو ټولو ملکونو د خلکو د ګټو او مالو په ضد ضرور وو؛ نو ځکه د خلکو د مقاومت او پاڅون

سره مخامخ شو اموي دولت ته به چې چا د اصلاحاتو ویل هغوی به لا شدت او سختی را واخیسته او خلکو ته به یې رنګارنګ جزاګانې او شکنجې ورکولې حتی چې د محکومینو نه به یې هډوکي په ژوندانه غوڅول او مثله کول به یې او ډیرې سختې بندي خانې یې جوړې کړې وې. د امویانو داخری وروچې دخپلو سیاسي مخالفینو نه به یې سرغوڅ کړه او هغه به یې دچا پار «واګیانو» په واسطه به یې د «دمشق» پایتخت ته لیږل - محمد غنمي کار د افغانستان د مدافعینو سره شوی دی چې دخلکو په زړونو کې یې د ضدیت کرونده وکړه - او ورځ په ورځ به د مظلومانو او محرومانو شماره ډیریدله چې په اخرکې دغه دولت عاقبت لنډو ډیر په یوه پیړه کې له پښو ولوید او دامویانو د دولت خلف «عباسیانو» ۵۰۰ کاله عمر وکړی شو ځکه چې د خپلې رعیت سره یې په نسبتاً ښه ګذاره او مداره کوله په هرحال د امویانو دوره دجنګ او جګړو ، جهاد او فتح او د اسلام او عربې ژبې د خوریدو دوره په دنیاکې ګڼلی شي د امویانو دخاتمې سره د اسلامي فتوحاتو هڅې هم پاتې نشوې او فتوحات په ځای تیپ و دریدل.

دامویانو په دوره کې علوم بس تفسیر ، حدیث او فقه وو او د نورو پخوانو علمونو سره بلد نه وو خو څه وخت چې فتوحات

وشوا وعرب خلک نورو وطنونو ته ورغلل نو د نورو دینونو فلسفې او هنر او علومو سره هم بلد شو نو دا دیو نوي گډ تمدن دراتلو دپاره زمینه شوه . امویانو یوکار وکړو چې عربي ژبه او تمدن یې بېنه وساتلی شو سره د دې چې مفتوحه ملکونو ته ورغلل خو د هغوی د تمدن نه د ومره متأثر نه شو لکه مغل او جرمنیان چې نورو ملکونو ته به فاتح ورغلل خو څېل هرڅه به یې پرېښودل او د هغه ځای د تمدن د تأثیر لاندې به راغلل او هغه به یې ومانه .

## عباسي دولت

داخلي گډوډۍ او د خلکو پاڅونونه د اموي دولت د ورکاوۍ سبب شو . او کله چې ابوالمسلم خراساني د خلکو لار ښوونه وکړه او د اموي دولت له پښو وغورځېد او عباسي دولت او خلافت منځ ته راغی نو (۱۳۲) تنو عباسي خلفاو د «۷۵۰» نه تر (۱۲۵۸) مسیحي پورې پنځه پېړۍ د خلافت چارې اداره کړې او دا یوازې عربي دولت نه بلکه بین الاسلامي دولت گڼل کېده چې د افغانستان او ایران ترکانو او د -

ماوراالنهر خلکو د دولت اداره او سیاست کې مهمې برخې درلودلې لکه ابوالمسلم خراساني چې عباسیانو ته سیاسي قدرت په لاس ورکړو او امویان يې مات کړه - د برمکي بلخي کورنۍ د عباسي دولت په سیاسي او اداري چلند کې ډېر دخل درو او د سهل سرخي کورنۍ کلونه کلونه د عباسي دولت په اداري چارو کې برخه درلوده - او د افغانستان د نیول شوو ولایاتو اداره هم اکثره د محلي خلکو په لاس کې وه د خلافت مرکز هم د دمشق نه بغداد ته را ورل شو، عباسیانو وکړی شوه چې په افغانستان کې (۷) کاله نورهم خپل نفوذ او حکومت وچلوي - خو وروسته د افغانستان خلك آزاد شو او د خپلې خپلواکۍ اعلان يې وکړو.

د عباسیانو دوره په تاریخ کې د تمدن او علم له پلوه او د نظریو د ښکاره‌والي دوره ګڼل کیږي د عباسیانو علم او فرهنګ خوښولو او عالمان به د هر دین او مذهب او خیال خاوندان چې وو غیرله خپلو سیاسي مخالفینو نه به په عباسي دولت کې په امن او سېدلی شو او احترام کیده، عباسیانو د پخوانو علومو نه ډېرې ترجمې وکړې او په دې لار کې د برمکي کورنۍ ډېر خدمتونه هم کړي دي چې دیادولو وړ دي په عباسي دربارونو کې په فلسفي مباحثې او علمي مناظرې کیدلې او خلك د نورو

پخوانو علومونه خبر شو.

عباسي دولت د اموي دولت په نسبت پوره متعدله رویه کوله او غیرعرب عجمي خلکو ته یې هم د مملکت په اداره کې ځای او برخه ورکوله خو اخر په دغه دولت کې هم ځینې داخلي گډوډۍ منځ ته راغلې او د خلکو د پاڅون باعث شوې او له بله پلوه د مغلو یرغلونه راغلل او عباسي دولت یې له منځه وړ. لکه د هلاکوخان مغل تاړاک چې د افغانستان او ایران نه تېر شو او بغداد یې هم لوټي لوټي کړ. او عباسي دولت له منځه لاړ.

# په افغانستان کې د عربو نفوذ

## دخلفاء راشدو په وخت کې د (۶۴۲) نه تر (۶۶۱) میلادي پورې

په اوومه پېړۍ کې کله چې عربو د افغانستان د خلکو سره تماس او تصادم پیدا شو نو هغه وخت د افغانستان وگړي د اقتصاد له تلره مخ په وړاندې روان وو زراعت بنه دابیاري سستم هم بنه کافي و تجارت یې هم بنه روان وو او د هند او چین مالونه به د دوی په لاره تلل راتلل او له دې د رکه د کابل شاهانو دولت د مال التجاره د محصول نه کافي عاید تر لاسه کېدلو لنډه داچې د عربو خلکونه د افغانستان

خلک د ژوندانه په چارو کې مخکې وو . د علم له پلوه هم افغانستان هغه وخت نسبتي ترقي بښه وو . په رياضي ، نجوم ، طب الهيات به پوهېدل او دغه علوم پکې رواج وو . او ديوناني علومو او هندي فلسفي سره هم بلد وو او خروشتي رسم الخط او ورسره په يوناني او برهمني رسم الخطونو هم چلېدل کارونه چلول او مختلف دينونه لکه زرتشتي ، بودايي ، شيوايي او ميترا پرستي دينونه پکې رواج وو . او ديني مراکز او د ټولو دينونو معابد هم پکې لکه چيني سياح هيونتسنګ چې د هغه وخت لږ و ډېر (۱۲۲۰) معبدونو يادونه کړې ده او ورسره يې (۸) زره تنه روحانيون هم ياد کړي دي .

د هغه وخت اداري او مذهبي روښ د افغانستان خلک تصنيفول او ډلې ډلې کړي وو او ملوك الطوايفي وهغو طبقات اختلافونه به لاپسې ډېرېدل .

د هغه وخت جغرافيه ليکونکي په افغانستان کې (۱۷) محلي حکومتونه او امارتونه يادوي په دې ډول : کتار شاه نيشاپور - ماهويه ملك مرو « زاذويه » ملك سرخس ، بهمنيه ملك ابيورد ابراز ملك نسا ، ميراز بنده ملك غرجستان ، ګيلان ، ملك مروالرود ، مرغاب ، فيروز شاه زابلستان « کابلشاه » ، ترند شاه شير باميان ، خلاق ، شاه جوزجان خسرو ملك خوارزم « رتبيل »

ملك سنجستان رخج داور «برازان» ملك هرات باد غيس او پوشنګ
«مكران شاه» «قيقانشا» بلوچستان، قشميران شاه وو، د -
كابلشاهانو حكومت يې نسبتاً لوى وو نو په «رتبيل» ملقب وو
او تګين شاهان په تخارستان کې وو هم دخپلې علاقې واکه
امارتونه به يې په (۳۰) تنوخانانو اداره كول او دغوخانانو به
يوه برخه زمكه پخپله ولقه کې لرله او له هغه زمكې د پيداواره
به يې جنګ كارچلاوه او ډيرې پيسې به يې په لاس راوړلې
چې دغه محلي اميران به ډير شتمن وو لكه چې ويلي شوي دي
د رستم ځوى د سيستان محلي حاكم دومره شته لرل چې «د ربيع»
د عربو ديرغلي لښكر مشر ته يې د صلحې په بدل کې په (۶۵۲) ميلادي
کې يو زر د طلاو جامونه او يو زر غلامان وركړه نو ددې نه
دا معلوميږي چې دافغانستان محلي حاكمان څومره شتمن وو او
د اُمراو او روحاني طبقې د معشيت ټول بوج په دهقان پروت وو
چې كار به يې ډير كولو او ګټه او حاصل به يې لږ وو نو دافغا
نستان سياسي او اجتماعي محيط داډول وو چې د عربو اسلامي
لښكر پرې راغى او د هغوى شعار د ورورۍ، برابرۍ وو او په
ايران کې يې دغه حده پورې د اشعار رشتيني كړى هم وو
نو د دهقان او مزدور د عربي لښكر په مقابل کې مزاحمت نه كولو
يواځې حاكه طبقه له دې ويرې چې د دوى ګټې په خطر کې وې

او روحاني طبقې چې د اسلام دين يې دخپل دين زوال گڼلو
د عربو په مقابل کې جنگ ته ولاړ وو - خو د عربي لښکر په
مقابل کې عام ولس چې طبقاتي وو د زړه نه دفاع نه کوله او د
محلي امراو او عربي لښکرو جگړې روانې وې چې د (۶۴۲)
ميلادي نه تر (۶۶۲) ميلادي پورې چې د اموي دولت دجگړو
داغازه ـــ پورې روانې وې او شل کاله يې دوام وکړ وعربي
لښکرو پرې حملې کولې او د افغانستان ولسي خلکو به دفاع کوله
آخر عربي لښکر په دې نامه چې يزدگرد د ايران نه راتښتېدلی
ساساني بادشاه لټوي د طبسين له لارې چې عربي ليکوال ورته
د خراسان دروازه وايي افغانستان ته راننوتل او حال دا-
چې عربي لښکرو د ايران لوی دولت په دولسو کلونو کې ونيولی
وو خو د افغانستان په يوه څنډه کې شل کاله عربي لښکر مصروف
پاتې شو ايله عربو وکړی شو چې په (۶۴۲) ميلادي کې د طبسين
له لارې مرو ته داخل شو او د ترکي ماوراالنهري خان
په مرسته يې يزدگرد د جيحون نه هغه پلو غاړې ته ورتېر
کړ - او همدا رنگه نيسا او کرمان او سيستان او مکران هم
عربي لښکرو ونيول او لاندې يې کړه خو دا ټول فتوحات زر
تېرېدونکي وو او د عربو اساسي حمله د (۶۵۱) ميلادي نه چې
افريقا او قفقاز يې ونيول، په افغانستان پيل شوه عربي-

لښکرو لومړی وار امیرشهر (نیشاپور) د محلي حاکم نه و نیولو او هم هلته یې د عسکري حرکاتو مرکز وټاکو ورپسې یې د سرخس د محلي فرماندار او د ابیورد د محلي حاکم سره معاهده او مصالحې وکړې نو ورپسې د هرات او مروې وار راغی په کال (۶۵۲) میلادي کې عربو د هرات د حاکم سره په بدل د یو میلون درهمو ورکولو او په خراج د کال په دریې سوه زره درهمو منلو باندې مصالحه وکړه او چنیله لارې د افغانستان د شمال ولایاتو ته خلاصه کړه. ماهویه سوري (ویلی شي چې د اسور د تایمني قبیلې یوه طایفه ده، او دا هغه لودي سوري چې شیرشاه هغه قبیلې ته منسوب دی نه ده)، د مروې محلي حاکم هم د یوې دوستانه معاهدې په واسطه د عربو د حمایې لاندې راغی. په دغه وخت کې یزدگرد ایران راتښتیدلی باد شاه په بلخ او تخارستان کې وو او په بلخ او تخارستان کې یې چنیله تعبیه او د چین نه د لښکري امداد په طمعه خوځېده خو هېڅ ونشو او هیڅ یې مرسته ونکړه. عرب لښکرې د هرات نه د یزدگرد په لټې پسې د هرات نه مرغاب او جوزجان ته ور روانې شوې او د لارې خلکو څه خاص مزاحمت ونکړو او خلکو ته ویل شو چې ستاسې چنل معتقدات محفوظ دي او نورو محلي حکومتونو هم د عربو سره مصالحې وکړې او د هغوی فرمانروایۍ -

پر پښو دلې شوی لکه چې په کال (۶۵۲) میلادي کې د عربو سردار احنف د هرات سره د صلحې نه پس چې د بلخ په خوا روان شو نو د «بازان»، د مرو رود (مرغاب)، د محلي حاکم سره مخامخ شو او د ځه لږ و ډېر جنګ نه پس هغه د اسلام دین ومانه او جزیه یې هم قبوله کړه - بازان خپل ورور (ماهک)، دیوتن ترجمان او لیک سره احنف ته ولېږلو او په هغه لیک کې یې لیکلي وو:

زما نیکه د دې علاقې یو نامتو سوارکار او نامتو توریالی وو او دا علاقه یې نیولې او ساتلې ده که ته د موږ سره مصالحه غواړې نو باید چې زموږ د ازمکه موږ ته راپرېږدې او زموږ کورنۍ ته باج هم ونه بخښې نو موږ به (۶۰۰۰) درهمه د خراج په عنوان درکړو. عربو سردار دا سې ځواب ورکړو:

ستا غوښتنې ومنلې شوې په تا او ستا په کورنۍ خراج نشته خو د مسلمانانو سره کومک په تاسې ټولو لازم دی که ته مسلمانېدې ستا منزلت او مقام به محفوظ وي او ستا کافي نفقه به درکولی شي او د موږ او نورو مسلمانانو سره به یو شان برابر وي - یکشنبه محرم کال (۲۲) هجري د احنف مهر او د پنځه تنو عربي سړانو مهرونه، دا د واړه لیکونه طبري په کتاب الامم او ملوك په پنځم

الامم

جلد کې نقل کړی دی. د فیوډالانو داخاصیت دی چې د د وی
شخصي ګټو ته تاوان ويې نو دفاع کوي او که کله د د وی ګټې
تضمین شي نو بیا د ملک نه دفاع ورته دویمه درجه اهمیت
لري، او د یرغلګرو سره بیا سازش کوي.

محمد غسې په دغه کال کې د سیستان حاکم (ایران بن رستم)
دڅه جنګ جګړو نه پس د ربیع عربي سردار سره جرګه وکړه
ربیع لوړ سری ووا وغټې شونډې او غټ غاښونه یې لرل د جنګ
د مړو د پاسه ناست وو، په دې وخت کې ایران د ښار د
مشرانو او ملګرو سره په آس سور راغی او د مجلس سره نږدې
پیاده شو اوچې ربیع ولید نو تاثیر پرې وشو د ایران او-
ربیع معاهده وشوه او ایران یو زرطلایی جامونه او یو زر
مریونه ربیع ته ورکړه او د عربو د تللو لار یې پرانستله-
عربو په دې سیاسي او عسکري روش مخکې تګ کولو د خلفا
راشدو په (۲۰) کاله موده کې د نیشاپور ایالت (۱) وسنی
خراسان، هرات، مرو، جوزجان، او بلخ په شمالي افغا
نستان کې او کرمان او سیستان د افغانستان په غرب
کې او د بلوچستان او قندهار او د الرخاج یارخد، یې د
مملکت په جنوب کې څه ونیول او څه یې دخپل نفوذ لاندې
کړل، او په (۶۵۵) میلادي کې د کابلشاه رتبیل سره د غزني

له لاري جنګ او صلحه وکړه - په دې موده کې په کرمان کې د « سیرجان » ښار د عربي لښکرو مرکز شو ، کاریزونه یې وکنستل ، جماعتونه یې جوړ کړه چې د « ارجان » لوی جامعت یې یادګار دی په بلوچستان کې عرب تر قیقان ( کیسکانان ، پورې ورغلل او په سیستان کې ډلې ډلې زرتشتیان مسلمانان شو ځکه چې د عربو د سردار عبدالرحمٰن سمره سره ډیر لوی اسلامي فقهاء هم سیستان ته راغلل او د اسلام دین یې خلکو ته تبلیغ کړ او ډیرو خلکو د اسلام دین ومانه - او یو شمیر خوارج هم سیستان ته لا مخکې راغلي وو او د مهاجرو په توګه هلته میشته وو او د هغوی د سیاسي او انقلابي افکارو جرړې خښې کړې وې .

په زابلستان او کابلستان کې لومړی وار د عربو عسکر ولیدل شو او د اسلام نوم واورېدل شو - په شمالي افغانستان کې د هرات نه نیولې تر بلخه پورې عرب غیر د مرغاب د یو جنګ نه د خلکو د سخت مقاومت سره مخامخ نشو په همدې وخت کې ( ۶۵۲ ، میلادي کې ساساني بادشاه یزدګرد چې د عربي لښکرو نه راتښتېدلی وو - ماهویه سوري محلي حاکم په مروه کې ووژلو - او یو کال پس هراتي قارن د عربو په مرکز چې نیشاپور کې وو حمله وکړه

خو وروسته د فتحې نه پرې عبدالله عربي افسر شبخون وکړو او قارن په میدان جنګ کې وووژل شو.

په دې ټول د عربو د لومړي تصادم دوره د افغانستان د خلکو سره چې شل کاله یې دوام وکړو سر ته ورسېده، او بله دویمه دوره به د اموي دولت د شروع نه تر دغه دولت د خاتمې پورې چې د افغاني خلکو په لاس وشوه ۹۰، نوي کاله دوام وکړو.

# د اموي عربي دولت په وخت (۶۶۱م نه تر ۷۱۶م) پورې د عربي دولت د استيلا په مقابل کې د افغانستان د خلکو مبارزې

د خلفاء راشده وو د دېرش کلن دولت د دورنه وروسته په (۶۶۱) ميلادي کې د اموي دولت منځ ته راغی چې اشرافي او نظامي ماهيت يې درلود، د احکومت لومړی وار د شام په دمشق کې اعلام شو او امير معاويه د اموي کورنۍ لومړی باد شاه د دوی نظامي سياست په سوريې کې د ملک گيرۍ تصميم او هوس درلود نو حکم غفاری يې افغانستان ته ولېږلو حکم د المهلب په واسطه د غور ولايت ته عسکر ولېږل خود هغه ځای د خلکو له خوا رامات شو او په شا لاړل، حکم غفاري مروې ته ولاړ او د ماوراالنهر د قطعې نيولو په فکر کې شو د هغه نه وروسته عربي افسرانو يو په بل پسې د نيمې پېړۍ په موده کې د هتول بخارا ولايتونه فرغانه او خوارزما ونيول شو ځينو ملاکانو (زمکه والو) چې په کلکو قلعه گانو

کې او سېدل او ځينو شخو، حاکمانو، چې خپل ټولګي یې- درلودل مدافعه او څه جنګ جګړې کولې خو په (٦٧٠ م) کې د عربو (٥٠٠٠٠) پنځوس زره عسکر د کډو سره شمالي افغانستان ته راغلل او تر بلخه پورې لاړل او هم دلته او سېدونکي شو دې وضعیت دا وکړه چې عرب د هغه ځای د خلکو په خوی بوی پوه شو او افغانان د عربو او د اسلام په عمومي رویش بنه خبر شو او دې کار د اسلام د دین په خورولو کې ډېر مهم رول ولوباوه- او ګټور ثابت شو، چې د هغو بقایا لا اوس هم په هغو علاقو کې شته دی د دې د نه وروسته عربي اموي افسران یو په بل پسې راتلل خو د اموي دولت اساسي خواهش دېیسو ټولونه او زور زیاتي نه بل څه نه وو لکه چې اساس ئې هم په دغه ولایتونو، د خلکو نه یې درنې مالیې اخیستلې او په نامسلمانو به یې درنې جزې لګولې او نورڅه سره یې څه خاصه علاقه نه وه-

عربو افسرانو په لږه موده کې ډېر مال او شته پیدا کړه او خزانې به یې ډکې کړې نو په دې ترې خلک منزجر، متنفر او خفه وو نو د خپلې د فاع د پاره افغاني ولس را پاڅېده او د اموي دولت په مقابل کې (٧٠) کاله پرله پسې وجنګېدل چې ترڅو چې اموي لوی دولت په افغانستان کې خپلې ګټې لیدلې نو ځکه به یې

ډېر پام ورته کړلو چې د لاسه يې و نه وځي !! خو اموي خليفه
مروان چې په «٦٩١م» کې په دمشق کې مړ شو نو په مروه کې
عربي حاکم «خازم» د خپلواکۍ اعلان وکړو - مروه په هغه وخت
کې د خراسان مرکز وو - خازم خپله سکه هم جاري کړه خو اموي
دولت پخپل رقيب «بکيروشاح» باندې په جنګ ووهلو
د افغانستان خلک هم د عربو په قبيلوي دښمنيو پوهيدلي وو
بله پېره پخپله بکيروشاح د خپلواکۍ اعلان وکړو او دا کار د
ډېرو جنګونو باعث شو او عربو په خپلو منځو کې ښه وخوړل او
دې جنګونو تر کال «٦٩٦م» پورې دوام وکړو او آخر-
بکيروشاح ووژل شو او په ځای يې «امية» کېناست او په جنګ
اخته وو خو د بلخ په جنګ کې مات شو او مروې ته وتښتېد
دا وارې د دمشق خپل لوی افسران او سرداران لکه «قتيبه»
په کال «٧٠٢م» کې افغانستان ته راوليږل هغه دا وکړه چې د
سپيد د بلخ د محلي شاه سره يې لومړی جنګ او بيا صلحه وکړه
او په کال «٧٠٧م» کې يې بلخ و نيولو او هم په دې جنګونو
کې د بلخ مشهور ښار وران شو چې په ليدو به يې هر څوک اندېښمن
کېده. په «٧٢٥م» کال کې د بلخ د لويانو او خلکو له خوا بيا دغه
ښار ودان شو - د بادغيس محلي امير «نيزک» د صلحې نه-
وروسته چې د قتيبه سره يې وکړه د مروې نه بلخ ته راغی

اولوړی واریې د طوایف ملوک نه یوه اتحادیه جوړه کړه- سپهبد
د بلخ جغبویه شاه د تخارستان د مرو دامیر بازان اود جوزجان
او فاریاب امراء سره راټول شو او د عربو په مقابل کې متحد
شو او د کابلشاه رتبیل سره یې هم خبرې وشوې او هغه
داوعده وکړه چې که تاسې کله مغلوب شوئ نو کابلشاه به ستاسې
د پناه ورکولو ذمه واروي، نو د دې اتحادیې امراد -
ځان او فوځونو د جوړولو او جنګي لوازمو په لټه کې شواو
لومړی عرب نمایندې یې د تخارستان نه طرد کړواو وې
شاړه- په دې وخت کې عبدالرحمن د قتیبه ورور د (۱۲۰۰۰)
دولس زره فوځ سره په بلخ حمله وکړه او شخصاً قتیبه په
مرغاب حمله وکړه او پس له فتحې نه د مروې رود په -
تالقان کې چې په څلور میله کې واقع وو ټول جنګي بندیان
په دار کړه ، نیزک او جغبویه د بلخ نه سمنګانو ته لاړل -
قتیبه ورسره څو جنګونه وکړه خو بیایې په تنګه اوصلحه ومنول
اوخپله وعده یې ماته کړه او چل یې وکړو د صلحې د مذا
کرې په وخت کې یې هغوی ونیول او بندیان کړه او د ګرز
قلعه یې ونیوله او د دغه ځای (۱۲۰۰۰) دولس زره مدافعین
یې ووژل- او د نیزک او جغبویه سرونه یې غوڅ کړه
او د مشق کې دخلیفه حضور ته ولیږل.

د جوزجان ، شومان او فارياب خلك جنګ ته راپاڅېدل قتيبه چي فارياب ونيولو نو وېي سېزلوچي عربو به وروسته ور ته « محترقه » ويلو . قتيبه په کال (۷۱۴ م) کې چي په افغانستان کې اموي نوي خليفه سليمان خلع کړه او د خپلې خپلواکۍ اعلان يې وکړ او پخپله وينا کې يې د دې کوښښ وکړ چې د خراسان خلکو ته داوښايي چې زه د مور د پلوه خراساني يم ، خو خلکو داخبره و نه منله او د قتيبه د رقيب « وکيع » سره ودرېدل او د قتيبه او وکيع په منځ کې جنګ ونښت او خلکو د حبان خراساني په مشرتابه د وکيع په پلو ودرېدل چې آخر قتيبه پخپله او د ده د کورنۍ غړي ووژل شو ، خو وروسته عربو حبان ته زهر ورکړل .
پسته خلکو د عباسي مبلغينو مرسته کوله او د امويانو په مقابل کې د عباسيانو ملګري شو په (۷۲۴ م) کال کې د عربو يو بل - مشهور افسر « اسد » د قتيبه په ځای کبناست او غرجستان ته يې لښکر وکړ او د « نمرون » محلي حاکم څه جنګ ور سره وکړ خو بيا يې صلحه وکړه او مسلمان شو خو اسد چې غور ته لښکر په څه مقصد لېږلی وو هغې څه مثبته نتيجه ترې وانخستلې شوه په (۷۳۰ م) کال کې عربو (۱۸۰۰۰) اتلس زره لښکر تخار ته واستولو او (۱۰۰۰۰) لس زره نور لښکر يې هم په ډډه ډډه کې ورسره روان کړ خو پوره قطعي نتيجې ته و نه رسېدل - خو په (۷۳۷)

میلادي کې مشرانو او خپلو خلکو اونږ مکه والو په بلخ کې د اسلام دین ومانه او پنځه کاله پس د بلخ په ښار کې لوی مسجد جوړ کړی شو، په دې وخت کې عربي لښکرې یواځې په شمالي افغانستان کې «۵۴» زره په شماره وې او په دې ټولو کې د بصره نه «۹» زره نفر او د بکر نه «۷۰۰۰» تنه «د عبدالقیس د قوم نه «۴۰۰۰» تنه او د آزادو قومونو نه «۱۰۰۰۰» تنه د کوفې نه «۲۰۰۰» نفره او د آزادو شرو عجمیانو نه «۷۰۰۰» تنه او دا ټولې عربي لښکرې په افغانستان کې په دریو محاذو ننو- جنګېدلې د شمالي افغانستان چې د خلفاء راشدو په وخت کې یې نظامي او اداري مرکز یې په نیشاپور کې وو خو د اموي دولت په وخت کې مرکزیت مرو ته نقل شو- د غربي افغانستان چې مرکز یې په سیستان کې د زرنج ښار وو، د جنوب شرقي افغانستان، بلوچستان او د سند لاندینو برخو کوم معلوم مرکزیت نه لاره خو آخر تمیم بن زبیر عربي حاکم د سند په غرب کې د منصوره ښار ودان کړو او هلته یې مرکز جوړ کړو.

افغانستان ته د فرمان ورکولو عمومي ځای د عراق بصره وه او کله به د دمشق نه مستقیم هدایات صادرېدل، په «۶۶۲» میلادي کې د غرب په محاذ کې ربیع حارثي عربي اموي حاکم په کال «۶۶۲م» د رتبیل کابلشاه سره په قندهار کې مخامخ شو خود

جنګ نتیجه ونه وتله ، په کال ( ٦٢١ م ) کې یو عربي حاکم عباد د سیستان نه په کابل حمله وکړه خو رتبیل شاه یې مخه ونیوله او عربي حاکم په قندهار کې معطل شو او مخکې تګ یې تپ و دریږد په کال ( ٦٨١ م ) کې یزید او ابوعبیده عربي افسرانو د سیستان نه په کابل حمله وکړه او د کابل د خلکو لښکر په لاره کې ورسره مخامخ شو او جنګ جوړ شو د عربو فوځ ماتې وکړه او تباه شو یزید و وژل شو او ابوعبیده بندي کړی شو خو ابوعبیده وکړی شو چې د نیم میلون درهمو په ورکړه ځان خلاص کړي .

یو کال وروسته د سیستان نوی والي عبدالعزیز د عبیده او یزید د بدل اخیستو په مقصد بیا په کابل لښکر وکړ خو ده هم قطعي ماتې وکړه . په کال ( ٦٩١ م ) کې عبدالله عربي حاکم د سیستان نه د کابلشاه سره د جنګ په نیت بُست ته ورورسید کابلشاه په یوه غرنۍ ځمکه کې عربي لښکر راګیر کړو او ماتې یې کړه ، عبدالله هم ( ٣٠٠٠ ) درهمه فدیه ورکړه او ځان یې خلاص کړه .

په کال ( ٧٩٢ م ) کې د عراق مشهور والي حجاج چې د مفتوحه افغانستان عمومي فرمانده هم وو عبیدالله سیستان ته ولیږلو او د کابلستان په فتح کولو یې هم مامور کړو ، هغه بست ته چې راورسید کابلشاه لا د پخوانه د ده منتظر او تیار

وو، کابلشاه هم د دفاع ته ور پاڅېد او په صفه پخواني جنګي تکتیک یې عبدالله هم د غرونو تنګو او مجبور د رو ته ورکش کړو او د ځلوېږو خوا نه یې په یوه تنګه محاصره کې راګیر کړ و او سختې ضربې او ګذارونه یې ورکړه - عبدالله هم ناچاره شو (۷۰۰۰) درهمه یې ورکړه او ځان یې خلاص کړ، عبدالله بېرته بست ته ورکښېد نور د ماتې د ننګ د ېر قهر او غضب نه د پښتو ولوېد - ځکه چې عربو ځوانانو د اسیا صغیر نه د ساحل پورې لوی لوی ملکونه فتح کړي وو او په (٦٠) کاله موده کې د ټول افغانستان د فتح کولو نه لا تر اوسه هم عاجز پاتې وو.

حجاج هم د دې واقعې نه چې خبر شو ډېر متنفر شو او د دمشق نه یې هم استئذان وغوښت چې د کابلشاه د قطعي ټېولو دپاره د بصرې او کوفې نه ټولې قواوې دې راشي چې موږ به افغانستان کې قطعي نتیجه واخېستې شو نور دې کار دپاره (۱۲۰۰۰) د نامتو او توریالو ځوانانو او ننګیالو نه یو لوی لښکر غوره او جوړ کړو او د عبدالرحمن بن اشعث د قوماندانۍ او قیادت لاندې د افغانستان د فتح دپاره په (۷۰۰م) کې افغانستان ته ولېږلو، دا لښکر د ومره کامل او مجلل وو چې د په جیش الطواویس، یعنې لښکر طاوس په نوم مشهور شو - حجاج هم د وه میلونه درهمه هدې لښکر سره کومک وکړو، کابل

شاه هم دغه وخت په بُست کې وو او دا ټول واقعات ورته
رارسېدل او هغه په دقت د اوضاعو څارنه کوله او تیاري یې
نیوله، رتبیل عبدالرحمن ته جرګه ولېږله چې د تېرو جنګونو
د وېرولو او د خراج په باب ورسره خبرې کول غوښتل خو
عبدالرحمن په خپل فوځي قوت غاوړه وو د هغوی خبرې یې
وانه اورېدلې نو رتبیل ورو ورو د کابل خواته روان
شو او په قرارۍ به په شا تللو او د لارې په ټولو قلعه ګانو
کې وېرقیمتي شیان هم ایښودل او پرېښودل چې عرب لښکري
ولجه او غنیمت کړي. عبدالرحمن هم ورو ورو په رتبیل پسې
روان وو او د هغه تعقیب یې کاوه او په لاره کې د لارې
د حفاظت دپاره څه ناڅه قطعات هم پرېښودل ځکه چې عبدالرحمن
د افغانستان د خلکو د ناڅاپي جنګونو نه هم خبر وو. خو
د عبدالرحمن لښکرو چې په لاره کې کومې قلعه ګانې ونیولې وې
او د هغو نه یې دومره غنیمتونه په لاس ورغلي وو چې د
دوی بارونه یې بېنه درانه کړي وو چې د چابکو (چالاکه)
تللو نه وتلي وو دا په ورو ورو تلل او د ژمي سختۍ را-
رواني وې او نږدې شوې وې نو عبدالرحمن مجبور وو چې
د کابل جنګ یو مساعد موسم پسرلي ته پرېږدي خو د حجاج-
دا خبره نه وه خوښه او په عبدالرحمن په قهر شو او ورته

یې ورته وکړه ، او هغه ته یې ولیکل چې ته یو ویریدونکی سړی
یې ځکه دا فکر کوې او د منصب د عزل تهدید م ورته شوی و:

عبدالرحمن م یو ښه دلیر او زړه ور سړی و، په دغه
فرمان و قهریده او ټول سپایان یې را ټول کړه او د حجاج
دغه فرمان یې ورته په زوره ( په واګه ، ولوستلو چې پکې
لیکل شوي وو چې بې ځنډه او معطلی په کابل او زابل ورشي
ابادي ورانې کړه او ښځې او سړي بندیان کړه ، د عربو
سردارانو چې د دغه فرمان مضمون واورېد نو ځینو لکه یو
یو صیفیل مرا او عبدالمؤمن ربیعي وویل چې کله سپایان غالب
وي نو د هغوی مکافات د حجاج وي او کله چې سپایان
مات وکړي او ناچار شي نو د حجاج په نظر کې هغوی ټیټ
او بې همته شي او حال دادی چې دا افغانستان ای عسکروا
ستاسي ابدي هدیره ده او تر تو دچپلو کورنو خلك بیانشي
لیدلی ، د حجاج دلت دا فوځ کښي د فرعون د فوځ کښه په شا
ده چې په رود نیل کې یې کړي وه . نو راځه چې د کابل په
ځای په کوفه ورشو او دغه حجاج د ځپل وطن نه لرې کړو
سپایان را پاڅېدل او د عبدالرحمن په لاس یې بیعت وکړه
عبدالرحمن رتبیل برقراره پرېښود او خراج یې م ورته و
بابښه او ورته ویې ویل چې که مونږ مغلوب شو نو په کابل

کې به ځای او پناه راکړي او دا ومنله شوه .

د عبدالرحمن د حجاج سره جنګونه اوږده شو او آخر - حجاج چې د عراق مرکزي حکومت مرسته هم ورسره وه غالب شو او عبدالرحمن مغلوب او کابل ته راغی او پناه یې واخیسته او په (۷۰۳م) کې په کابل کې مړ شو او ویلی شي چې سر یې حجاج ته ولیږل شو ، په کال (۷۰۴م) کې قتیبه د عمر او خپل ورور په واسطه د رتبیل سره جنګ جوړ کړ خو رتبیل هغوی ته اتله سوه زره درهمه ورکړه او صلح یې ورسره وشوه .

په (۷۰٦م) کې کابلشاه دوه میلونه درهمه قتیبه ته ولیږل چې د عربو او کابلستان جنګونه نور بس کړي ، دا متارکه (۲۳) کاله اوږده شوه خو آخر په (۷۲۷م) کې د سیستان عربي حاکم اصفح شیباني په کابلستان حمله وکړه خو ځه ګټه یې ونکړه او بې نتیجې بېرته ستون شو ، د سیستان خلکو هم د اموي دولت مخالفت ته ورپسې زور ورکړو او په کال (۷۲۰م) کې د عربو په ضد شورش جوړ شو ، او په کال (۷۲۵م) کې بشرالحواري امیرشوط د عربو ، د امنیه قوماندان ، په زرنج کې وواژه او د ښار قضایي د عربو نه واخیستله او یو سیستاني محدث (معمر بن عبدالله) ته یې وسپارله او د سیستان خلک د خوارجو د فرقې سره یوځای شو او په (۷۳۴م) کې د اموي دولت په مقابل کې یې پاڅون وکړو او په

کال (۷۴۴ م) کې د سیستان عربي حاکم (سوار بن اشعر) یې و-
وژلو.

خو په جنوب مشرق د افغانستان کې د خلفاء راشده و لښکر
د مکران د فتحې نه وروسته په کال (۶۵۹ م) کې په شرقي بلو
چستان کې ترقیقان (کیکان) پورې مخکې تللي وو. اموي لښکرو
په کال (۶۸۰ م) کې (قصدار) م په بلوچستان کې رالاندې کړو او
ځان یې هلته ښه ټینګ کړ. وچې عربي حاکمانو به له هغه ځایه تر-
قندابیل یا (قنداوه) پورې حکم چلاوه.

یو ځل عربو په کال (۶۳۵ م) کې د بحرین نه په کشتو کې د
«دیبل» تر بندره چې د بلوچستان او سند په منځ کې دی راغلي
وو، خو څه نتیجه یې نه وه اخیستې د عربو اساسي حمله د حجاج
له خوا پیل شوه او عربي لښکر تر دیبله ورسید پس له هغې حجاج
محمد بن قاسم ثقفي عربي مشهور افسر چې د حجاج ځلوان هم وو،
چې د قتیبه او اسد په ردیف کې به ګڼل کېده د وچې او لمدې
نه سره د لښکرو مقرر کړو. ثقفي په کال (۷۱۱ م) کې د شپږ زره پیاده
لښکر او شپږ زره سوره او درې زره اوښانو سره د شیراز او
مکران له لارې او د لوازمو کشتۍ یې د بحر له لارې د دیبل بندر
ته ورسېده، پس دیو اوه ورځو جنګه چې وو، ورځې یې اوږدوالی
وکړو د «دیبل» معبد یې چې په قلعه یې شین بیرغ ولاړ وو

فتحه کړه. ثقفي د حجاج په امر خلکو ته امن ورنکړ او دری ورځې یې عام قتل وکړو. ثقفي د معبد خدمه (۷۰۰) ځوانې ښځې وینولې او د دیبل د حاکم دوه لوڼه یې سره د ډېرو غنیمتونو حجاج ته ولیږلې، وروسته محمد بن قاسم ثقفي د سند علاقې یو په بل پسې په جنگ او صلحه سره ونیولې او پخپله د سند نه پورې وت «داهر» د سند محلي حاکم دفاع وکړه خو په میدان جنگ کې ووژل شو، او سریې حجاج ته ولیږل شو. او ښځه یې «لادی» پخپله ثقفي په نکاح کړه، د سند د برهمن آباد خلکو شپږ میاشتې د عربي لښکر سره جنگونه وکړه خو آخر مغلوب شو او ښاریې عربي لښکر فتح کړو او دری زره نفریې بندیان شو خو عربي سردار ویل ونکړو او مخامخ په ملتان ورغی او ملتان یې هم فتح کړه او بې شماره دولت یې په لاس ورغی د ملتان د معبد نه یو طلائي بت پلاس ورغی چې (۲۳۰) منه وزن یې ووا و د خځو خزانو نه هم (۱۳۲۰۰) منه زر راپیدا شو او د یو بل کور نه دوه میلونه او غلور سوه زره (۲۴۰۰۰۰۰) مثقاله طلا راپیدا شوې

د حجاج د مرگ نه پس محمد بن قاسم هم اموي خلیفه سلیمان عراق ته وغوښت او ویې وژلو[1]. او عربي فتوحات په (۷۱۳م) کال کې په ماوراء سند کې تپ ودرېدل. او بلوڅ او سندیان هم د عربو سره په وارو وجنگېدل.

---

(۱) مسیر تاریخ (۷۴) صفحه.

# د افغاني ولس پاڅونونه او د اموي دولت

## له منځه تلل

د عربو د هغه لومړي ورځې نه چې په (۶۴۲م) کې افغانستان ته راننوتلي وو تر (۷۴۲م) کال پورې تقريباً د يوې پېړۍ د پره موده په منځ کې وروسته چې دري نسله منځ ته پکې راغلل او لاړل دا - دواړه قومونه افغانان او عرب مستقيماً سره په تماس کې وو او راشه درشه ، ورکړه راکړه يې سره لرله نو په دې دوره اوږده موده کې د يو بل په خوي او بوي ښه وپوهېده ، افغانانو د عربي ذوقونه ومنل او د هغوى دين او ژبه يې هم ومنله خو خپله ژبه يې وساتله دا دواړه ملتونه د يو بل د مادي او معنوي اغېزو نه اغېزمن شو د دين اسلام په خورولو کې توري او وسلې دومره کار نه دی کړی لکه څومره چې د ملتونو تماسونو او د يو بل په فکر او نظر په پوهېدلو او اشنا کېدلو چې څه کړي دي ، په دوه پېړيو کې د جيحون د غاړې نه نيولې د سيستان د هامون پورې او د ارغنداب د حوزې نه نيولې د اباسيند تر غاړې پورې بې

شماره مدرسې جوړې شوې چې خلکو به پکې اسلامي زده کړې کولې
ویلی شي چې د دغه مدرسو په یوه مدرسه کې درې زره کسانو
زده کړه کوله، او ویلی شي چې یو افغاني لوی عالم دین تفسیر او نورو
اسلامي فقه «ضحاك بن مزاحم هلالي»، د هرڅه لیکلي وو هغه چې په
«۷۱۹ م» کال کې په شمالي افغانستان کې وفات شو نو درې زره
شاګردان ترې پاتې شو.

خو د اموي دولت قبضې چې دې هغه ترلې د هغوی د تعصب،
تبعیض سخت ګیرۍ او په زور او جبر حکومت کولو نه وکې دي
او درنې مالیې به یې له خلکو وصولولې، مرېونه به یې اخیستل
چې دا په خلکو درانه بارونه وو او د تحمل وړ نه وو نو مجبوراً
به خلك اموي دولت ته را پاڅېدل او جګړې به یې ورسره کولې
که څه هم د وسلو او وسیلو څه توازن او برابري په منځ کې
نه وه د ولس خلك بې وسلې او بې سره وو او اموي دولت
یو لوی دولت او په وسله ښه بار وو - خو نه خلکو د خپل زړه
براس و یستلو او د خوارجو او عباسي «د بني هاشم» د کورنۍ
مرستې به یې کولې - په دې کې «خداش» یو سړی چې د
«خرمیه» طریقې موسس وو او د اموي دولت د ښمن وو او څینو
نورو کسانو لکه یماني او مضري هم د امویانو په مخالفت کارکاوه
او چابه چې دا اور بلولو نو دوی به ورته لمن وهله - او ورځ

په ورځ به د اموي د ولت مخالفتونو زور موندلو، هر کله نا کله به د امخالفت د نورې په زورم غلی شو خو خلك د امويانو د د ولت د ورکاوه په لټه کې وو او د امويانو زور به دخلکو نفرت او کرکه لاپسې ډېرولـه يو وارې يو اموي حاکم د سمرقند په ښاو خوا کې په (۷۲۲ م) کال کې د نوو مسلمانانو نه هم جزيه - غوښتله او دکفر د وخت جزيه يې هم ترې اخيستله او خلك د اسلام نه بې زاره شو او د ترکو ملګري شو او د عربو سره وجنګېدل د افغانستان خلکو يو وار خليفه عمر بن عبد العزيز[۱] اموي ته چې ډېر ښه مسلمان شخص وو شکايت وکړو او ورته وې ويل چې عرب متعصب او قوم پرور دي د مونږ نه د اسلام د - مخکې وخت جزيه هم غواړي او په غنيمت کې هيڅ هم نه راکوي.

خليفه د دوی په شکايت غوږ سي وکړه - جز قتيبه د افغا نستان د ولس سره معاهدې ماتې کړې او د غلې قيمت يې ډېر کړو او ډېر خلك يې په دار کړه. او ظالم حجاج د کوفې حاکم زرو نه مسلمانان ووژل او ويشي يې ترې کړې - او عبدالله - زبير چې خلافت يې په عراق، حجاز او افغانستان کې خلکو منلی وو، حجاج وينولو او ځوړندې کړو ترڅو چې مړ شو.

د امويانو د اوضيعت نور د خلکو د تحمل وړ نه وو او د خلکو د انزجار او نفرت او کرکې د حد نه وتلی ووا وآخر دا

---

(۱) عمر بن عبد العزيز څيني خلك په خلفاء راشد ينو کې ګڼي . د بيپال)

شوه چې خلکو پاڅون وکړو او د دغه پاڅون رهنمایي ابومسلم خراساني کوله چې قصه یې مخکې تېره شوې ده او نتیجه یې د اموي دولت چپه کېدل شوا و د عباسي خلافت منځ ته راتګ.

عباسي دویم خلیفه منصور د ورانیتي په ابومسلم خپل محسن سر څه وکړه ؟ او څنګه یې ووژلو ؟ دا بیل یو دردناک داستان دی چې مخکې یاد یې تېر شوی دی.

# د مغلو یرغل او د افغاني ولس مبارزه

## د یارلسم (۱۳) میلادي قرن

**مغل** د مغلو په مغلستان کې په کېږدیو کې ژوند کولو او په څو قبیلو کې سره وېش وو، مشهورې قبیلې یې دا وې: تاتار، قنقرات، اوبرات، ارلاد، جلایر، کرائیت او تاېین وې، د مغلو یوه بله وړه قبیله د « بورچیقین » په نامه هم وه چې د چنګیز د راپیداکېدو سره مشهوره شوه.

د مغلو طایفې د شرقي ترکانو په شان د چین په خواخوا

کې او سېدلې او هغه پخوانۍ مدنيت ته يې سترګې وې، شرقي
ترکانو زړ اسلام ومانه او د اسلام د مدافع په څېر يې عربي دنيا
او بحرالروم ته سترګې ونيولې او د چين او افغانستان او ايران
او هندوستان او ماوراءالنهر تجارت هم د دغه ترکانو او مغلو په
لاس کېدلو نو د دوی سترګې هم د دغه ملکونو او چين په شتمنيو
او مالداريو او تجمل ولګېدې او د ترکو او مغلو په زړو کې د
دغه شتمنيو د حاصلولو او په معنوي د حملو انګېزې پيدا کړې، په
هغه وخت کې ترک او مغل په څرګاوو او کېږديو کې اوسېدونکي
وو، نو ښارونه يې هم له دغه دوله جوړ وو او د موسم
او آب وهوا سره سم به د يو ځای نه بل ځای ته او ورشو-
ګانو ته د عرادو «ګاډو» په واسطه په اسانه نقل کېدل شو

د مغلو طايفې د چنګېز د پيدا کېدو نه مخکې اکثر د حيواناتو
«څارو» په ښکار او د هغو د پوستکو په تجارت د ترکانو
او ختن والاو سره مشغول وو؛ او خوراک يې غوښه او
لبنيات او اغوستن يې د څارو پوستکي وو او کرونده
يې نه کوله - او بېل بېل د خپلو مشرانو د مشرۍ لاندې د-
مالدارۍ ژوند کولو او د يو بل مخالف هم وو د دوی د-
مشرانو د تجملي شيانو نه يوازې د اوسپنې رکابونه درلودل
خو مشران يې په زړونو او سويو په شمار مالدارۍ درلودې

او د نورو خلکو نه ممتاز او ښکاره وو. او هغوی په جادو او خرافاتو هم عقیده لرله ؛ او په پسرلي او اوړي کې به په رواني اوبو کې نه کښېناستل او حیوانات به یې هم نه حلالول او سینه به یې ورڅیروله . طلایې پېژندلې څو د سپینو او سرو زرو په لوښو کې به یې او به نه اخیستلې او لمبا او غسلونه به یې نه کول . او وینځلې جامې به یې په صحرا کې له دې امله چې تنا او برېښنا ډېرېږي نه غوړولې او د مغلو آسونه په لوړه او تنده کې ډېر مشهور وو او په سفرونو کې د نورو آسونو نه مړني وو مغلو به مجرمانو ته سختې سزاگانې ورکولې . په مغلو کې ازدواج یعنې ښځې کول په شمار نه وې او په تېرو لویو خانانو ته لکه چې ویلی شي د چنگېز خان نه . پس له مرگه پخپله سوه ښځې په میراث پاتې وې چې د نورو شتو سره یې په خای ناست ځوی ته منتقلې شوې . مغل هم د ترکانو په شان ښه سوارکار او غښتلي ویشتونکي وو . او د هغوی لنډو اوږدو لیندو به تر دریو سوه ځلور سوه متره پورې ښه ویشتلی شوه . د هغوی وسلې به چاړه او خنجرونه وو ، او ورو ویشتونکي منجنیقونه چې د کټونو په واسطه به وړل کېدل د مغلو مهمه او غټه وسله گڼل کېده . ختایي بادشاهانو د چین په شمال کې له دوی نه باج غوښتلو . د منچو او مغلو او ترکي قبایلو شمالي او مرکزي آسیا

په چینلو سځوکې سره ویشلې وه ، د قنقرات او تاتارو قبیلو د ارګون د رود په بښي غاړه او سېدل او ژرونديې کاوه او د « برچقين » قبیله چې چنګېز خان له دغه قبیلې نه وو د « کرولن » او « اونن » رودونو په منځ کې او د « انګورا » په غاړه ځلور قبیلې او وه سره تیجي نژاد ، قوت ، جوپارات ، ارلات او جلایر ا دي و د ترکو روستنو وینې هم جذب کړې وې ، دوی په پاس بښودلي ځای کې استوګن وو . او د « بایکل » په غاړه د « مرکوت » طایفه چې د مېږو او مغلو له ګډون او اختلاط نه منځ ته راغلې وه اوسېدله او په غربي غاړه یې د مغلو د الوت قبیله پرته وه او د بایکل په جنوب کې د کنتي د غرونو نه د چین د لوی دېواله پورې د « کریت » د دولت قلمرو وو ؛ چې د نورو ټولو قبیلو نه زوروره وه او د هغو قبیلو د اعتقاد نه چې دا قبیله په عیسوي دین هم وه . او تایمن د اورخون علیا او التاي کبیر کې اوسېدل او مذهب نسطوري عیسوي وو د تایمنو په جنوب غرب کې او بغور ترکانو ژوند کاوه او بغور ترکان په مسیحي اتمه پېړه کې د قراقرم د غرونو نه شرقي ترکستان ته هجرت کړی دی او دغه ځایونه یې د تخاریانو نه لاندې کړل او یو حکومت یې پکې تشکیل کړو . دوی د ماوراالنهر او چین او افغانستان او ایران د تجارتي لار په سر پراته وو نو زر د هغوی د ژوند او تمدن نه متاثر شو او د عیسوی او بودائی

او زردشتي د افغانستان دين او مانويانو مبلغينو نه لې ډېرڅه زده کړه او ويې منل ؛ او د ټولو نه مهم سرياني خطيب منلي وو او يغور ترکان د ماني مذهب پيرو وو او وروسته څه بودايي او عيسوي هم شو ـ او د سرياني الفبا د منلو نه وروسته د مغلو او ترکو د تمدن په سرکې و درېدل. د وی او د قرلق قبيلې خلک چې د تارم د رود د مجرا په ښکتنۍ غاړو اوسېدل د چنګېزخان د را ښکاره کېدو په وخت کې د وی خپل سياسي اعتبار د لاسه ورکړی وو او د قراختائی کاشغر د حکومت تابع ګڼل کېده او دا هغه مقتدر دولت و چې د دولسمې پېړۍ په اوايلو کې تشکيل شوی وو او د ديارلسم قرنه پورې عمر وکړو او د غربي او شرقي ترکستان ټولو خلکو قراختائی باد شاه « اورګورخان » خپل شهنشاه ګڼلو . او د دې دولت ـ پايتخت « يلا ساغون » په کاشغرستان کې وو. د کاشغرستان خلک څه مسلمانان او څه بت پرست او ترسا وو خو څه د اخلي کمزو- ري له کبله او څه د خوارزم شاهي دولت توطيو او د نايمن کوچلوک خان خيانت چې د ګورخان زوم هم وو د قراختائی دولت د مخ نه لاړ او ځای يې کوچلوک ونيولو چې د چنګېزخان د حملو سره مخامخ شو ـ همدارنګه په دولسمه پېړۍ کې د چنګېزخان د ښکاره کېدو سره نژدې ـ د چين لوی دولت د دوو رقيبو ډلو

د حکومتونو په منځ کې وېش و.و. شمالي چین په «مانچوریانو»
ترلې وو چې پایتخت یې پیکنګ وو، د پیکنګ نه تر کایفونګ پورې
د «کن»، په عنوان یا باد شاهان «طلاو» فرمان چلېده او په
جنوبي چین کې چینایي شهنشاهي د «سونګ». د کورنۍ په لاس
کې وه او پایتخت یې د «کونسي» ښار وو. او د د واړو-
حکومتونو په غرب کې تبتي دلې او تانګوت او سېدلې. خو
اسلامي ملکونو په منځنۍ آسیا او نږدې آسیا کې د چنګیزخان د
راښکاره کېدو په وخت کې په لاندې ډول وو چې د ماوراءالنهر
ملکونه او د افغانستان او ایران ـه خوارزم د مقتدرې شهنشاهي-
اجزاګڼل شو او د هغې بادشاهۍ په قلمرو کې داخل وو. او
زور زیاتي د لاندې په ناراضه ژوند کولو مجبور وو. د اباسیند
په ماوراء یعنې د سند ولایت او ملتان د غوري ناصرالدین قباچه
په لاس کې وو او په منځنۍ هند کې غوري سلطان شمس الدین
التمش هر یو خانله مستقل حکومت کولو او په داخلي چارو مصروف
وو او د نورې اسلامي دنیا نه لرې پراته وو. په وړه آسیا
،اسیا صغیر، کې د سلجوقیانو زوراو حکومت وو چې بادشاهان
به یې تل د اروپایي دولتونو سره په صلیبي جنګونو نښتي او
لاس په کرېوان وو. او د شام مملکت او مصر د ایوبي بادشاهانو
او شهزادګانو په لاس کې وو چې په خپلو منځو کې هم سره یې اتفاقه

وو او په صلیبي جنګو کې هم اخته وو.

د منځنو پېړو د اروپا اقتصادي او اجتماعي او سیاسي او مذهبي اوضاع چې سوداګر به د سود په ګټه پسې وو او اشراف او فیوډال طبقه به د ځمکو د راټولو په فکر کې وو چې ثروت او شته یې نو رهم ډېر شي او دهقانان وږي تږي په بد حال دیوې مړه ووړه او د ظلم او زور نه د خلاصي په لټه کې وو خو تر لو د مشرق د خلکو شتو ته سترګې نیولې وې.

# چنګیز خان

دا یو عجیبه سړی وو چې د خپلې حیرانونکې فطري ذکا په قوت د توري په سوري کې چې سیاست مداري هم ور سره وه تورانې خلک یې د خپل وحشتناک بیرغ د لاندې راټول کړه ـ دا قوي سړی چې لوېه څنګه وده او لویه شوه یو او پراخه تنهایي لرله بلکل بې سواده وو او د خپلې مورنۍ ژبې نه پرته په بله یوه ژبه هم نه پوهېده ـ په خدای یې عقیده لرله خو د چارېه د سوري په فال

---

(۱) د چارېه په منځ کې یو سوری جوړ کړي او په هغه کې د لاس نښې ګوري.

هم باور وو او پابندي يې وو، ده به د غټو حوادثو په سرکې خلوت کولو او په غاړه کې به يې رسمه اچوله او د خپل معبود نه به يې کومک او مرسته او کاميابي غوښتله دی ډیر جاه طلب هم وو او فرمانروائي يې هم خوښه وه او غوښتله يې ، او دا هرڅه يې د ځان او خپلې کورنۍ او بيا د مغلو د پاره غوښتل او د يې سره يې علاقه او مينه وه چې د ده لوی نوم دې په دنيا کې پاتې شي - او د دې مقصد د حصول د پاره يې د خلکو او ولسونو د تباه کولو او علم وژلو او د وطنونو ورانولو پکار وو دا د ده مقصد وو.

چنگيزخان به د خپلې کورنۍ د آينده په باب داسې ويل :

داسې ورځ به راشي چې زما د کورنۍ پاتي خلك به ښه اغوندي او ښه به خوري او په نامتوا سونو به سوريږي خو دا فکر به نه کوي چې دا نعمتونه چا ورکړيلي دي او د چا د احسان مديون يو؟ او د خپل نوم د پاتې کېدو په باب يې يوه ورځ د افغانستان يو بندي قاضي ، وحيدالدين فوشنجي ، ته د مرغاب په اردو گاه کې ورويل : دا مرګونه چې ما محمد او غزني غله يعنې ، سلطان، محمد شاه خوارزم، په ملك کې وکړه نو په خلکو کې به زما عجيبه نوم پاتې شي .

قاضي هم د مرګ په ويره ولاړ وو په جواب کې يې ورته وويل:

چې خان څو ټول خلك وژني نو نوم به يې په چا کې پاتې شي؟ چنګيزخان غوښتل چې د مغلو د پاره د ټېر وخت د امپراطوريو عظمت د ترکويانو چې په شپږم قرن کې يې درلود « يعني ايل خان توقان او د ويوخان ، بېرته را وګرځوي او هغه لوړتيا او عظمت چې يو وخت په ټيماني اسيا يې فرمان چلېده - نو دا وه چې قراقرم يې د منګوليا په طبيعي مرکز کې خپل پايتخت وټاکه او دا هم هغه مرکز وو چې د شپږم قرن د ترکي لوی خاقان ټاکلی وو چې په اتمه پېړه کې د او بغور د لوی خاقان هم پايتخت وو چې د کول تکين او منګوبين تاريخي کتيبې د دغه ځای په خوا وشا کې ميندلې شوې دي - د قراقرم ښار هغه وخت چې د افغانستان ښارونه وران شو او په ماورالنهر کې هم څه پاتې نشو او کاريګر او صنعتکاران د دې ښارونو او چين نه راغلل او قراقرم کې ميشته شو - او مغلو چې د منځنۍ آسيا خزانې وېرولې نو مغل په مغلستان کې ښه دولتمند او شتمن شو - او د ډېرو پيسو تجارت او معاملې به پکې کېدلې - په قراقرم کې يې کرونده وکړه او مالګې يې کېنول او دا کار د چنګيزخان د ځوی اوګتائی خان په وخت کې شوی دی او د قراقرم شتمنې دې پورې رسېدلې وه چې د اوګتائی په وخت کې چې قحط راغی نو خلکو به يوه دړه غله په يوه طلا اخېستله او خرڅوله که څه هم چې د مغلو خانانو به د او ړي او ژمي په کلو کې استوګنې کولې او ښارونه او د قراقرم

ښار د تجارت او اداري دپاره تاکلی وو- اولویه جرگه به هم په دغه ښارکې راټولېده ، دې ښار دېوالونه او دروازې او بازارونه لرل او سیاسي نماینده گان او تجاران به هلته اوسېدل د دې نه مخکې پخوا د مغلو دخان دایمي پایتخت به پېکنگ دچین په ښارکې وو او کوچیتوب یې پرېښی وو.

چنگېزخان دلیك لوست د زده کړې د پاره اطفال ( واړه ) د اویغور ترکانو نه دزده کړې دپاره ورکول چې لیك او لوست ورته زده کړي.

چنگېزخان دتجارت د ودې دپاره دلارو ښه ساتنه کوله چې تجاران مامون او محفوظ وي اورباطونه یې د «یام» په نوم په لارو کې ځای په ځای جوړ کړي وو او دخواوشا خلك د مسافرو د احتیاج د پوره کولو دپاره مامور وو، دې قهار بادشاه چنگېزخان یو قانون هم جوړ کړی وو چې د «یاسا» په نامه مشهور وو او د زنا او غلا د پاره سختې جزاگانې لیکلې شوې وې ، او دغه بد- اخلاقه یې د مغلو نه ورکې کړې او فوځیانو هم په پټو سترگو د حکومت د امرونو منلو او اطاعت کولو د پاره مؤظف وو او دا فوځ یې دجهان د فتح کولو د پاره منظم ساتلی وو او دا ټولگی به دلسونونه جوړ وو چې یو به یې مشر وو او د دې ټولگي ته به یې «ده» ویلو او د لسو ده وونه به یوه صده جوړېدله او دلسو صده وونه به یو

هزار ټولي جوړېده او د لس هزاره نه به یو تومان تشکیلېدلو،
فوځیانو د خپلو ټولګو نه په ټروند نشو بېلېدلی او مخالفت کوونکي
ته به د مرګ سزا ورکول کېدله، او خپل خان ته به یې پخپله خپل
لباس او جامه هم جوړوله او په دې مکلف وو او وسله به
یې هم خپله وه چنګېز به خپل فوځ ته د جنګي سفر په وخت کې
د ډېرو میاشتو د سفر یواځې دومره دې ته درې لاندې کړې (قاق) پسونه
ترینه ورکول، د عسکرو پاتې ښځې مکلفې وې چې کار وکړي او خان
هم پرې وساتي او د حکومت مالیات هم ورکړي - چنګېز د اول نه چې
په اقتدار قبضه کړله نو په خلکو یې بې قید و بسته خپل حکومت -
منلی وو او د خلکو نه یې وعدې اخیستي وې چې که خوی ته امر وشي
چې پلار دې مړ کړه نو ډیل به نه کوي، محد غسي خوی به هم د خپل
پلار په مقابل کې په چنګیزي امر دغه کار کوي - ده به کله ښکار
هم د یو جنګي مانوري په څېر کولو چې د سفر په وخت کې به یې څو
میاشتې موده نیوله، او حیوانات به یې څخول او خلک به ترې
چاپېر وو ترڅو چې راحصار یې کړي او په یو معلوم ځای کې به یې
ونیول پرته د ناروغه او زاړه نه چې خلکو به یې سفارش وکړو نور
ټول به وژل کېدل او عین هم د اروش د لاندې شوو ملکونو د خلکو
سره هم کېدلو او په دې لړکې د تبعیه او د ښاروښود وړاندېو کار
او عسکري انضباط روان وو او برابري د دین احترام د زاهدانو او

د صنعت کارو ساتنه او د لارو ساتنه چې متجاران پرې په امن
او امان تګ راتګ وکړي شي او مال یې وساتلی شي موجود و واو
نور القاب یې لرې کړي وو او یواځې نوم به کفایت کوله او د
دربار حجاب هم لغو وو، د مړي مال به په ورثو ویشل کېده او
که ورثه به نه وو نو شاګرد او غلام ته به یې مال ورکېده ـ
بندیاني ښځې به د چنګیز حضور ته راوستل کېدلې چې د چا لاس
به پرې نه وُلګېدلی، چنګیز به انتخاب کړې او نورې ښځې به په
نورو خلکو وویشلې «حتی د دې قانون احکام په مسلمانانو ملکونو
نه تطبیق کېدل» د غسې نور قوانین هم وو چې خلک د هغو په منلو
مکلف وو او چا غاړه نشوه غړولی، او د حکومت د چلولو کار په
هم دې دول زورور ... روان او چلېده ـ خو د دې قوانینو
تشکیل کوونکی او مؤسس او واکدار چې قهار او جبار وو کله نا
کله به یې د هیلواو د سیسو نه هم کار اخیست او د ورانه به یې
څوک نه وېرول او نه به یې په تهدید کوونکو خبرو بوګنول او په
احتیاط او اعتدال به ورته را وړاندې کېدلو او معذورانه انداز
به یې نه وو کله به یې جانب مقابل ته د ورو لیکل چې که انقیاد
ونکړي او غاړه کېنښېږدي نو خدای پوهېږي چې څه به درسره
وشي!! زه نه پوهېږم پخوانی قدیم خدای پوهېږي او خلک به
یې د خدای په دربار کې ګنهګار او ځان به یې د هغوی د اعمالو

کیفر حساب‌وړ - د چنګیز د دې خبرې به د مسلمانانو په ذهن کې د ده د ن-
نورې نه لږ اثر نه کولو هغه چې سلطان محمد شاه د خوارزم مغلوب
کړو او تعقیب کاوه، کلي او ښارونه یې وران او د خاورو سره
خاورې کړو، چنګیز په دې سفر کې د آسیا یو لوی مورپټ ښار
بلخ چې بې جنګه تسلیم شوی وو وسوزلو او د خاورو سره یې برابر
کړو او خلک یې قتل عام کړه، ده به چېرته چې لښکر لېږلو نو
خلکو ته به یې فرمان لیکلو چې خدای زمکه د غرخاته نه تر نمر پریوتو
ماته بخښلې ده که چا اطاعت وکړو نو هغه په خپلو خپلوانو رحم
وکړو او که نه نو د خپلو خپلوانو سره به هلاک شي - چنګیز یو وار
په بخارا کې په څلورو ارکانو د اسلام تصدیق وکړو او د حج
په باب یې وویلې چې هر ځای د خدای کور دی ټوله زمکه
د هغه ده په دې خبره او تقریر د اسلام فقها په دوو ډلو
وېش شو، یوې ډلې وویلې چې: مسلمان دی چې څلور بنا د اسلام
مني!! او بلې ډلې وویلې چې کافر دی چې د حج فریضه نه مني!!
او حال دا چې چنګیز د بخارا جامع مسجد هم وران کړو او د بخارا
ښار یې لوټې لوټې کړو، او د بخارا مشهوره کتابخانه یې وسوځوله
ځینې اروپائي مورخین په چنګیز بد نه وائي او د خپل مقصد د
حصول په لار کې د ده اعمال بد نه ګڼي لګه ګومان دی چې دوی
په هغه څرګ وي چې د صلیبي جنګونو نه متاثر شوي وي او مسلمانانو

خوارزم افغانستان او ترکانو ته یې په زړه کې غوڅې لرلې - خو
تعجب په دې کې دی چې ځینې شرقي مورخین هم محض د هغوی
تقلید کړي او دوی محض په اروپايي منابعو تکیه کړې ده او څه
چې هغوی وايي دوی یې سم ګڼي او د خپل اجتهاد نه هیڅ کار نه
اخلي - البته ځینې نور جهانګیران لکه اسکندر، او سزار، امیرتیمور
ګورګان او ناپلیون فرانس هم د چنګېز په ردیف کې راتللی شي خونه
د وطنونو په ورانولو او عام قتلونو کې چنګېز او اتیلا د دوی نه -
مخکې دی ځکه اتیلا به ویلې زه د خدای بلا او د جهان چکش -
(څټک) یم او هغه ځای ته چې زما د آس نال ورسیږي هلته بیا ګیاه
نشي شنه کېدلی او چنګېز په آسیا کې دا وینا عملي ثابته کړه خو
د وی دواړو په تاریخ کې توپیر شته دی او هغه دا چې د اتیلا
د مخکې تګ په لار کې لومړی د فرانسویانو د ګلک مقاومت سره مخامخ
شو او په ایطالیه کې د کلیسا د تدبیر سره او د زور او زرو د
تاثیر لاندې بېرته ګرځېدو ته مجبور شو او پس له مرګه یې په -
(۴۵۳م) کې د پنځوس تنو اولادونو په منځ کې په تاج او تخت شخړې
جوړې شوې او دا دواړه حادثې د اروپا د نجات سبب شو - خو
د چنګېز په مقابل کې نه چېرته نظامي مقاومت وو او نه مذهبي
تدبیر او پس له مرګه یې د (۵۰۰) اولادونو په منځ کې د تاج وتخت
په مسئله هیڅ لانجه هم پېښه نه شوه او د مفتوحه ممالکو په منځ کې

لا هم مفضي د نفاق او شقاق شخړې لاسوانی وې او په قرار نه وو او د بې اتفاقه په اور سوزېدل .

# د مغلو د دولت تشکیل

د چنګېز پلار « یسوکا » د بورچقین د مغلي قبیلې[1] وو او د آمو د رود د لوی درېچې په مغلستان کې واقع ده او سېدونکی وو او په « ١١٧٥م »[2] کې مړ شو او د یارلس کلن ځوی یې « تموچین » ترې پاتې شو ، تموچین د قیات په کورنه کې په « ١١٦٢م » کښې پیدا شوی وو او د پلار د مرګ نه پس د قبیلې د مخالفتونو سره مخامخ شو نو د طغرل خان « اونګ خان » د کریت د طایفو بادشاه « کرانیت او ساقین ، پورې » ونښت او دغه نه یې کومک وغوښت ځکه چې دغه وخت د کریت حکومت ډېر قوي وو او د کنتی دغرونو نه نیولې د چین د دېواله پورې فرمان چلېده - دا ترک کریت د نسطوری مسیحي مذهب پیروان وو او دا وخون علیا او التایي

(١) چنګېز په « ١١٦٢م » کې زېږېدلی او د « ٧٢ » کالو په عمر په « ١٢٢٦م » یا « ١٢٢٨م » کې پخپل وطن کې مړ شوی دی .

په منځ زمکه باندې او سیدونکي وو «اونګ خان» د تموچین‌چې وروسته چنګیزخان شو خواهش ومانه او د هغه په مرسته یې ترکث او ارمغل را لاندې کړو۔ خو وروسته تموچین باندې‌هم مشتبه او بدګمانه شو او غوښتل یې چې دی‌هم د منځ نه لرې کړي د تموچین او د اونګ خان په منځ کې درې جنګونه پیښ شو خو په وروستي جنګ کې اونګ خان مات شو دا جنګ په (۱۲۰۲م) کې پیښ شوی وو او تموچین د اونګ خان ټوله کورنۍ د تیغ نه تېره کړه او په دې ډول د کریت قلمرو‌م د تموچین تابع شو او د ده د خاورې جز وګرځېد او تموچین په (۱۲۰۶م) کې د چنګیزخان لقب یعنې لوی شهنشاه غوره او اختیار کړو۔ او چنګیزخان چې په اونګ‌خان بری ومونډ نو د خوارزشا قبایل یې خپل اطاعت ته را وبلل قنقرات او اوبرات قبایلو دا دعوت ومانه خو تاتار او تایمن قبایلو او ورسره جویرات او مرګین خلکو او نورو تموچین ته غاړه کښېنوده له دې وجې چنګیزخان د هغه ټول یو په بل پسې را لاندې کړه او د التایي په جنګ کې د تاتار رئیس «تیانګ» ووژل شو او د تایمنو مشر رئیس کچلوک وتښتېده۔ او د چنګیز ټول مخالفین را لاندې کړی شو، او په دې ډول د مغلو دولت جوړ کړی شو۔

پس له هغې چې چنګیزخان مختلفه قبایل لکه بورچقین، کریت تایمن، اوبرات، ارلات، برلاس، جلایر او نور راغونډ که

او په يوه لويه جرگه کې د خپل قانون نه خبرکړه او هغه يې پرې ومانه ، نو دی د ټولو قبايلو شهنشاه ومانه شو ، چې د مغولو شرگاڼې د بحر خذر نه واخله د جاپان د بحره پورې غزېدلې وې ، او دکېږديو او خيمو نه يې ښارونه جوړ وو - او خلك به يې په ډيگونو او جوش او بوکې تروندي واچول او نورې مهيبې سزاگانې م وې ، چې خلکو او رېدلې هرڅوك و وېرېدل ، نور نو دچا دجنگ جگړو مجال نه وو - د او بغور متمدنو ترکانو چې داحال وليد پخپله يې تابع شو .

# د مغلو فتوحات

په چين کې چنگېزخان د مغلو د دولت د ټينگښت نه وروسته د لوی چين د نيولو په فکر کې شو نو لومړی يې په کال ( ۱۲۰۷ م ) کې « هيا » يعنې تانگوټ چې د چين په غرب کې پراته وو او د منځنۍ آسيا او چين کاروانونه به يې لوټل او وهل او له منځه يې وړل ، د شمالي چين د ولت له دې پېښې نه خوښ شو او دمغلو په مقابل کې چپلې دروازې پرانستلې ، پس له هغې چنگېزخان د سونگ دجنوبي چين امپراطورې او ختايان د شمالي چين په خلاف

پاخول، او پخپله چنګېز خان په (۱۲۱۱م) کې په شمالي چین په پاینخت (لي جي لي، یا، لجلي) حمله وکړه خو د شمالي چین د خلکو د سخت مقاومت سره مخامخ شو، او مجبور شو چې د خپلو ځلور ځامنو سره چې ملګري وو، د غلته وجنګېږي. پنځه کاله ده او ځامنو یې د شمالي چینا یانو سره جنګونه وکړل، خو اخر په کال (۱۲۱۵م) کې چې د پیکنګ ښار یې محاصره کړو د چین طلائي باچا، اوتوبو، د زیږ د ریاب نه هغه خوا کائفونګ ته وتښتېد او د هونان په ولایت کې په (۱۲۳۴م) کال کې د ناامیدۍ په حال کې مړ شو. چنګېز په شمالي چین کې ډېرې مرګ ژوبلې وکړې او ډېرې ورانې وشوې. په دې وخت کې د مغلستان نه د چنګېز خان ته د پخوانو مخالفینو د راپاڅون خبرونه را ورسېدل او چنګېز خان بېرته ګرځېدو ته مجبور شو او د نور چین د ورملو کار معطل شو که څه هم د مغلو یوا فسر (موکولي) څه نور فتوحات هم وکړه او د لیجي لي نه ترشان تونګ پورې قسمت نان او چانسي ته ورسېد. خو د ټول د چین نیول د چنګېز په نصیب نه وو او د اکار یې وروسته نسو وکړو، او اګتائي پس د پلار د مرګ نه ټول چین په (۱۲۳۳م) کې د کوریا تر علاقې پورې را لاندې کړو او د چین خاص پایتخت کایفونګ یې هم فتح کړو. او د سونګ امپراطورۍ یې رنګه کړه. ګیوګ خان د اوګتائي خان ځوی او د هغه په ځای ناست شو (۱۲۴۹م) پورې د مغلو خاقان وو او د جنوبي چین په

خلکو یرغل پیل کړو او پس له ده قبلائي خان تر کال (۱۲۵۹م) نه تر (۱۲۹۳م) پورې جنوبي چین هم تسخیر کړی شو او د سونګ امپراطورۍ قطعاً ړنګه کړه او جلا سرې وروچې د پیکنګ د ښار نوم یې (په خان بالغ) بدل کړو - او د مغلو چپل پایتخت د «یوان» په نوم مشهور کړو - او د ده په زمانه کې وروچې په (۱۲۷۵م) او (۱۲۸۱م) کې په جاپاني مملکت د هاکوزاکي او کوشو په سواحلو کې د مغلو حملې پیل شوې او (۳۰۰۰۰) نه تر (۵۰۰۰۰) عسکرو پورې مغلو او کوریائي لښکر په جاپان ور غلی - چې جنګي د اوبو جازونه هم ور سره وو، د جاپاني خلکو سخت مقاومت او د جاپاني بېلابېلو مشرانو د چین حمله او ر په شا کړه خو چینیانو برما په (۱۲۸۷م) کې ونیوله او د دوی د حملو لمن آن تر اندوچین جزایرو ته او جاوې ته ورسېده مغلو د لوی چین د نیولو نه وروسته په منځنۍ آسیا کې خپل روش څه بدل کې او د صنایعو ترقۍ او تجارت ته پام شو - او په چین کې یې د ول صنعتي انقلاب راغی خپل پخوانی صنعت چیني سازۍ ته یې توجه وکړه او د وریښمو د توکو په جوړولو کې وده وکړه خو خلک د مغلو نه خوښ نه وو پیراځې د دهقانان نه بلکه زمکه وال او تجاران هم ناراض وو او کرکه یې ترې کوله جلا وجوهات وروچې په څوارلسمه پېړۍ کې په چین کې انقلاب راغی او خلکو پاڅون وکړو او په نتیجه کې د مغلو امپراطورۍ ماتې وخوړه او چین خلکو مغل تر

مغلستانه وخڅلول او تابع کړه او د چین د «مینګ» امپراطورۍ تاسیس شوه او تر شپاړلسمې پېړۍ پورې مغل د ګوبي د صحرا په شمال کې بند پاتې شو او په اووه لسمه پېړۍ کې د دوی د اقتدار نه څه پاتې نه وو او مغل په وړو وړو قبیلو کې سره وېش شوو. او د چین ملت د چاپانې زورګیرو او یرغلګرو په مقابل کې هم د دغه شان وکړوا و د مغوی خطر یې هم دفع کړو.

اوس مخکې قصې ته بېرته ګرځو هغه داچې چنګېزخان د شمالي چین د فتح نه وروسته د خپلو دوو جنرالانو په قیادت کې اوسنتبای کاشغرستان ته په غاصب کچلوخان پسې لښکرې ولېږلې هغو جنرالانو فتحه وکړه او کاشغرستان یې لاندې کړو کچلوخان چې بدخشان ته تښتېده په لاره کې ونیول شو او ووژل شو او د تارم او ایلی حوزه او علاقه د یارکند او کاشغرستان تر د دنیاد بام پامیره پورې د مغلو د امپراطورۍ جز وګرځېده دا فتح ځکه زر او اسانه وشوه چې مسلمانان او عیسویان او اویغور او قرلق او المایق قبیلې هم د کچلوخان نه خفه وې او د مغلو کومکي شوې - او کاشغرستان پس له دې د چغتیانو د ادارې لاندې راغی.

# په منځني آسیا د مغلو حمله

چنګیزخان وروسته د مغلي دولت د تشکیل نه او په شمالي چین باندې مسلط کېدو نه او د شرقي ترکستان د نیولو نه وروسته نور نو د مخکې تللو خیال په منځني آسیا کې نه وو ځکه چې هغه د خوارزم بادشاه او دولت په دنیا کې د ېر قوي دولت ګڼلو او خپل صحرائي دولت ورته د هغه په مقابل کې کمزورې برېښېده - ځکه چې خوارزم شاه د سیحون نه تر عراق پورې فرمان چلاوه او په دې هم خبر وو چې د خوارزم شاه څلور سوه زره سوار شته وې او د جنګ په چلو نو هم ښه پوهېږي او د چین او د ایران او هند تجارت تر مدیترانې پورې هم د خوارزم په لاره روان وو د خوارزم سفیرې په پکینګ کې په (۱۲۱۵م) کې سید بهاوالدین رازی ډېر درووند استقبال کړو هغه د تجارت د پاره لارې اوارې کړې وې او د خوارزم کاروانې چې کله ولیدلې ډېر خوښ شو - او چنګیز ور سره خپل سفیر محمود بلوریچ سره د تحفو او پیغامو نو سلطان محمد خوارزم شاه ته ولېږل - او چنګیزخان په دې پیغام کې محمد شاه د غرب بادشاه او ځانې د شرق بادشاه ښودلی وو او د دواړو د دوستۍ خواهش کړې وو خو دا کار ونشو او محمد شاه د مغلو

يو لوي کاروان په اترا کې د چنګېز پر حاکم «ينالجق» معروف په غاير خان تالاکړ او خلک يې ووژل او دا د دې د پاره چې په چين د حملې بهانه ميندېده کړي چنګېز چې خبر شو نو دا ګمان يې نه کاوه چې محمد شاه به داسې لېونتوب کړی وي خو چې صحيح خبر ورته ورسېد نو ير درې تنې جرګه يې چې د وه تنه تاتار مغل او يو مسلمان پکې وو د سفارت په ډول محمد شاه ته ولېږل چې قاتل ماته راکړه او مالونه هم واپس کړه چې زموږ تعلقات پرې خراب نشي محمد شاه په ځای د دې چې څه معقول ځواب ورکړي سفيران يې مړه کړه چنګېز چې د دې واقعې نه خبر شو نو ويې ويل چې داخو بادشاه نه دی بلکه يو غل او قطع طريق دی نو په (۱۲۲۰م) کې د دوه لکو فوځ سره چې ترک او مغل پکې وو ماوراءالنهر ته ور روان شو سلطان هم د خپل فوځ سره د سمرقند نه بخارا ته روان شو او د سيحون پلو ورون ورڅکه چې د د ښمن د حملې وېره هم له هغه پلوه وه ، او د سيحون د واړه غاړې بېولې وې خو مغل د دغه خوا نه نه بلکه د کاشغرستان نه په فرغانه ورغلل خوارزم د دفاع د پاره څه لښکر ور ولېږل خو مغلو له دغې وضعې نه ګټه واخيستله او د بالخاش له خوا يې حمله پيل او د خوارزم شاه قوماندانان يې مات کړه و جلال الدين د بادشاه ځوی له بنې خوانه څه دفاع وکړه او شپه راغله او جنګ ختم شو خو بادشاه د ومره وېرېدلی وو چې نور د پاتې

کېدو نه وو که هرڅو يې جلال الدين او نورو افسرانو د مقاومت وړ ته وويل خو بادشاه نه منله او شپې پرې سپاهيانو د مرګ اقدام هم وکړ . خو څيل احتياط بې کړو او څپل افسران يې دغه فوځونو سره د دفاع په غرض يو ځاى بل ځاى مقرر کړه او پخپله د افغانستان په لوري وخوځېد - دا بدګمانه هم د سلطان د دفتر يو منشي چي پلار يې مخکي سلطان وژلی وو د وی د اتراراشراف وو او دده څپل نوم بدرالدين حميد وو دغه کاغذونه دچنګېز له خوا د سلطان د افسرانو په نوم ده خواره کړي وو او بيام ده سلطان ته څه وښودل او سلطان يې په څپلو افسرانو بدګمانه کړو خو يوازې دغه سړی هم نه وو نور مسلمانان او د کاشغر خلکو او هغه څوک چي د ماوراالنهر د سلطان د بې عدالتۍ نه ناراضه وو هم پکي ګډ وو ت درلود - دا چال يې جوړ کړی وو، سلطان ګرګانج ته امر ورکړو چي دده کډې ايران ته بارکړي او په افغانستان کې هم لويو ښارونو او مرکزونو ته امر ورکړی شو چي د د ښمن يعني دچنګېز د لښکرو سره جنګ او مقاومت ونکړي او تسليم شي چي د ورانۍ نه بچ پاتې شي سلطان څپل وطن هم د غسې خوشې په خوشې مغلي لښکرو ته پرېښود او پخپله د افغانستان نه ايران ته لاړ د خذر

(۱) ګرګنج د امپراطورۍ مرکز وو.

د بحیرې په یوه جزیره کې پټ شو ترڅو چې م هلته پسې مړ شو؛ او خپل ځامن جلال الدّین او رکن الدّین او غیاث الدّین ته یې م د جنګ او د دفاع اجازه ورنکړه او نه یې په خپل ځای څوک انتخاب کړ او نه یې د مملکت ساتنه چاته وسپارله دا په هغه زمانه کې بې جنګه د یوې لویې شهنشاهۍ چنګیز ته تسلیمي وه او بس دا د ول مطلق العنان حکومتونه داسې مثال لري لکه چې یوه لویه خیمه په یوه لویه ستنه ولاړه وي او چېرته تیرګ د خیمې یعنې ستنه ولویږي لویه خیمه م چپه شي، د یو مطلق سلطان د ماتې سره ټول مملکت م مات شي او د ښمن ورته یا هرڅه تر لاندې کړي د سلطان محمّد شاه او چنګیز م د غه حال و، خو په ماوراء النهر او افغانستان کې خوقدم په قدم جنګ او دفاع وکړی شوه چې ټول ښارونه او خلک یې د منځه لاړل خو د ماتې ذلت یې تش په ټورونه مانه.

چنګیز د ماوراء النهر او خوارزم نه تېر شو او ایران ته ورغی هلته چې څه شوي هغه زمونږ د موضوع نه بېله خبره ده. مونږ د افغانستان په باب څه لیکل غواړو دا مونږ مخکې و ښیلې چې د بلخ ښار لکه څنګه چې سره ودې چې مشران او روحانیون یې تسلیم شوي وو خو د بلخ ښار چنګیز خان وران کړ چې د آسیا دا نامتو ښار یې لوټې لوټې کړ او د خاورو سره یې خاورې کړو.

# په افغانستان د مغلو یرغل

## او

## د خلکو دفاع

د مغلو یرغل د افغانستان د اقتصاد او فرهنګ د پاره ډېره موده د انحطاط او تباهۍ سبب شو چنګېز پس له دې چې ماوراءالنهر ته ورغی او بخارایې فتح کړه نو خوارزم شاه له افغانستان نه ایران ته لاړ او د چنګېز د پنځه زره (۳۰۰۰۰) سپاهیان د خوارزم شاه په تعقیب پسې هم افغانستان ته ورغلل او د بلخ نه زاوه ته تېر شو او په بلخ کې څه جنګ ور پېښ نشو بادشاه مخکې - خلک د مقاومت او جنګ نه منع کړي وو خو د زاوه خلکو چې ناڅاپه ګیر شو د مغلو د لښکر مخنیوی وکړ او ډېر مړي یې وشو! د چنګېز فوځونه د خوارزم شاه په تعقیب پسې روان وو د زاوه نه تېر شو او څه او بنږد جنګ یې ونکړ او په مخ روان وو خو په هرات کې د پوشنګ ښار چې لږ څه مقاومت وکړ و مغلو په جنګ جګړو رالاندې کړ او مرګ ژوبله او تالانونه پکې وشو او د مغلو یو امیر هم پکې ووژل شو او مغلي فوځونه د نیشاپور په

لاره په ایران ورننوتل د مغلو دغه چابک تیریدل دافغانستان د هر ځای خلک را پورته کړه او یوه جذبه او ولوله او د پردو په نسبت کرکه یې پیدا شوه او ځای په ځای یې لازم د فاعي ترتیبات ونیول ځو یو مرکزي دولت نه وو او د رهبرۍ مقام یې نه درلود چې د مغلو د زوراور اردو په مقابل کې خپل ځانونه مجهز کړي، دې خلکو خپلې قلعه گانې ترمیم کړې او خپل حصارونه یې هم تازه کړه او د دښمن د راتګ انتظار یې کولو په دې وخت کې د خلکو لاربنودونه دې څو تنو کوله اول سام سرهنګ (کرنیل) د تمار د لوی ولایت په مرکز کې او تخارستان حصار سنه ټینګ وو او ویلې شي چې شلو فرسنګه اوږد والی یې درلود او امیر عمر په بامیانو کې او ملک اختیار الدین محمد بن علي خرپوست په پښتون کې او ملک حسام الدین او ملک قطب الدین په غور کې او ملک الکتاب اختیار الملک د بادغیس او هرات په منځ کې په قلعه گانو کې او پهلوان اصل الدین د فیوار په قادس کې او ملک شمس الدین محمد جوزجاني په هرات کې او د ملک شمس الدین اعتبار یانو په نصیحت کړه د تالقانو او د علاقه مرغاب، کې او د الغ بیګ افسرانو د ګرزیوان په حصار کې او عبید الله پهلوان د غرجستان په قلعه کې او امیر حبشي په تولک. کې او کربر ملک په غزنې کې او اعظم ملک په ننګرهار کې او ملک شیر په کابل کې. د غور مختلفو امیرانو په غورانو کې او ملک نصرت الدین

بن حرب په سیستان کې او ځینې نور مهم ځایونه م ټینګ کړی شو او خلکو ځان د فاع ته چمتو کړو، خو د ولس خلک په دوو ډلو ویش وو. یوې ډلې تاجران، روحانیون او نور اشراف وو چې د حکومت ـ نه چې متزجر او ناراضي وو د مغلو پلوی وو او بله ډله خوار او غریب د مغلو سره په سازش کولو پلویان شو ځکه چې سلطان خوارزم وتښتېد او خلکو ته د مغلو زور معلوم وو چې موږ نه یې مخه نشو نیولی او محض ځانته مصیبت ولې راپیدا کړو، خو ځینې خلک په دې فکر وو چې د وطن نه د فاع زموږ پلرنۍ وظیفه ده او په خپل وطن قربانه ورکول زموږ د پخوانو روایاتو جز دی او ضرور به په هر قیمت چې وي د وطن نه د فاع زموږ ملي د نده ( وظیفه ) ده او دا کار به په ایماندارۍ سره کوو ـ دې ګډوډۍ او مختلفو افکارو په خلکو کې د یو والي قوت او انتظام راپیدا نکړی شو او هر څوک په خپل سر او خپل فکر روان وو لکه چې ویلی شي د قندهار والي علاء الملک چې وا ورېدل چې خوارزم شاه ایران ته وتښتېد نو دی م د دوه زرو عسکرو سره په سیحون «آمو» ور پورې وت او د چنګیز د فوځونو سره مل شو او همدا سړی وو چې غلجو او په غوراتو او ننګرهار کې د مغلو د ګټو د پاره د برخه وکړی شو او ملک رکن الدین کرت دوم سړی وو چې د خیسار قلعه یې په لاس کې وه چې د چنګیز خان بلنه یې ومنله او د مغلو اطاعت یې ومانه او خپل نه مسی ـ

ملك شمس الدّین دچنگیز حضورته ورولیږلو او هدارنگه قتلغ خان
د کرمان والي هم دچنگیزخان اطاعت ومانه ـ امین الملك والي هرات
چې دخوارزم شاه اوښی او د جلال الدین د خوارزم دځوی خسر
وو د مغلو د راتلو سره چې د شمال مغرب نه په هرات راغلل د
مغلو یې اطاعت ومانه او خپل ځان بیچ کړو دا تولې گډ وډې په
افغانستان کې وې او مختلف حالات او مختلف افکار وو چې په
۱۲۲۱م، کې چنگیزخان چې د ماوراالنهر نه تسلی شو نو د افغانستان
په فکر کې شو۔ اوله دریو پلوو یې په افغانستان خپلې لښکرې درې
برخې راسوق کړې اوله برخه فوځ د تخارستان د ولایت دنیولو
دپاره د بدخشان نه د هندوکش پورې او د بدخشان د ورانولو
او ورسره د ولخ او اندراب او نورو دپاره وگمارل شو دا
فوځ په خپل کار بریالی وو مرگ شو بلې او ښارونه یې ورانول
چې ناڅاپه جلال الدین د سلطان محمد شاه دځوی له خوا دپروان
د پلوه پرې حمله وشوه جلال الدین خوږسې نوم وو افغانان
د پروان نه د چنگیزي فوځ مخکې ودرېدل زرونه مغل ووژل
شو او نورو تیښته وکړه.

دویمه برخه مغلي فوځ چې ۸۰،۰ زره تنه وو د تولی د چنگیز
دځوی د قوماندانۍ لاندې د شمال مغربي افغانستان په لاندې
کولو وژلو او ورانولو مامور وو۔ د تولی عسکر د مروچاق

له لارې او او بغشور نه کشک ته نږدې لاره يې ونيوله او ټول دا ځايونه تر ا بيغورد او نسا بارزا وطوس او جاجرم او بيهق او خاف او سنجان او سرخس او زوزابد او سيستان پورې دلټول ځايونه له منځه وړل او له خاور و سره يې برابر کړه هدغسې ټولې د مرو ښار ورک کړ او هرات يې تابع کړ او د درې مياشتو په موده کې دا د ښارونو ورانولو او د خلکو د وژلو کار سرته ورساوه ـ ټولې چې وا ورپه دل چې پلار يې اوس د نصرت کوه دحصار په تسخير لا نښتی دی او ناکام دی نو ځکه له مخه يې د هغه خواته را وګرځوله او د پلار کومک له ورغی او مرغاب ته ور ورسيد لکه مخکې چې ويلی شوی د مغلو دريم برخه لښکر چې څه منظم عسکر و وا وڅه ور سره اسري خلک و وا و ټول به يو لک نفره وو پخپله د چنګيز خان د مشرۍ لاندې د جيحون نه را تېر شوا و مخامخ د بلخ په خوا روان وو هغه (۴۰) زره عسکري رساله په دې موظفه کړه چې د خوار شا خلک ووژني او تالاکړي او اذوقه او خوراکي مواد له منځه يوسي چې د دښمن قواوې ترې استفاده ونکړی شي او دغه فوځ هدغسې وکړه خلک يې ووژل او بنځې او واړه ماشومان يې چنل غلامان کړ او مالونه ترې ولجه کړه ـ او دغه ټول ښارونه او ځايونه يې جزيرې او صحراګانې جورې کړې او زړونه آسونه او غوايان يې له ځان سره بوتلل

دې کار لږ و ډېر اته میاشتې وخت ونیوه او چنګیزخان هم په ورو ورو وراروان وو او بلخ ته نژدې را ورسید.

## الف: د بلخ ښار:

دالوی ښار د مرکزي آسیا او هندوستان د تجارت په لاره کې پروت او دا تې پېړه نه پس مخ په ودانېدو روان وو او هغه ورانېدنې چې د عربو سره په جګړو کې څه ورپېښې شوې وې د غزنویانو په دوره کې هغه بېرته ترمیم شوې چې نه څه دغه ودانه پرمخ لوېږې او ډېرې لوړې تللې وې دالوی ښار دیو لوی دېوال دننه وو او بنه لوی د دېوال ترې تاو وو، او دا تقریباً (۱۲) فرسخه اوږد وو او په هغه وخت چې چنګیز بلخ ته نژدې راغی نو د ښاره «اشراف حکام روحانیون تاجران او افسران» سره د تحفو مخې ته ور غلل او بې له جنګه تسلیم شول او صرف خپل امان یې وغوښت چنګیز په اول کې دا خبره ور سره ومنله او د بلخ خلکو له یې د امان وعده ورکړه، د بلخ د ښار دروازې د ښمن ته پرانستلې شوې او مغلي لښکرې ښار ته راننوتلې دې ورستړګو مغلو ښځې نر او واړه او سپین ږیري حتی ټول ساکنین یو د ښتې ته بوتلل او ورېې ترې یې وساتل ترڅو چې د مرګ امر یې را-

ورسیږي ، د مرګ حکم وشو او قتل و وژل شو او ښار لوټی لوټی شو لکه چې مخکې هم یاد شوی دی داکار د دوی د هغه عمل چې د چنګیز ښار نه یې دفاع نه وه کړی سزا وه.

مارکوپولو اروپائي سیاح پنځوس کاله وروسته له دغې واقعې شمالي افغانستان ته ورغلی وو هغه وایي نه هلته څه د ودانۍ اثار نه مدرسې وې نه کتابخانې چې نومونه یې اوریدل شوي وو صرف هلته د دوړو ځنګلونه ولاړ وو او د ښار ځنګل جوړ وو. پنځوس کاله نور وروسته ابن بطوطه هم افغانستان او بلخ ته ورغلی وو هغه هم دغه خرابه لیدلې وه او څه ودانۍ نه وه داښار همدغسې وران پروت وو تر څو چې په څوارلسمه میلادي پیړه کې دامیر تیمور او ښې امیرحسین د بلخ پخوانی ارګ ، قلعه هندوان ، دخان د یاره د او سپدانې ارګ او قلعه جوړه کړه ، او همدغه ځای ئې د حکومت مرکز کړو ، خو امیر تیمور بلخ بیا وران کړو او تراوسه هم د بلخ ښار پخوانی بلخ نه دی شوی (۱)

وروسته له پنځلسم قرن نه ۳ ربحان قلي خان د بلخ حاکم او

---

(۱) ښاغلی وزیر محمد ګل خان مومند په (۱۳۱۲ هـ.ش) چې د شمال ایالاتو تنظیمه رئیس وو ، هغه د بلخ د ښار د ودانۍ اقدام وکړو او مستر کیش یو اطریشی مهندس (م) کارکاوه.

« سیال »

او واکدار د بلخ د جوړېدو اقدام وکړ او یوه مدرسه یې جوړه کړه خو دا دغه پخوانی ځای نه دی بلکه دا د مزار شریف ښار وو په دولسمه پېړۍ کې د ځینو روایاتو او خوبونو په اثر په قریه «دخیر» کلي کې یو قبر دی چې ویلی شي دا د حضرت علی کرم الله وجهه دی، دی د ابي طالب ځوی او د پیغمبر اسلام تره وو د «۱۴۸۱م» نه دغه ځای د بلخ مرکز ګرځېدلی چې په مزار شریف شهرت لري،

په دې موضوع فاضل حافظ نور محمد خان د اعلحضرت محمد ظاهر شاه سر منشي یو مستند کتاب هم لیکلی دی.

«سیال»

## ب : د تالقان د خلکو مبارزه :

چنګیز د بلخ د ورانولو نه پس پخپله جوزجان او میمنې، فاریاب په لوري روان شو او د مدافعینو په کلو او تنو ور روان وو چې زرګونه وژل شوي او پراته وو ترڅو مرغ رود او د «مرغاب» ته ور سېده سره د دې چې د دې ښار کلي او مضافات او خوا و شا تول ویجاړ او ورانې شوي او خرابه ګرځول شوي وې.

د تالقانو ښار دا او بدلو له لحاظه ډېر مشهور وو چې هلته به ډېر ښه توکران جوړېدل، د دې ښار ارګ د «نصرت کوه» په نوم د یو غره په سربانډې جوړ وو او د نظامي نظره محکم او

تینګ او خلکو چې د چنګیز د راتګ واورېدل نو تصمیم یې ونیوه او
په یو جامع جومات کې سره غونډ شو او قسمونه یې واخیستل چې موږ
به د خپلې ځمکې نه تر مرګه دفاع کوو. او خپلې فاتحې واخیستلې او په
عزم پاڅېده چې د دښمن سره به جنګیږي، دوی شنې جامې -
واغوستلې او د یو بل سره یې مخه ښه وکړه. او دروازې وتړلې او
د ښار په دفاع یې لاس پورې کړو. په دې ډله کې پنځه سوه
عیاران (۱) او څه سواره چې د ځان او سر نه تېر وو هغوی میدان ته
راووتل مغلو د خپل عادت برابر خلکو ته د اطاعت کولو خبره وکړه
خو د تالقان خلکو د مغلو استازي ونه منل او بېرته یې رخصت
کړو. د چنګیز لښکر لکه د مار د ښار نه تاو شو ځکه چې د مغلو حمله
سخته وه د ومره د تالقان د خلکو دفاع هم ښه قوي وه. عیاران
به د ښار نه راووتل او په مغلو به یې ځای په ځای حملې کولې او ډېر
تاوانونه به یې وراړول. او بیا به ښار ته په بل پلو راننوتل، دې
دفاع ورځې، هفتې او میاشتې دوام وکړو، چنګیز په قهر شو او قسم
یې یاد کړو چې د مغلو سواره به ضرور ښار ته ننوځي، خو دا خراسان
کار نه وو؟ دې خلکو ځان په مرګ ګڼلی وو. د چنګیز درې واړه

---

(۱) عیاران هغه ازمایل شوي تینګ د له ایز کسانو ته ویل کېده چې د افغانستان
په اکثرو ځایو کې به وو او د هغه ځای اصلي خلک به وو.

خامن ،،چغتائي خان، اوګتائي خان او تولي خان، چې په ماورالنهر
کې د خپل پلار د حاله خبر شو د هغه کومک له تالقانز ته راغلل
دا لومړي وار وو چې چنګیز د خپل قوت په مقابل کې بل محکم قوت
هم ولیدلو او حیران شو یوه ښار اورګنج، او تراکی او نورو خلکو
هیڅکله هم دغسې دفاع نه وه کړې او نه یې په منځنۍ آسیا کې شمال
وو، چنګیز او د هغه عظیم اردو او خامن یې د یو ور کوچنې ښار
په فتح کولو کې لاعلاج او حیران پاتې وو. داڅه وو؟ داد دغه
خلکو عزم، همت، غیرت، شجاعت، تصمیم او اراده وه چې د چنګیز
زوروړي وه نه رسیده - پدې کې آوازه شوه چې سلطان جلال الدین
د خوارزم شاه ځوی راغی او په غزني کې یې مرکز دی او د جنګ
د پاره ترتیبات نیسي نو د چنګیز هم نور د معطلي حوصله نه وه -
حکم یې وکړو چې خښتې، ګټې او لرګي راوړه او د تالقانز دارګ
برابر بله غونډۍ جوړه کړه چې د هغې نه په جنګ پیل کړو.
هدغسې وشوه او د نصرت کوه په شان یوه پښته غونډۍ -
جوړه کړه او نصرت کوه د حصار د قلعه ګوډ وران شو او د ښمن
دروازه هم ونیوله او په حصار کې د ننه تن په تن او لاس پلاس
جنګ جوړ شو څه خلک پرې را ووتل او په لښکر کې هم ورهره-
مرګ ترو بیله وکړه او څه چې ګیر شو هغه د چنګیز په حکم ټول
و وژل شو ځکه چې چنګیز هغه شجاع او زړور شخص نه وو

چې د زړورو قدردانۍ به یې کوله هغه یو جابر ظالم فاتح وو وطنونه به یې نیول او ورانول او خلک یې وژل، رحم او عاطفه د هغه په زړه کې نه وه. چنګېز د تالقانو ښار په (۱۲۲۲م) کې ونیولو خو د افغانانو نه یې سترګه وسوه او د افغانانو په زړو کې هم له ده نه کرکه او نفرت را ولتېده خو چنګېز هم عزم وکړو چې د دې وطن خلک ژوندي پرېښودل نه دي پکار، نو امر یې وکړو چې خلک و وژني او سرونه یې غوڅوي چې بیا را ژوندي نشي.

چنګېز د تالقانو د نیولو نه وروسته فوراً د غزني خواته وړ روان شو بامیانو ته چې ورسېد هلته یې یو بل حصار ولید و او ویې ویل چې د دې ورانول پکار دي او دا د «ګرزیوان» حصار وو.

## ج: د ګرزیوان د خلکو دفاع:

د ګرزیوان وړه قلعه وه د دغه ځای زړور خلک د دښمن د زور نه ښه خبر وو او د بلخ، جوزجان او میمنې او تالقانو د ورانۍ او ریدلي وو. نو دوی هم د خپلې د فاع د پاره چمتو او کلک و دریدل او جنګ جوړ شو یو پلو خوږې وسلې افغانان وو او بل پلو د چنګیزي فاتح فوځ وو. څو ورځې دې جنګونو دوام

وکړو خود قلعه وهل او نیول څه آسان کار نه وو؟ او مغلي لښکري ډېرې تالاني شوې د یوې میاشتې جګړو نه پس مغلي لښکرې په ښار ورو ختلې او د ګرزیوان وړه قلعه یې ونیوله چې داد بخارا او ماوراالنهر او خوارزم د ښارونو په مقابل کې هیڅ هم نه وه خو په دفاع کې د ټولو نه ممتازه قلعه وه. د چنګیز په حکم ټول خلک او ساکین، تنفس، ووژل شو، او دا قلعه هم د خاورو سره خاورې شوه او چنګیز له دې نه پس د افغانستان زړه ته روان شو.

## د: د بامیانو د خلکو ټینګار:

داپېره د مغلي لښکر په مخکې د بامیانو کلکه او لویه قلعه وه او ډېرو خلکو له دې قلعه نه دفاع کوله د دې ځای د خلکو داول قرن نه تر څوارلسم قرنه پورې دوی او د دوی پلرونو او نیکونو شوندون درلود، او دا تاتوب پېرې ګران وو او دولس سوو ۲۰۰۱ ال کلونو د افغانی مختلفو او څوتمدنونه یې نماینده ګي کوله او له اسلام نه د مخه قرنونه (زماني) هغه وخت چې بلخ د بین المللي تجارت مرکز او د هغه شاهراهونو (لارو) محور وو چې آسیا ته تللي راغلي وې چې د غرب نه به د روم امپراطورۍ ته او د شمال مشرق

نه به د چين پلو او د جنوب مشرق نه هندوستان ته ورغلي وي او راغلي لاري وې - او گروگوبو ديک صنعت د کابل او گندهارا - د رو کي د لوړوالي حد (عروج) ته رسيدلي وو او د باختريان پلو مخ په وړاندې روان وو په دغه وخت کې باميان هم د مخصوص تمدن خاوند مبنار وو د هغه ځای لوې لوې سمڅې او په گټو کښې کنستلي مجسمې چې د دنيا د عاجيباتو نه دي د يادولو وړ دي او په تېره د پنځم قرن عظيمې مجسمې چې يوه (۳۵) او بله يې (۵۳) متره - لوړوالي لري او په ډېر مهارت کنستلي شوي دي د يادولو وړ دي چې د دغو مجسمو کار د اووم قرنه پورې د وام درلود او د عرب ترهجوم پورې لا داکار روان وو او د دغه زينو کار د (۵۳) متره بت پاتي وو - د باميانو د اووې پېړۍ ښار د دې لويو بتانو جنوب غرب خواته واقع وو چې د عرب حملې پرې راغلې او دا ښار وران کړې شو او هغه لويه مجسمه هم زخمي کړې شوه[1]، په باميانو کې يو بل لوی ښار هم وو چې د ضحاک په ښار مشهور وو هغه د ورانۍ د سرنوشت سره مخامخ شو - خو د دې پخوانو ښارونو په بدل او عوض کې د اسلامي نفوذ په وخت کې يو بل نوی ښار د غوغه په نامه په جنوب

---

(۱) بيا وروسته د نظام شاه په وخت کې د هند د حکومت په کومک د دغه مجسمې بيا ترميم شوی چې د ليدلو وړ دي. (سيال)

مشرق برخه کې مخامخ دغه بتانو ته ودان کړی شوي چې خلکو به ورته
بنار غلغله ویله. او اوس یې هم خلک دغه ورانه د غلغلې د بنار په
نوم یادوي دا بنار د دیارلسمې پېړۍ پورې د بامیانو اداري مرکز
او د اسلامي علم او فرهنګ کان وو او په همدغه پېړۍ کې د چنګیز
مغلي فوځ په راغی او دغه ښاریې وران او لوټې لوټې کړ وچې اوس
یې هم اثار شته دی . د بامیانو لوی ۵۳، متره بت نادر افشار هم یو
وار په ۱۸۰۱ قرن کې په توپونو ویشتلی وو او ښپې یې لوېدلې وې.
او ویلی شي چې د امیر دوست محمد خان کډې چې مزار ته تللې د مخه
یې یې دا بربنډ بت چې عورت یې ښکارېده حکم وکړ چې په توپ
یې وولئ، خو بیا لکه د تېر مخ په حاشیه کې چې ولوستل شو ترمیم
شوی وو. چنګیز چې دې ښار ته راورسېد نو خلکو ته یې د تسلیمېد
خه نا امیده بلنه خو ورکړه خو د بامیانو خلکو دا بلنه رد کړه او جنګ
ونښت د بامیانو خلک هم د تالقانو او ګرزیوان د خلکو په شان ښه
په مړانه جنګېدل د چنګیز خان ډېره تادي وه چې دا کار ژر یې خواته
شي ځکه چې اورېدلي یې وو چې نوی د مه لښکر د سلطان جلال الدین
سره د دوی جنګ ته راروان دی او د غزنۍ نه پروان ته رارسېدلی
دی او د ده لېږلی لښکریې مات کړی هم دی او د نورې په زور
یې د مغلي لښکر نه د والیان قلعه آزاده کړې ده او د مغلو د محاصرې
نه یې خلاصه کړې ده او مغلي سپایان د تخارستان په پرېښودلو.

هم مجبور شوی دی نو دا وو چې چنګېز هېڅ دمه نه کوله او په
باميانو به يې پرله پسې حملې کولې . او د باميانو خلکو ورته ښه
ټينګه کړې وه چې آخر په دې جنګونو کې د چنګېز نمسی «موتوجن»
د چغتائي ځوی په غشو زخمي شو او بيا ورپسې مړ شو، او چنګېز
دومره قهرېده چې چپله خولې يې په ځمکه وويشتله او سرتور
سر د لښکر په مخکې جنګ ته روان شو مغلو چې دا حال وليد لکه
مېږي په قلعه ور وختل او نور د ګټو او غشو ويشتلو اثر
پاتې نشو او خلک د سرو په مړو په د پوالونو ور وختل او قلعه
يې لاندې کړه او د چنګېز قهر او غضب او وحشت چې په جهان
کې مثال نه لري او مشهور وو او عدالته يې ښکاره کړ وا او په
دې خلکو يې انتهائي ظلمونه وکړه وا ړه يې حلال کړه او د ښځو
ګېډې يې څيرې او بچې ترې ووژل او بيا يې حيوانات سپي او
پيشوګان هم ژوندي پرېښودل ، او ونې بوټي له بېخه ووېستل
او شينکي او ګلان او هرڅه يې د ځمکې له مخه ورک کړه او بيا د
ګټو وار راغی برجونه د پوالونه ګټې ګټې ته د ماتولو سزا ورکړه
او ټولې ودانۍ يې بې له اشتثنا ورانې کړې چې آينده پکې کوم ساکښ
ونه اوسېدلی شي او په دې وران ښار يې د «ما، باليغ» نوم کېښود
او پخپله چنګېز چې دا کارونه خلاص کړه او فارغ شو نو غزني ته
ور روان شو.

## ه :- دنورو قلعه ګانو او حصارونو مدافعه :

دافغانستان ټولو خلکو او د هرې قلعه او حصار اوسېدونکو
د چنګیز د لښکرو سره دغسې جنګونه وکړه او د خپلې علاقې او وطن
نه یې ایماندارانه او په مېړانه مدافعه وکړه او د تسلیمه پېغور یې
ونه مانه د افغاني ولس دفاع او د مغلي فوځونو او چنګیز قهر
او دهغه د اخلاقو سره یې دریغه وجنګېدل چې مورخین او ورې نو
حیرت پرې کوي او بل چېرته یې دغسې مثالونه نه لیدلي او نه اوریدلي
او نه یې لیکلي دي لکه د "کالیون" چې د هرات نه په شل فرسنګه-
واقع دی او په یوه لوړه باندې جوړ دی یو کال او څلور میاشتې یې
د مغلي لښکرو په مقابل کې مدافعه وکړه او منه ټینګ ولاړ وو او-
تسلیم نه شولو او اخر چې ټول ووژل شو او له منځه لاړل، مورخ-
منهاج السراج چې پخپله د چنګیزخان معاصر دی په دې باب وایي :

چې د ابوبکر دوه ځامن چې د سلطان محمد پهلوانان وو دغه په
قلعه کې وو او د دغه قلعه کوټوالان وو او یو د خوارزم شاه
حکمران هم هلته راغلی وو - د چنګیز د کفار لښکر سره دغسې په مېړانه
وجنګېدل چې د مېړانې قصې یې پاتې شوې او مغلو به له دوی د وېرې
چې د دغه قلعه خلکو او عیارانو به پرې داړې کولې د شپې هم خوب

او آرام نه وو- د قلعه او سیدونکي په ایمانداره جنګېدل او -
«۱۸» میاشتې یې قلعه بندګو کړه خو د لاندي «وچه غوښه» او پسته
به یې خوړله ټول ناروغه شوا و وبائي نارو غه اکثره د منځه ولاړل
اخر ټول «۵۰» تنه پاتې شو چي «۳۰» تنه یې نارو غه او «۲۰» جوړ
وو، مغل چي خبر شو په قلعه ور وختل او هغوی هم توري پلاس
مقابله کوله ترڅو چي ټول شهیدان شو او قلعه حصار «کالیون» د-
مغلو په لاس خوړمړه مړده پس ورغله.
او همدا ډول «اشیار» د قلعه خلکو چي په غرجستان کي واقع ده
د مغلو په مقابل کي یوکال او دري میاشتي مقاومت او ټینګار وکړه
چي آخر قلعه ورانه او د وی ټول وژل شو خو تسلیم نشو- د قلعه
حکران میرمحمد خان مرغزي وو چي د چنګیز د فوځ سره په تالقانو او
ګرزیوان کي جنګېدلي وو او بیا به یې د چنګیز په فوځونو داړې کولې
او د هر خلک توري بندیان کړي وو او د هر قیمتي شیان یې تري ولجه
کړي وو او د هر یې توري وژلي وو او د هر ورسره بندیان هم وو
چنګیز چي د سنده د فتحي نه بېرته راوګرځېد چنل خوی «تولي» -
موظف کړه چي د افغانستان پاتي قلعه ګاني هم وراني کړي تولي دلس
زره منجنیقونو په اشیار قلعه ورغی هرڅومره وسه یې چي وکړه
قلعه فتحه نه شوه ترڅو چي ټول قلعه وال د لوږې او نارو غه نه مړه
شو نو بیا پري مغل ور وختل خو امیرمحمد خان بیا هم د خپلو «۳۰» تنو

ملګرو سره مقابله کوله تر څو چې ټول شهیدان شول.

د تولک د حصار خلکو م اته میاشتې جنګونه وکړل تر څو چې مغل پرې غالب نه شو او ناکام تر ې وګرځېدل ، او د «فیوار» د قلعه خلکو هم چې په قادس کې وه سره د دې چې خوراک یې نه درلوده څو دوه میاشتې وجنګېدل - خو آخر مغلو لاندې کړه ، د «سیفرود» د حصار خلک چې په غور کې واقع وو د څښلو اوبه یې نه لرلې (۲۴) نور - حیوانات یې له تندې مړه شول سره د دې هم د دښمن ته تسلیم نه شول - د دې حصار خلکو د اوبو یو تالاو درلود چې د (۴۰) ورځو د - څښلو اوبه پکې وې - منکوته نوین او قراچه نوین مغلو سردارانو مخکې له دې چې دا قلعه محاصره کړي د خوا و شا خلکو نه یې مالونه تالا کړي وو په قلعه کې حاکم ملک قطب الدّین وو په دوی د تندی نه ډېرې سختې تېرې شوې آخر پرې خدای باران وکړو او اوبه یې ذخیره کړې او مغل پوه شو چې نور د قلعه وخته نه کېږي نو ترې په شا شو او موقتاً د سیفرود حصار پاتې شو - چې ژمی تېر شو مغل په سیفرود بیا راغلل څو ګتې یې ونکړې او بیا په شا شو.

جوزجاني معاصر مورخ یې ډېر بیانونه کړي دي خو موږ نه د - وخت د کمي له امله ترې تېرېږو. د فیروزکوه د ښار خلکو م ایماندارانه (۲۱) ورځې جنګونه په میړانه وکړل او ژمی پرې راغی مغل بېرته ترې په شا شو - خو غښې په لار کې نور و قلعه ګانو او حصارونو د مغلو د -

یرغلونو په میړانه سره مقابله او مدافعه کوله او تسلیم شوي نه دي چې د هغوی نه د هغوی وران حصارونه او قلعه گانې په میراث پاتې دي او اوس یې هم نښې نښانې شته دی؛

د جوینی، یو مورخ په خای ویلي دي چې او سني خلك د هغوی په لسمه هم نه رسېږي نه دي د افغانستان ښارونه د مدنیت او فرهنگ او تجارت مرکزونه وو خود چنگېز څه ډول ماجرا پرې راغلې او څه بدې ورځې یې ولیدلې او څنگه وران شو؟!!

## و، د مرو د خلکو مبارزه:

د مرو ښار هم د افغانستان د نورو لویو ښارونو لکه: بلخ، هرات او نیشاپور په شان ودان ښار وو او د خپل خوار و مشاو سید و سره (۷۰۰۰۰۰)، تنه آبادي درلودله، چې د هغه جملې نه (٦۰۰۰۰) یوا ځې ترکمانان وو. مغل د مرو د خلکو سره جنگونه وکړه خو بریالي یې ونه مونده ترڅو چې بیا په (۱۲۲۱م)، کې تولی د خپل مهاجم او یرغلگر لښکر سره بیا مرو ته راغی او شپږ ورځې سخت جنگونه وشو خو مغلو څه بریې ونکړو خو آخر مجیرالملك د مرو حاکم او څېنو اشرافو خیانت وکړ او تولي ته پلاس ورغلل. په مرو کې څو مره کتابخانې او کتابونه او طلبه وو د هر ودان او مور ښار وو (یاقوت حموی)، د مغلونه

مخکې هغه د مرو ښار لیدلی وو او هغه یې د ودانۍ او مالدارۍ او علم ذکر کړی دی - آخر تولي مجیرالملک او د مرو ټول خلک ووژل او ویلی شي چې د دې خلکو شماره لږ و ډېر لس لکه یو میلون ته وو، د دې ورانۍ او قتل او غارت نه وروسته تولي نیشاپور ته روان شو - د مرو ښار د ګورګانیانو په وخت کې شاهرخ میرزا چې د تیمور ځوی وو بادشاه شو نو بیا ځنې ودان شو؛

## ز، د نیشاپور د خلکو مبارزه،

د خوارزم شاه د تیښتې نه وروسته چې ایران ته ورغی د نیشاپور حکومت یې د مجیرالملک کافي وخی (چې دا د مجیرالملک مروزي نه، بل شخص دی- ورکړی شوی وو او مرستیالان یې فخرالملک جامي او ضیاءالملک زوزني مقرر شوي وو نیشاپور یو واری په (۱۲۱۷م) کې د غزان د لاسه وران شوی وو او دا د نیشاپور نوی ښار وو چې اوس د مغلو د حملې او یرغل په مخکې وو. د نیشاپور د دفاعي ترتیبات لا نیول شوي نه وو چې مجیرالملک د مغلو سره سازباز وکړو او د مغو شحنه (حاکم) یې ومانه ځو خلکو د مغلو حاکم ووژه او یو علوي روحاني دغه رپوټ مغلو ته ورساوه او داوو چې د مغلو لښکر د چنګیزخان ځوم (تغاجار) په مشرۍ کې نیشاپور

ته راورسېد او نېشاپور يې محاصره کړو . سخت جنګ جوړ شو او
ښاريانو ښه په کلکه دفاع کوله او پخپله تغاجار مغلي افسر په يرغشي
ولګېد او ووژل شو او مغلي لښکر په شا شو او د نېشاپور په ځای
يې په سبزه وار حمله وکړه د سبزه وار خلکو هم مدافعه وکړه خو د
درې ورځو جنګ نه وروسته مات شو او ښار يې د مغلو لښکر
ته وسپاره مغلو دغه ښار چې اويا زره (۷۰۰۰۰) نفوس يې درلوده
ټول ووژل .

په (۱۲۲۱م) کال تولي خان د چنګېز خان ځوی چې د مرو ښار
وران کړی وو نېشاپور ته سره د لښکره راورسېد چې درې زره
منجنيق او د ګچې ګاډي هم ورسره وو د ښار خلکو بيا په دفاع -
لاس پورې کړو مغل هم ښه په سختۍ جنګېدل غوښتل يې چې د چنګېز
د زوم انتقام او بدله د دې خلکو نه واخلي او د وينو رودونه
روان کړي د همدې مقصد د پاره د تغاجار ښځه د چنګېز لور هم د
دې لښکر سره راغلې وه . د نېشاپور په خلکو مخکې قحط راغلی وو
او پوره خوراک غله او اذوقه يې هم نه لرله او پرېشانه وو خو
د خپل ښار نه يې په کلکه دفاع کوله په څلورمه ورځ مغلو په
ښار کلک يرغل وکړو او د حصار په دېوالونو ورواوښتل او
ښار يې رالاندې کړو او ټول خلک يې ووژل او ښار يې وران
کړو او په يې پرې راپرېښودلې چې آوار يې کړي او د نېشاپور ښار

م د افغانستان د نورو ښارونو لکه بلخ ، مرو ، هرات ، او نورو د منځه لاړا او د مغلو لښکر بیا هرات ته را وګرځېد.

## د هرات د خلکو دفاع

د هرات مشهور او لوی ښار چې یو د افغانستان د پخوانو ښارونو نه وو او د اسلام نه مخکې هم موجود وو، د هرات ښار څلور دروازې لرلې او د ښار په منځ کې یې ارګ وو او دارالاماره یې د ښار نه د باندې د رلوده ویلی شي او حمدالله قزوینی لیکلي چې :- په دولسم قرن کې د هرات ښار د غوریانو په وخت کې د ولس زره دوکانونه د رلودل او اته شلوېښت زره کورونه او (۳۵۰) مدرسې او خانقاوې هم درلودلې . او دا ښار د میوو او رنګارنګ نعمتونونه ډک ښار وو. او په ټول جهان کې یې مثال نه وو؛

په (۱۲۲۱م) کې چې مغل راتلل د هرات حکومت د ملك شمس الدین جوزجاني پلاس کې وو څکه چې د جلال الدین ماما امین الملك خوارزمي پخواني حاکم د مغلو د پخوانۍ حملې په وخت کې لا پخوا تښتېدلی وو او په سند کې وو او د مغلو سره یې جګړې پرېښې وه ملك شمس الدین د ده په خلاف یو مېړه شخص وو او ځیله وظیفه یې ښه پېژندله ، څه وخت چې تولي خان د نیشاپور د وړانۍ نه پس هرات ته

راغی او خپل استازی ملك شمس‌الدین جوزجانی او د ښار قاضي او خلکو ته ولیږلوا و د تسلیمۍ غوښتنه یې کړې وه ملك شمس الدین- هغه استازی وواژه په دې ګناه چې دغه د هرات د خلکو سپکاوی کړی وو چې د تسلیمۍ پیغام یې راوړی وو او د مغلي لښکر سره یې د - جنګ عملی اعلام وکړو، جګړه جوړه شوه او پرله پسې روانه وه په اومه ورځ ٧ ملك شمس الدین چې په اول صف کې ولاړ وو د مغلو په یرغشي و لګېد او مړشو نو د ښار روحانیونو او اشرافو ته موقع پلاس ورغله او په نوم د صلحې د مغلو اردو او لښکر ته ورغلل او ښار یې مغلو ته وسپاره د وی ته امان ورکړی شو خو تولي خان ښار ته ورننوت او (١٢) زره مدافعین د ښار یې قتل وواژل خو ښار یې وران نه کړو ځکه چې د تولي خان دا ښار او د دې صنایع او په تېره د زربفتو او بدل یې ډېر خوښ وو- او بیره یې هم کوله چې زر د خپل پلار کومك ته ورورسیږي چې هغه د تالقانو د نصرت کوه د حصار په جګړو لخته وو، تولي خان د وطلي شوي ښارونو نه څه څه تحفې هم د ځان سره ور وړلې خو یو شی یکې زیات وو او هغه دا چې د هرات نه یې قاضي وحیدالدین پوشنګی هم د ځان سره بندي بوتللو دا یو لوی فقیه او قاضي وو، د دې قاضي دا امتیاز وو چې څلور زره او وسله هم ور سره وه او د ښار د خلکو سره د مدافعینو په ډله کې سم ولاړ وو چنګیزخان ده ته په یو مجلس کې وویل چې خلك به زما څه عجیبه یا د

کوي او زما قصې به کوي؟ قاضي په خوب کې ووېل چې خلک خوځول
تا وروژل څوک به ستا قصې وکړي؟
خان په قهر شو او قاضي ترې پټ شو.

د هرات ښېول چې تولی وکړه دا په زور نه وو بلکه په صلح رو او روغه ته ورته وو- څه موده وروسته بیا خلک پاڅېدل او د مغلو شحنه، حاکم ووژه او ملک مبارزالدین او ملک فخرالدین یې خپل مشران وټاکل، او قسمونه یې وکړل چې ترمرګه پورې به د وطن نه د د ښمن په مقابل کې دفاع کوي؛ چنګیز چې خبر شو خپل ځوی تولي و ترا ته چې تاولې زما د قانون پاسا په خلاف قتل عام په هرات کې نه وو کړی؟

او بیا یې اتیا زره لښکر او پنځوس زره حشریان د بلچیکیدای په مشرۍ هرات ته ور ولېږل ورته امر یې وکړو چې یو ساکښ به م ژوندی نه پرېږدې!! او وداخه به تولې ورانوې، مغل ورورسېدل او شپه او ورځ بیا جنګونه ونښتل او خلکو په مېړانه دفاع کوله د مغلو په هره حمله کې به لږ ترلږه پنځه زره تنه ترې وژل کېدل - دې جنګونو ډېر دوام وکړو او میاشتې میاشتې تېرې شوې چې تولې شپږ (٦) میاشتې او (١٢) ورځې وشوې، مغلو ته له هرخوا خوراک او خطونه را رسېدل او د هرات په خلکو تولې لارې بندې وې او صرف د ژوندي ساتلو د پاره لږه څه خوراکه یې لرله خو بیا هم په مېړانه یې دفاع کوله او پخپله وعده ولاړ وو اخر د هرات د قلعه د پوال چې د مغلو

په ډېرو ګټو ویشتل شوي وو او کمزوري وو اخر ولوېدا او د مغلي لښکر پخوس تنه یې لاندې کړل او مړه شول. د قلعه د لوېدلې د پړاو نه مغلي لښکرې ورننوتې او په ښار کې یې قتل عام جوړ کړه. قاضي جوزجاني لیکي چې دغه وخت د هرات په ښار کې شپږ سوه زره «۶۰۰۰۰۰» نفوس وو او خوا و شا د وه میلونه او څلور سوه زره خلک ژوند. کاوه چې مغلو دا ټول خلک د تېغ نه تېر کړه او ودانۍ یې ورانې کړې او مغلي افسر ولچیکیدای څپل لښکر د هرات شرق «اوبه» ته راټې کړو او په ښارې اور پورې کړو او بیا یې رساله ښار ته ولېږله چې که څوک ژوندي پاتې وي چې هغه هم ووژنې. هغوي چې ولیدل لږ و ډېر درې زره تنه ژوندي او راغونډ شوي وو په دې کې د مغلو رساله وروړسېدله او هغه یې هم ټول ووژل او رساله بېرته څپل اردو ته ستنه سوه او دا «۱۲۲۱م» کال وو. وروسته بیا معلومه شوه چې د هرات د ډېرو ګڼ ښارونه صرف «۱۶» تنه ژوندي په پښتونخوا غرونو کې پاتې شوي وو چې یو یې د ښار خطیب شرف الدین جغرتان وو چې د جماعت په یو چاود کې ستوتلی ژوندي دا هغه لوی جامعت دی چې سلطان غیاث الدین غوري جوړ کړی دی او په جهان کې یې مثال نشته دی او دا پخو خښتو نه جوړ دی او د مغلو د ورانۍ نه بچ پاتې شوی وو چې وروسته بیا ملک شمس الدین کرت ترمیم کړو. د هرات ورانۍ ډېره مرده د بلخ په شان پاتې نه شو بلکه بیا یې ودانۍ د امیر عز الدین مقدم هراتي د

اوګتائ د چنګیز د ځوی په عهد کې داوداڼه پیل شوه او هرات څه و دان شو او د کرتانو امراو وروستهٔ وروسته د هرات په ودانۍ کې د پر لاس کړی دی ـ د بلخ او مرو ښار ورانوو او هرات پراخې دیو تجارتي لارې د اتصال دیوي کړه په شکل پاتې وو تر څو چې منځنۍ ـ اسیا ته د ریل ګاډي پټلۍ را ورسېدله ۰

امیر تیمور ګورګان په (۱۳۸۱م) کال کې د هرات ودان شوی ښار بیا وران کړو خو د هغه د ځوی له خوا دغه تاریخي ښار بیا ودان کړی شو او هغه شهزاده میرزا شاهرخ وو چې هرات په (۱۴۱۵م) کې ودان کړه او د ابوسعید میرزا په وخت کې په (۱۴۵۸م) کې او (۱۴۶۹م) کې او سلطان حسین په (۱۴۶۹م) او په (۱۵۰۶م) کال کې د هرات ودانۍ ته خاصه ـ پاملرنه وکړه ـ او په تېره تېره د شاهرخ میرزا ملکې ګوهرشاد د هرات د ښار او جامع جومات او مدرسې او منارو د جوړولو په کار کې پوره برخه اخیستې وه خو دغه ښار د اوزبکو د حملو په وخت او د صفویانو د حملې او یرغلونو په وخت کې بیا د پر تاوانونه ولیدل او ورسره نژدې د اسفزار ښار هم مغلو وران کړی وو او خلکو بیا څه جوړ کړي وو خو امیر تیمور ګورګا بیا په (۱۳۸۳م) کې وران کړه ۰ او د دوو زرو ـ سرو د سرنه یې مناره ورسره جوړه کړه ۰

## ط : د سیستان د خلکو ریښتنې مېړانه او افغانستان جزوي مبارزه :

د مغلو لومړی حمله په سیستان په (۱۲۲۱م) کې وشوه چې مغلي لښکر د تولي خان په مشرۍ کې ورغلي وې، تولي د مرو او هرات او نیشاپور او د شمال مغربي افغانستان د ورانولو د پاره مامور وو. د غه وخت د سیستان حاکم ملک نصرت الدین بهرامشاه حرب وو. د تولي لښکر په سیستان راوګرځېده او ښار یې محاصره کړو خلکو ښه په مېړانه مدافعه کوله او مغلو ونکړې شو چې کامل بری پیدا کړي. په دې جګړه کې ملک نصرت الدین په د غه جنګونو کې ووژل شو، دويم وار د مغلو سوقیات د اوګتائي په مشرۍ کې وشو چې دوه تنه مغلي لوی افسران د منګده چرنبي او سعدي چرنبي، م ورسره وو، دا پېره د پخواني امیر ورور او جانشین یې ملک رکن الدین محمود بن حرب وو چې د سیستان خلک بیا د مغلو مقابلې ته د نرو په څېر ودرېدل او جګړې کېدلې آخر امیر مات شو او تولو کورنۍ یې د مغلو د تېغ نه تېره شوه او شهیدان شو. مغلو قتل عام وکړو او ښار او برجونه یې وران کړه.

مؤرخ منهاج السراج جوزجاني د خپل کتاب په دوهم جلد کې په ۱۲۸ پاڼه کې لیکي چې د سیستان نرو ښځو په ایماندارۍ جنګونه کول

تر څو چې ټول شهیدان شو. بیا وروسته تاج الدین نیالتگین خوارزمي د مغلو سره جنګ جګړې وکړې.

په ( ۱۲۲۲ م) کې بیا مغلي لښکرې په سیستان ور وختلې خو دا پېره د سیستان خلک د هر ټینګ ولاړ وو او یو کال او اوه میاشتې جنګونه روان و اخر نیالتگین په جنګ کې زخمي او وینول شو او بیا مغلو اعدام کړ او قلعه مغلو ونیوله او یکې ټول غوري او تولکی او سیستاني خلک ووژل شو. او و دانۍ یې ټولې ورانې کړې څه موده وروسته د جلال الدین یو حاجب ( قراچه ) راغی او د مغلو سره په داره ،،ګوریلا،، جنګونو لګیا شو. او پدې جنګونو یې مغل سبه تنګ کړه اوکتائي خان د سلطان جلال الدین په ټولو پسې ایران او طایر بهادر ته ولېږل او یو څه نوځ یې د قراچه حاجب پسې مؤظف کړه. قراچه حاجب په ( ۱۲۲۳ م) او ( ۱۲۳۵ م) کې مغلو سره سبه په مېړانه وجنګېدل او د مغلو م په چل منځ کې یې اتفاقي راغله او په شا کېدو ته مجبور شو. او خلکو یو څه د آرام سا واخیسته د ښار ودانۍ ورانه او د سیستان د لوېټي لوېټي کولو نه وروسته د سیستان مرکزي ښار جلال آباد شو او د دغه ښار د څه نه څه ودان شو څو چې د امیر تیمور لښکرې پرې راغلې دغه ښار او بند رستم چې د زرنج نه یو منزل برهه وو هم وران کړو، په دغه بند کې به د هلمند نه راغلې اوبه جمع کېدې او سیستان ته به یې د

ضرورت وو او به ور کولې دا بندچې وران شو زمکې شاړې او شګې
شوې او هغه پخوانۍ ښایست او زرغونتیا یې مغلو د منځه وړه.

## د پروان جنګ:

د چنګیز د راتلو په وخت کې د غزني ښار په افغانستان کې په داخلي اغتشاشاتو اخته وو او حال داچې د هندوکش په جنوب کې دا یوله لویو او مرکزي ښار وو او د ټولو جنوبي ایالتونو اداري مرکز هم پاتې وو. دا ښار علاؤالدین غوري جهانسوز وران کړی وو خو د هغه اخلافو دا ښار بیا ودان کړی شو او سلطان شهاب الدین محمد سام په خپل وخت کې د دې ښار ودانۍ ته ډېر پام شوی وو او د غوري سلطنت د تجزیه کېدو نه وروسته د غزني ښار بیا د یلدوز تاج الدین غوري په وخت کې هم د هغه د حکومت اداري مرکز وو وروسته غزني او ځینې ځایونه شاعلاقې د جلال الدین خوارزم شاه د محمد شاه د مشرځوی په جاګیر کې حساب وو نو توجه به ورته کېدله او خپل اداري اهمیت یې هم ساتلی وو.

څه وخت چې مغلي لښکرې غزني ته راتللې د غه وخت په غزني کې محلي حاکم او مدافع (کربر ملک وو) او د ښار کوټوال — صلاح الدین محمد نسائي وو. سلطان محمد شاه د تېښتې په حال کې

چې ایران ته تللو نو غزني ته یې اختیارالدین محمد بن علی خرپوست
غوري د پېښور حاکم یې غزني ته راوغوښت چې د مغلي لښکر۔
مدافعه وکړي - خلکو هم د ده منه نوم اوریدلی او ټول خلک
ورته راټول شو او په لږ وخت کې تقریباً یو لک لښکر راټول شو
او د ده نوم په خوارزمشاه خلکو کې هم خپور شو او د ده د منه شهرت
نه خلک خبر وو دی هغه سړی وو چې د تالقان د نصرت کوه
قلعه یې لږ او د پرلس کاله د مغلي لښکر په مقابل کې وساتله دی
د مغلو سره د جنګونو متخصص ګاڼه شو- په دې وخت کې د-
سلطان جلال الدین نامتو وزیر شمس الملک شهاب الدین الپ
چې غزنۍ او غور یې پلاس کې وو هغه غزني ته راغلی وو د خوارزم
شاه خپله سکه حپلوان او مخکې د هرات نه سنده ته تښتیدلی
وو هغه د اختیارالدین د واکدارۍ چې وا وریدل نو د حسد اور
کېنې نه یې په طوطیه او چالونو لاس پورې کړو او شمس الدین
وزیر او صلاح الدین کوټوال یې ولمسول چې اختیارالدین ووژني
امین الملک د خوارزم شاهي کورنۍ یو فرد هغه هم په دې سازش
کې شامل وو۔ اختیارالدین په یوه میلمستیا کې خاینانو ووژه
او د هغه لښکر چې له دې واقعې نه خبر شو ټول یو پلو بل پلو
لاړل او خواره شو د وی خو د دغه نومیالی او توریالی قوماندان
اختیارالدین په نوم راټول شوی وو هغوی کله غوښتل چې د-

شمس الدین وزیر او صلاح الدین خوندي خاینانو سره یاتې شي - مغلو
ته لار اواره شوه سلطان جلال الدین چې خبر شو نو متاثر شو او د
نیشاپور او هرات په لاره غزني ته را روان شو خو دده نه مخکې
وخت شناس امین الملک غزني ته را ورسید او د چارو واک یې په
لاس کې ونیولو او شمس الدین وزیر یې بندي کړ او د غزني واک
یې صلاح الدین کوتوال ته ورکړ او دی د سلطان جلال الدین د-
خپلې ترور ځوی وو او مخې ته ور روان شو او پس د تشریفاتو نه
غزني ته راغلل جلال الدین شمس الدین وزیر له بنده خوشې کړو
خو د غزني خلک د خپلو مشرانو او ځینو اشرافو نه چې گوندی او-
پرې کولې او د مملکت دفاع ته یې هیڅ پام نه وو خفه وو آخر
خلک را پاڅیدل او صلاح الدین کوتوال یې وواژه. او ځای ترمزي
ورونو ته ورکړه چې رضی الملک او عمدة الملک، نوموړي یې
و. و خو ملک شیر د کابل والي د ترمزي ورونو مخالف وو او په اتفاق
د اعظم الملک د ننگرهار د والي، د بلخ د پخواني والي د عمادالدین
ځوی په غزني حمله وکړه او غزني یې د ترمزي ورونو نه ونیوه خو هغه
وخت چې سلطان جلال الدین په (۱۲۲۰م) کې چې غزني ته را ورسید
نو د غزني خلک بیا پدې زړور شخص را ټول شو او دده د بیرغ
لاندې خلک د خپل وطن د فاع ته په ټینگه ودریدل او یو لوی
اردو چې تقریباً دري لکه خلک کیدل تشکیل شو- اعظم ملک د ننگرهار

والي ، ملک شېر د کابل والي او سيف الدين اغراق د پېښور والي او ملک مظفر د پښتنو قبايلو مشر د دې اردو پر منلي او ستر قوماندان وو. خو د سلطان جلال الدين خسر او د ماما ځوی امين الملک د مملکت د لستونې مار وو او د خان د ګټې د پاره فعاليتونه کول او هم د امين الملک د مغلو په مقابل کې د خلکو فعاليتونه سست او فلج کړه او قومي لښکر ته يې غټه صدمه ورسوله په هرحال سلطان جلال الدين د غزني نه د کابل په لاره پروان ته راغی او پروان يې د خپل فوځ مسکر کړو او هلته يې بارونه پرېښودل او دی په خپله د څه لښکر سره ،، والليان ،، ته وروان شو د مغلو لښکر د هغه ځای نه په شا شو او د چنګيز خان اردو ته ورغی او د جلال الدين د راتګ د پراثر وشو خو چنګيز خان ز ر(۲۵) زره عسکر د ،،کوتو قونويان،، په مشرئ کې پروان ته واستول جلال الدين د پروان په يو فرسنګ کې د چنګيز د لښکر مخه ونيوله جلال الدين د عسکرو په منځ کې وو او امين الملک په ښي خوا او سيف الدين اغراق په چپه خوا کې د لښکر ولاړ وو جلال الدين له دې امله چې چنګيزي لښکر ته د تېښتې په باب د فکر کولو مجال پيدا نشي امر ورکړو چې سواره دې ښکته شي او په جګړه دې لاس پورې کړي خو چنګيزي لښکر سواره جنګېدل جنګ سخت شو او دوه ورځې يې دوام وکړو مغلو مړه او زخميان په ميدان کې پرېښودل او ماتې وکړه د چنګيز اردو ته ورونښتېدل

او د جلال الدین لښکرو ته وېره تعقیب هم کړو. د دې جنګ آوازې په
افغاني ولس کې ډېرې موج واچاوه او مغل وارخطا شول او افغاني
اولس کې بیا د مملکت د دفاع روح راژوندی شو. او په هرځای
کې خلکو د مغلو په لښکرو حملې پیل کړې او چېرته چې د مغلو حاکم
وو هغه وژل یې یو په بل پسې وواژه. چنګېزخان د غه وخت د
بامیانو په جګړو اخته وو او هلته مصروف پاتې وو خو د جلال الدین
په لښکر کې بې اتفاقي را پیدا شوې. د جلال الدین خسر امین الملک
د غنیمت د وېش په سر د سیف الدین اغراق سره وران شو. چې سیف الدین
،۴۰، زره لښکر او د ټول افغانستان جنګیالي هم ترې شا ولاړ وو او آخر
دا دواړه سره ونښتل هغوی د آسونو وېش بهانه کړ او د سیف الدین
په سر یې دیوې متروکې ګذار وکړ خو سیف الدّین د جلال الدّین
د خسر او ماما په څوی د تورې ګذار ونکړو او د سلطان د پوښتنې
په طمعه کېناست خو سلطان جلال الدّین بې کفایته شخص وو نو هڅ
وو خو ور سره بې تدبیره او بې سنجشه هم وو او په دې مسئله کې
څه عاقلانه رول ونه لوبولی شو او سکوت یې اختیار کړو خو د اردو
ټول سپایان د امین الملک په دې وضعه د زړه خفه وو، لومړی
سیف الدّین اغراق د خپلو سپایانو سره د جلال الدین له لښکره بېل شو
او پېښور ته روان شو چې د خپل حکومت منطقه یې وه او د اختیارالدین
د خرپوست نه پس د ده په لاس کې وه. د ننګرهار والي اعظم الملک

هم نه غوښتل چې د امین الملک د لاس لاندې دې وچلیږي نو
دی هم د څلور لښکره سره د مملکت شرقي خواته د سیف الدین سره
روان شو. سلطان دغه وخت کوښښ وکړو چې د دغه نفاق مخنیوی
وشي خو هیڅ هم ونشو او په ځله سلطان هم مجبوریده چې دیو پلو نیسي
او د امین الملک سره په پروان کې اوسیدل ورته خطرناک ښکاره شو
نو غزني ته یې حرکت وکړو. غزني ته چې ورسید نو کوښښ یې وکړو
چې یو نوی فوځ راټول کړي خو دا وسعه یې هم نه وه نو د غزني نه د
گردیز په لاره د مملکت نه بهر وتو مجبور شو په دغه وخت کې چنګیز د
بامیانو په وهلو مصروف وو. جلال الدین د افغانستان نه ووتلو
او سند ته ورغی چنګیزخان هم د جلال الدین د اردو د بدحال او.
نفاق نه چې خبر شو نو جرأت یې نور هم ډیر شو او د بامیانو د ورانۍ
نه پس فوراً غزني ته ور روان شو غزني کې د ومره څوک نه وو چې
د چنګیز د فوځ مقابله یا مدافعه کړې وي چنګیزخان غزنی را لاندې
کړو خو هرڅه یې ځای په ځای پریښودل او په جلال الدین پسې روان
شو د جلال الدین هم نور د تیښتې فرصت په لاس کې نه وو نو په
سند کې د چنګیزي فوځ مقابلې ته راستون شو او د دوه سوه سوره
سره جنګ ته ودرید او د فوځ په منځ کې ورو او د فوځ په ښي
پلو امین الملک و وچې د سلطان جلال الدین اته کلن ورکوټی ځوی
هم ور سره وو خو دغه لږ شانته فوځ چې پرله پسې مات او په

تېښته وه د چنگېز د فاتح او بریالي فوځ ته کله ودرېدلی شو؟! د
امین الملك لښکر ماتې وکړه د جلال الدین ځوی هم ووژل شو او هغه
د ورکوټي ملك په چنگیزي توره دوه نیمه کړې شو- او امین الملك
چې پېښور ته په تېښته روان شوی و، چنگیزي سرو په لاره کې لاندې
کړو او وېې واژه او د خپلې گناه په کفر ورسېد- جلال الدین په
خپله د خپل ورسره لښکره بنه په ایمانداره وجنگېد څو برابري کله وي؟
اخر مات شو او خپل آس ئې سیند ته وغورځاوه پخپله چنگېز خان
هم د سیند غاړې ته راغی او په جلال الدین او ملگرو ئې د غشو
باران جوړ کړی و، وړه چې په سیند کې د وینو سور رود بل هم روان
شو خو جلال الدین ژوندی پورې وتلو او د چنگېز پلو ئې کتل او
په خندا و و خوځېدم او مور ئې د چنگیزي اردو په بند کېوتلې، او
چنگېز هم د حیرت په سترگو ورته کتل او آفرین ئې پرې وایه!!
چنگېز خان امر وکړه چې د جلال الدین نارینه اولاد و نه ټول ووژني
او ښځې ئې مغلستان ته ولېږلې او خپل ځوی اوگتائ ئې مامور کړه
چې بېرته ور وگرځي او غزني د غشي وران کړي چې د آبادۍ نښه
ترې پاتې نشي او خپل بل ځوی چغتائ ئې مامور کړه چې دی سند
او مکران او زابل او خوارشا علاقې د غشي ورانې کړي چې که جلال الدین
بیا را وگرځي چې د ناستي ځای ئې پاتې نه وي- خو د چنگېز خان هم
د چنگېز نه څه کم خونه وو هغوی د پلار امر و نه یو په یوه په ځای

کړه څو چنګیز د افغاني ولس د بیا پاڅون نه چې خبرشو هرچیرته یې د ده حاکمان وژلي دي نو تعجب یې وکړو چې د اخلك څو قول ما وژلي وو د ابیا څنګه راژوندي شو؟

نو حکم یې وکړو چې افغانان هرچیرته چې وو وژنه یې تش په مرګ یې اکتفا مه کوی د ابیا راژوندي کیږي سرونه یې غوڅوه چې بیا د ژوند نه وي !! دی حکم افغانان دغسې محوه کړه چې تر ډیره بیا څوك نه وو چې د چنګیزي لښکر په مخکې ودریدلی وای او د مملکت ټولې ودانۍ داسې ورانې شوې چې بیا د بنده داو سپدانې ځای پکې نه وو پاتې چنګیز بیا څه لښکر دیو افسر توربانې نقشي په مشری د جلال الدین په تعقیب پسې مامور کړو او هغه هم څه ونکړو او چنګیز هم لومړی وار د خپلې کمزوری لکه مقدوني سکندر په شان احساس وکړو او د (۶۸) کلن میړه نور د جنګونو نه ستړی شوی وو او خپل وطن ته روان شو او په ټولو بندیانو یې امر وکړو چې هریو دې په یوه هفته کې څلور سوه منه وریجې د فوځ دپاره پاکې کړي او بیادې اعدام شي هغه دغسې وشوه او په (۱۲۲۱م) کال کې چنګیزخان د جیحون د رود نه د ترمذ په بندر د افغانستان نه پورې شوی وو او بیا په (۱۲۲۲م) کې د جیحون نه پورې وتو او سمرقند ته ورغی - چنګیز لا سمرقند کې وو چې توربانې نقشي هم بې نتیجې وروسېد او جلال الدین یې لاندې نه کړی شو چنګیزخان اوریدلي وو چې په چین کې خلکو پاڅون کړی

دی نو د سیحون غاړو ته ور روان شو. دی لاعلته وروچي خامن یې اوګتایي او چغتایي د افغانستان نه اوجوجي یې د قیچاق د دښتي نه پلارته راورسیدل. چنګیزخان جوجي بېرته قیچاق ته ولیږلو. او دی او نورخامن یې مغلستان ته روان شو او په (۱۲۲۳م) کال کې - خپل وطن اصلي یورت ته ورغی. او د تبت د خوارشا د ځینو - پاڅونونو د دفع په فکر کې شو او لښکر یې پسې ولیږلو خو په دغه باندې مرض نور م وېر شو او د (۷۲) کلن چنګیزخان په (۱۲۲٦م) کال کې مړشو او د دنیا نه یې سترګې پټې کړې چې د دغه د دنیا نیمایي برخه تمدن ده تباه کړې وو!!!

## په افغانستان کې د مغلو داره:

د چنګیزخان د مرګ نه پس د دغه وسیع قلمرو په لاندې ډول او ترتیب وېش شو: خو د دې وېش مقصد د مملکت تجزیه نه وه بلکه د دغه سیمو حکمداران ټول د لوی خان (خاقان کل) تابع وو چې په مرکز کې د چنګیزخان د جانشین په حیث ناست وو. البته وروسته په تدریج سره د مغلو مرکزیت ضعیف شو او بېلو بېلو برخو خان مستقل ګڼل پیل کړه او هر یو د مستقل دولت په شکل واوښتل او ځینې پکې په وړو وړو برخو م وېش شو. په دې ډول:

الف :- شمالي چين او توگين مزيان، د چنگيزخان د وړو ورځه شوې وه چې مرکز يې پيکېنګ و واو وروسته په خان باليغ نوم واوښت چې اوس ترې پيچنګ جوړ شوی دی.

ب :- د کاشغرستان د بريده (سرحد) نه بيولې تر وراڼۍ د بلغاڼ د ښاره پورې د اوسنۍ مرکزي روسيه قازان ته چې د سيحون پورته درېم پکې راتلله او د قيچاق د ښته او خوارزم د ارال د امان او غربي سايبيريا پکې وه او مرکزيئ د سرای ښار وو د اجوجي خان د چنګېز خان د حٔوی برخه وه.

ج :کاشغرستان او فرغانه او ماوراالنهر چې مرکز يې د فناس ښار چې د الماليغ په ګاونډ کې وو، د چنګېزخان د بل حٔوی چغتائي خان برخه وه.

د :يورت اصلي (او د کرولن د درې ويالې نون او خون او دامان او د قراقرم غرونه)، چې مرکز يې د قراقرم ښار وو د تولي خان د چنګېزخان د کشر حٔوی برخه رسېدلې وه.

هـ : او تراجي جبال تاربا ګاتائۍ او درا اوکول سيندغاړې او د بورا پميل د مغلستان په غرب کې. اوګتائۍ خان د چنګېزخان د مشر حٔوی او وليعهد په برخه رسېدلې وه. په دې وېش کې ايران او افغانستان شمار نه وو بلکه افغانستان په مستيقه د خاقان کُل له خوا ديو تن ملکي آفسر او يو تن نظامي آفسر له خوا اداره کېده او والي ياحاکم به د خراسان دوالي په نوم ياديده دی به کله په بادغيس

اوکله به په بخارا اوکله به په طوس یا نسا کې و، اوم ده په
شمالي ایران او افغانستان م اداره کوله -خو جنوبي ایران خلکو
مالیات مستقیماً د مغلو مرکزي دولت ته ورکول. - دې دول اداري
دوام وکړ، چې منگوخان خاقان کل شو او هغه خپل ورور -
هلاکوخان مامور او موظف کړ، چې په ایران کې اسمعیلیان ووهي
او بغداد م ونیسي. هلاکوخان په (۱۲۵۴م) کال کې په شمالي ایران
کې مرکز ونیوه او عراق یې م فتح کړ، او افغانستان یې م د
خپلې اداري لاندې راوست او افغانستان یو دول د دغه امیر دحکم
لاندې و، چې په امیرخانسلن مشهور و، او په طوس کې استوګن و، او
او خپل وزیران او دفتر او دیوان درلود. - د چنگیز د زماني نه د
امیر تیمور د وخت پورې افغانستان او ایران م پاس دول اداره
کېدل -خو افغانستان د ایران د ایلخاني دولت او د چغتایي دولت
ماوراالنهر په منځ کې د کشمکش سبب و، ځکه چې چغتایانو په بلخ
او تخارحتی په بامیانو او غزني م د استحقاق دعوه درلوده او کله
ناکله به جنګ او جګړې م پکې پیښېدلې چې دی جنګونو خپلو خلکو
منشوی زغملی او ددې سره ورته په شمال مغرب نه د کرت د دولت
فشارم متوجه و. - خو چغتائی بادشاه براق خان د ماوراالنهر نه
په (۱۲۲۹م)، کې د جیحون نه راپورې وتو او افغانستان ته راغی
او د بلخ ولایت او د بدخشانه پورې علاقې او د مرو ولایت

او نیشاپور یې هم ړالاندې کړه او د ایران په ایلخاني باد شاه ـ اباقان پسې هم لښکر ولیږلو او د هرات په پنځه میلي کې یې ورسره جنګ وکړ او براق مغلوب شو او بېرته ماوراالنهر ته لاړل خو ملک شمس الدین کرت د هرات حکمران د د واړو د ښمنو ډلو په منځ کې کامل بې طرفه وو خو په کال ( ۱۲۷۷م) کې شمس الدین کرت د اباقان له خوا په زهرو ووژل شو او په ( ۱۲۹۵م) کال د ماوراالنهر نه د (( اوجای خان )) چې د براق چغتائي ځوی وو او قصه یې مخکې ذکر شوې وه د زورور لښکر سره افغانستان ته راغی او ډېرې ورانۍ یې وکړې خو امیر نوروز وکړی شو چې د هرات سره نژدې یرغلګر مغلو ته ماته ورکړې او د جیحون نه یې تېر کړه خو په دې کار امیر نوروز د غازان خان د ایلخاني مشهور باد شاه د عتاب لاندې راغی او ویې تړاته په (۱۲۹٦م) کال کې مغلو د (۷۰) زره ولښکرو په قوت په افغانستان حمله وکړه او هرات یې محاصره کړه چې بیا نوروزخان د فخرالدین کرت د قتلغ خان له خوا قوماندان وو ماتې ورکړه او غازان خان ووژل شو.

محمدارنګه په (۱۳۱٦م) کې شهزاده (یسور) چغتائي د بادغیس او سپید وږنکی د ایلخاني دولت په ضد پاڅون وکړ او د طوس ولایت یې ړالاندې کړ او د هرات او سیستان د نیولو په فکر کې وو خو امیر غیاث الدین کرت وکړی شو چې د شا د پلوه یې دې وواهه

او خلک یې د ده د شر نه بچ کړه.

په کال (۱۳۲٦م)، کې ترما شرین خان چغتائی باد شاه بله پېره هم په افغانستان لښکر وکړ او تر غزني ورغی خو سلطان ابوسعید بهادرخان ایلخاني د محلي خلکو په مرسته د ترما شرین خان فوځونو ته ماتې ورکړه خو د غزني ښاري ودانۍ هم ورانې کړې او حتی د سلطان محمود قبر یې هم ونړاوه.

محمد تغلق په (۱۳۴۱م)، کې د هند د ډېلي د پاره حمله وکړه او په کال (۱۳۴۴م)، کې بیا او په (۱۳۴۵م) کې بیا او په (۱۳۴۸م)، کې بیا د هند د ډېلي په نیت حمله وکړه خو د مغلو دا ټولې حملې د افغاني ولس په تاوان او ضرر تمامې شوې. د مغلو د استیلا نه تر تیمور ګورګان د ظهوره پورې افغانستان او د تیمور د تسلط په وخت کې یو نیمه پېړه مسلسل افغانستان په یوه تیاره دوره کې ورځې اقتصادي بې تباه او برباد شوي وو او مادي او معنوي زیانونه یې د مغلو د لاسه لیدلي وو او په دې وجه تنګسه کې یې د خلکو شرونه تېرېده او په دې موده کې په افغانستان کې نه یو مشهور عالم او نه شاعر پیدا شوی دی.

په دې منځ کې د کرتانو دوره راغلې ده چې د مملکت په ودانه کې یې څه لاس کړی دی او د افغانستان د ودانه سره علاقمندوو خو وروسته بیا زر د تیمور ګورګاني دوره راغله چې هغه هم مغلو ولو

مغلي خاصيت يې درلود په ځاى د ودانه ورانه کولې ، او وران كاري كار وو.

# افغانستان په څوارلسمه او پنځلسمه

## ميلادي پېړيو کې

### ‹الف›

## نوي ايرغل

### امير تيمور گورگان :

د امير تيمور گورگان د راڅرگنديدو په وخت کې د ماورالنهر ـ اوضاع د سياسي او اداري له پلوه ډېره گډه وډه وه او يوزورگر او قوي لاس ته اړه وه چې بيا ديو دولت تنظيم وکړي ځکه چې د پخوانۍ چغتائي حکومت مرکزيت ضعيف شوى وو او په هرځاى کې د مغلو هرخان او د قبيلو مشران هرچېرته پخپل ځان ځاى کې ديو مستقل امارت او حکومت په حال کې وو او پخپلو خلکو يې هر رنگه زور ـ زياتى او په مالياتو کې ډېر والى کولو.

د چغتائی لوی دولت هم دوه ټوټې شوی وو یوه برخه یې په ماورالنهر کې دخانانو او مشرانو د مبارزې میدان وو او بله برخه یې په کاشغرستان کې د تغلق تیمورخان د قیادت لاندې دخپل پخوانۍ قوت او استحکام د ساتلو د پاره هڅه کوله؛ په ماورالنهر کې یوسړی چې اشرافي نه ګڼل کېده میدان ته راغلی وو چې باد شاهان به یې لوبول یو به یې د تاج او تخت نه محروم کړو او بل به یې باد شاه او د تاج او تخت خاوند کړو. نو خود به ورته خلکو تاج بخش وایه داامیر قذغن وو، ده د چغتائی خزنان سلطان د مرګ نه پس په سمرقند کې ځای نیولی وو غوښتل یې چې د هر فعال او کاریګر عنصر نه د خپل اقتدار په ساتنه کې کار واخلی او پذیرائی وکړی او د خان ملګري پیدا کړي چې د هر داخلي او خارجي مخالف په مقابل کې له هغو نه کار واخلي او څوک د ده د وژلو اقدام ونکړي. تیمور هم په دغه وخت د غه رنګه یو وتلی ځوان وو او نوی راپورته شوی او د اقتدار غوښتونکی وو. د امیر قذغن دربار ته ورغی او امیر قذغن هم دی په ورین تندي ومانه او تیمور ته یې «منګباشي» رتبه چې افسر هزاري به بلل کېده ور کړه او د خپلې کورنۍ نه یې یوه پیغله «الجای خاتون» هم ور واده کړه نو تیمور هم د ماورالنهر په سیاست کې نوی راڅرګند شو، د امیر قذغن خپل پخوانی افسران په دې چې په (۱۳۵۰م) کې ده په شمالي افغانستان حمله کړې وه او بیا یې د

کرت د هرات دولت سره صلحه وکړه او افسرانو دا صلحه نه غوښتله بلکه غوښتل چې هرات تالا کړي او کرتان په تنظاي زور تابع کړي. نو امراو او افسرانو غوښتل چې امیر قذغن ووژني او په مملکت کې ملوک الطوایفي راولي نو امیر قذغن د دغه سازش په اثر په (۱۳۵۸ م) کې ووژل شو او د مغلو ځلوره قبیلو ارلات، برلاس، جلایر او فاوچي د امیر قذغن د کورنۍ په خلاف شوا او د هغو نه حاجي برلاس او امیر بیان سلدوز او امیر عبدالله د امیر قذغن په ځای ناست ځوی هم ووژه تیمور چې چیل محس دلاس نه ورکړ او د قذغن کورنۍ له منځه لاړه نو دې چیل تره حاجي برلاس ته ورغی او ټول مستقله لاره یې ونیوله تیمور دغه وخت (۲۵) کلن او بنه نوی ځوان وو او د کار شوق یې درلود.

## تیمور څوک وو؟

تیمور[1] د «ترغای» ځوی و وچې ترغائي د برلاس ترک قبیلې د فوځي اشرافو نه یو تن وو او د کش یاد «شهر نو» او سپید ونکي وو دا ترکي قبیله چې څه وخت دې علاقې ماوراالنهر ته راغلله نو هلته د شهر سبز خوا و شاړې ځای ونیوه او هم دلته و دانه شوه. او بیا

---

(۱) تیمور په (۱۳۳۶ م) کې تولد او په (۱۴۰۴ م شعبان ۸۰۷ هـ) کې وفات شوی دی.

هم دولت له منځه لاړله د برلاس قبیله په اقتصادي لحاظ خواره وه او د تیمور پلار هم یو گوشه نشین سړی وو د تیمور مور «تکینه خاتون» وه او تیمور په (۱۳۳۶م) کال کې زیږېدلی وو د قزغن د مرگ نه پس د تیمور پلار هم مړشو او دې یوازې پاتې شو د تیمور د ځوانۍ او وړوکوالي څه حال معلوم نه دی خو دا سې معلومېږي چې تیمور په یو متمدن محیط کې پالل شوی اولوی شوی دی ځکه چې فارسي د مغه وخت یو علمي ژبه وه او د تیمور بنه زده وه، تیمور یو راسخ العقیده متعصب مسلمان وو او د مولانا شیخ شمس الدین کلال شهرستاني مرید وو او د مذهبي روحانیونو او علماؤ او پوهانو دانشورانو به یې ډېر عزت او احترام کولو خو دا اعتقاد د ده د شخصي اعمالو مانع نه کېدلی شو، بنه لمونځ به یې کولو، صدقې به یې ورکولې خو شراب به یې څښل او وینې به یې تویولې، تیمور یو باهمته او ماجراجو سړی وو او په عین حال کې ډېر سرسخت او ثابت قدم هم وو او ورسره عجول او سرکش هم وو. تیمور چې په منځنۍ اېشیا کې خپل شهنشاهیت جوړ کړو نو خپلو درباریانو ته به یې ویل چې: د نیا د ومره لویه نه ده چې دا دوه پادشاهان ورځنې او د دې دوو د پاره پکې د او سېدا ګنجایش وي- یو با د شاه د دې ربع مسکون د پاره بس دی مغه په خپله راني ولاړ وو او پخپل نفس یې باور درلود او په دې کې دا افراط د حده پورې تېنګ وو. او د خپلوا مراو مشورو او فتوو

ته يې څه اعتنا نه کوله - تيمور د فزيکي نظره يو ښه قوي سړی او ښه ماهر سوارکار او قابل تيرانداز و او د ښکار او شطرنج سره يې ډېره علاقه وه - انرژي او قوت يې چې لاره د نورو د تاثير او اغېزې نه يې دی ساته او د لويانو په شان يې خون سردي نه وه خو ښه ده چې خپل ټول عمر په حرکت او فعاليت تېر کړ وا او ډېر زحمتونه او سختۍ ليدلي وې.

ويلی شي چې دی د قندهار نه د آس په سپرلۍ په (۱۴) ورځو کې سمرقند ته تللی و او د قبچاق د دښتې په سفر کې (۱۸۰۰) ميله-واټن (مسافه) په څلور نيم مياشتو کې وهلې وه - او کله يې چې غوښتل آسيا صغير فتح کړي نو دی (۷۰) کلن و او چې د سمرقند نه تر انقره پورې تقريباً (۲۰۰۰) ميله واټن يې د اس په سورلۍ وهلی و - سره د دې تيمور خپلې عواطف لرل لکه د ښځو سره مينه او د اولادونو سره محبت او اورت او هنر يې هم خوښ و او ده په خپل عمر کې (۱۸) نکاح کړې وې او د (۸) ښځو سره يې واده نه کړی و - او د خپل نمسي (محمد سلطان ميرزا) په مرگ يې د ورو په شان ژړل - تيمور مسلمان و او د چنگيز په شان غير دين نه و خو په حيله او فريب او قتل او غارت کې د چنگيز نه د ډېره قدمه لا وړاندې و - تيمور به چنگيز د دنيا ستر قهرمان باله څکه به ترکي تيمور خان چنگيز خان مغل ته منسوباوه (مغل چې د تاريخ په اوږدو کې د اريائي قبيلو سره گډ وه شو او

ور سره مخلوط او ممزوج شونو د ترک په نوم ونومول شو.

تیمور د امیر قزغن د مرګ نه پس د حاجي برلاس سره پاتې شو په (۱۳۶۰م)، تغلق تیمور د شرق چغتائی باد شاه چې ماورالنهر ته لښکر راولیږلو او خانان او ملوك الطوایف یې د خان تابع کړه حاجي برلاس د شهر سبز واکدار افغانستان ته وتښتېده او همدغسې د خجند امیر بایزید جلایر هم وتښتېد خو امیر بیان سلدوز او تیمور د تغلق تیمور دربار ته ورغلل او تغلق تیمور - تیمور ګورګان خوښ کړو او د شهر سبز حکومت یې ورکړو او د تومان باشي ( دلس - زرو تنو افسري ) رتبه یې ورکړه . امیر تیمور د هغه وخت نه په تدریج تر سمرقنده خپل نفوذ وکړو - تغلق تیمور د ماورالنهر د انتظام نه وروسته شمال ته وګرځېده او په عوض کې تښتېدلي امرا حاجي برلاس او بایزید جلایر بېرته ماورالنهر ته راغلل خو د امیر حاجي برلاس نوره د تیمور سره جوړه نه وه په دې - وخت کې امیر حسین د امیر مسلا بن امیر قزغن ځوی د افغانستان نه دخو افغاني سرو سره ماورالنهر ته راغی چې د خپل کاکا امیر عبدالله بن قزغن انتقام او بدل د امیر بیان سلدوز نه واخلي په دغه وخت کې امیر حسین او امیر خضر د شادمان په حصار کې وو او پخپلو مخالفو به یې حملې کولې ، دې الوګولو بیا امیر تغلق تیمور مجبور کړو چې ماورالنهر ته بیا لښکر وکړي په

د ۱۳۶۱م، کې امیر تغلق تیمور بیا ماورالنهر ونیولو او خپل ځوی یې «الیاس» د ماورالنهر په حکومت مقرر کړو او امیر تیمور گورگان یې ورسره هم پرېښود او پخپله دې۲ افغانستان کې د قندوز او بغلان د تالان نه وروسته خپل ځای ته لاړ - خو لږ وروسته د «الیاس» او تیمور مناسبات ښه پاتې نشو تغلق تیمور چې خبر شو په قهر شو او تیمور گورگان چې د هغه له قهره وېرېده مړ بیا امیر حسین ته ورغی او ورسره یو ځای شو او په خوارزم ورغلل او د خیوه د خان سره په جگړه اخته شو د خیوه خان د ماورالنهر د تغلق د حکومت ملگری وو او اگرچې د خیوه خان په دغه جنگ کې ووژل شو خو امیر تیمور او امیر حسین هم په خوارزم کې د ټینگې نه وو او بېرته سمرقند او شهر سبز ته راغلل او د هغه ځای نه د خپل ځان د ټینگتیا د پاره چې څه لښکر پیدا کړي د واړه افغانستان ته راغلل په دغه وخت کې او مجائی بوغا سلدوز د بلخ په ولایت کې او محمد خواجه ایروي د جوزجان په ولایت کې او محلي شاهان په بدخشان کې هر یو مستقل حاکمان او واکدار وو، حسین او تیمور په بلخ او تخارستان او بدخشان کې د لښکرو په ټولولو بوخت وو چې په دغه وخت کې تغلق تیمور چغتائی پادشاه مړ شو - او الیاس خواجه خپل یو ټینگ ملاتړ د لاسه ورکړ - حسین او تیمور چې دا حال ولیده نو

ماورالنهر ته بېرته راوګرځېدل او الیاس خواجه یې په شهرسبز کې مات کړ او وتښتېد او سمرقند ته لاړ او «کابلشاه اوغلان» د الیاس خواجه په ځای په ماورالنهر کې بادشاه اعلان کړی شو خو الیاس خواجه په (۱۳۶۳م)، کې بیا حمله وکړه او حسین او تیمور ته یې د سیحون په غاړه ماتې ورکړه او دواړه بیا افغانستان ته لاړل، تیمور قندهار ته او له هغه ځایه سیستان ته لاړ چې د هغه ځای په محلي جنګونو کې چې دی د هغه ځای د محلي حکومت ملګری وو په یو غشي ولګېدلی او زخمی او ګوډ شو چې له هغه نه وروسته په ګوډ تیمور هم مشهور شو- د سیستان محلي حاکم وروسته په تیمور بدګمانه شو او د هغه د وژلو په لټه کې شو خو تیمور وپوهید او ځان یې بچ کړ او بیا ماورالنهر ته ورغی او امیرحسین هم ورکړی شو چې د بدخشان او بلخ په کومک یې بیا سمرقند را لاندې کړ او یو تن یې د محلي بادشاهي کورنۍ نه بادشاه کړ او پخپله د هغه نائب السلطنه جوړ شو، امیرحسین تیمور ته تل د شک په سترګه کتل او خارنه به یې کوله او په تېره هغه وخت چې په (۱۳۶۲م)، کې د امیرحسین خور د تیمور ښځه چې مړه شوه دا بد بیني نوره هم ډېره شوه- او ښکاره هم شوه، تیمور د حسین د شکونو نه په تنګ شوی وو، د شهرسبز ځمکې ورکړې شوې او دی ګرګداشتی نه او د سمرقند نه شهرسبز ته لاړ او وروسته یې

د شي حصار په یو فوځي حمله او حیله رالاندې کړو او قدرت یې نور هم ډیر شو او د بدخشان په علاقه کې د افغانستان د ننه نفوذ وکړو او وروسته پس هرات ته هم د دوستۍ په جامه کې ور ننوتی شو او خپل ځوی جهانګیر یې د هرات کرت دربار ته ور ولیږلو او سلطان معزالدین کرت ورته د امداد او کومک وعده ورکړه د دغې نه پس تیمور په قرشي کې د امیرحسین د لښکر سره مخامخ شو او د څه جنګ نه پس یې صلحه سره وکړه - امیرحسین د قرشي نه بدخشان ته لاړ او د دغه ځای نه یې د تیمور په ملګرتیا په کابل لښکر وکړو او کابل یې محاصره کړو او دواړه تری بلخ ته راوګرځېدل او لږ څه وروسته بېرته ماوراالنهر ته وګرځېدل او د مغلو قوتونه یې هلته مات کړه امیرحسین په «سالی سرای» د سمرقند سره نږدې پاتې او مقیم شو او تیمور بیا شهرسبز ته راغی لږ وروسته د دواړو په منځ کې بیا نزاع راغله او امیرحسین بلخ ته ورغی او د بلخ قلعه هندوان یې بیا ترمیم کړه او د خپل حکومت مرکز یې هلته منتقل کړو، خو تیمور پرې ننښتو او لښکر یې پسې وکړو او شیخ محمد امیر د بدخشان امیر او اولجائی بوغا د قندوز امیر او کیخسرو د ختلان حاکم هم د تیمور مرسته وکړه او تیمور امیر حسین په جنګ کې مات او رالاندې کړو او خلاف د وعدې چې ورسره کړې یې وه امیرحسین یې وواژه او ښځه یې ولخپسته او

په «۱۳۶۹» م، کې یې خپل مستقل امارت په بلخ کې اعلان کړ او د امیر تیمور گورگان په نوم مشهور شو او اولادونه یې د میرزا په نوم ونومول شو خکه چې د ده دلاس کېنولی «دانشمندچې» چغتائي په ماوراءالنهر کې لا د بادشاه په نوم وو- خو دغه بادشاه په سمرقند کې کار ووه خورلو و ونور بس، خو وروسته تیمور دی تش د نامې د بادشاهۍ نه هم معزول کړ او په «۱۳۸۲» م، کې هغه په- بخارا کې مړ شو او د هغه خوی محمود تیمور بیا په سمرقند کې د پلار په ځای وټاکه.

## د امیر تیمور گورگان سلطنت او فتوحات :

امیر تیمور چې په افغانستان کې د خپل امارت اعلان کاوه دغه- وخت په افغانستان کې د ننه اداري او سیاسي څه پخوا ادا نه وه او نه په خوارشا کې کوم قوي حکومت وو او نو د یو قوي حکومت ته یې اړتیا هم لرله- او زمینه مساعده وه، په افغانستان کې هر چیرته محلي- حاکمان او خانان د یو بل نه بیل ځانله ځانله حاکمان او واکداران وو او په ایران کې هم د ابوسعید بهادرخان له مرگه پس همدغه حال وو او- مملکت د تجزیه په حال کې وو او یو مقتدر او مرکزي حکومت موجود نه وو، په کاشغرستان کې همدغه حال وو د تغلق تیمور د مرگ نه

پس مرکزي وحدت ملته م نه وو- نو د تیمور د پاوشهلوی مانع په مخکې نه وو.

## د خوارزم فتحه:

تیمور د ماوراالنهر د نیولو نه وروسته په کال (۱۳۷۲م) او کال (۱۳۷۵م)، او کال (۱۳۷۹م)، او کال (۱۳۸۲م) کې په خوارزم څلور واری حملې او جنگونه وکړه په دې منځ کې حسین صوفي د خوارزم زمامدار مړ شو او یوسف صوفي د هغه په ځای کېناست چې ماتې وخوړه او تیمور د خوارزم ښار ونیولو او د غسې وران کړو چې د ډېر کاله ملته یو ساکښ هم نه وو چې د مغلیطلا اردو مرسته وکړي-

## د قبچاق فتحه:

تیمور د قبچاق د مغلي قدرت نه په وېره کې وو نو په کال (۱۳۷۲م) کې توقتش خان چې د قبچاق د حکومت نه تښتېدلی او دلته راغلی وو د قبچاق په حکومت ور وگماره- او د قبچاق د مشرقي د مرگ نه - وروسته تیمور ملک د هغه ځای نوی بادشاه یې مات کړو او تاج تخت توقتش خان و نیولو خو تیمور له دې جنگونو نه خه گټه ونکړه

توقتمش خان پخپله په دې فکر کې وو چې مغلي قدرت بيا راژوندی کړي توقتمش خان په کال (۱۳۸۲م) کې په روسيه حمله وکړه او د مسکو ښار يې ونيولو او ويې سېزه ، تيمور د توقتمش خان له خوا په قرار او ارام نه وو ، توقتمش خان دوه واري په کال (۱۳۸۴م) او کال (۱۳۸۶م) کې په ماوراءالنهر او ايران حملې وکړې او تالاونه يې وکړل او بېرته وګرځېد خو تيمور په کال (۱۳۹۰م)، او کال (۱۳۹۴م) او کال (۱۳۹۶م) کې په توقتمش حملې وکړې او مغلوب يې کړ او په جنوبي روسيه کې م د يرې برمکي رالاندې کړې خو مسکو ته ونه رسيد او د قبچاق مرکزي ښار «سرای» چې اقتصادي او سياسي اهميت يې درلود او د ولګا درياب په غاړه پروت وو وران کړ او خلک يې ووژل .

## د کاشغر فتحه :

په کال (۱۳۷۰م) کې تيمور چنل حوی جهانګير د کاشغرستان د فتح د پاره مقرر کړ او ښه ډېر لښکر يې ورسره کړ جهانګير وکړی شو چې قمرالدين زعامدار د کاشغر يې رالاندې کړ او کاشغر تالا والا کړ او لوټ يې وکړه او جهانګير مزې را وګرځېده خو قمرالدين بيا د قبچاق د پادشاه توقتمش خان سره ساز باز وکړ او دواړو

په ماوراالنهر حمله وکړه خو نتيجه غيرله چورچپاو نه بل څه نه وو تيمور هم په مغلستان کله ناکله حملې او جنګونه کول لکه مهم يې د کال (۱۳۸۹ او کال ۱۳۹۸م) حملې وې

## د ايـران فتحـه :

امير تيمور په ايران پسې لومړی وار په کال (۱۳۸۳م) کې لښکرکشي وکړه او استرآباد يې د امير ولي د امير تغا د خلف نه ونيولو او په کال (۱۳۸۵م) کې اذربايجان او عراق او فارس ونيول او په کال - (۱۳۹۱م) او کال (۱۳۹۴م) کې مازندران او عراقين او د بکر ديار ونيول او تيکريت د قلعه د خلکو نه يې کله منارجوړ کړو - تيمور په ګرجستان حمله وکړه او د تفلس ښار يې ونيولو او باکرات د ګرجستان باد شاه يې ونيو او مسلمان يې کړو او وروسته يې اصفهان د ايران هم ونيولو او د پخوص زره خلکو د سرونونه يې کله منارجوړ کړو.

تيمور په کال (۱۳۹۵م) کې د ټول ايران واکدار خپل ځوی ميران شاه مقرر کړو او تيموري لښکري د شرق قريب د فتحې د پاره تياری کړې شوې.

# د عراق او شام او آسیا صغیر فتحه :

تیمور په کال (۱۳۹۳م) کې د یاربکر یو وار ونیولی وو او بیايي په کال (۱۴۰۰م) کې د ایران له لارې د یولک لښکره سره شرق قریب ته ور وخوځېد او دمشق يې ړالاندې کړو او مصري لښکر ته يې ماتې ورکړه او د مشق يې تالا کړو او ويې سېزلو، تیمور د شاماتو د فتحې نه وروسته عراق ته راغی او د بغداد ښار يې د عراق بادشاه سلطان احمد جلاير د عالونه ونیولو دا بادشاه عثماني دولت ته پناه گزین ورغلی وو. ښار يې تیمور ونیولو او تالا والا او وران يې او قتل عام يې پکو کړو چې (۹۰) زره تنه يې ووژل شوا و (۱۲۱) کله مناری ترې جوړ کړې شوې او بغداد د هلاکو د یرغل نه پس دا دوېم وار وو چې تالا والا او وران شو حال داچې مصري د ولت او عثماني دولت د واړه بنه قوي وو خو تیمور ورته ماتې ورکړې او آخر عثماني هغه دولت چې په درېیو براعظمونو آسیا، آفریقا او اروپا کې نفوذ درلود تیمور رمات کړو او قسطنطنیه م ونیوله او د فرانس باد شاه ورته د مبارکۍ پیغامونه راولېږل او د مصر باد شاه ملک ناصرم ورته متبع شو او تیمور فاتح سمرقند ته راوگرځېد.

# د هندوستان فتحه

تیمور په کال (۱۳۹۷م) کې خپل نمسی پیرمحمد میرزا د غزني نه-
لیږلی وو چې د سند پورې ملتان ونیسی هغه لاړ او د ملتان
ونیولو په وخت کې د سارنګ خان افغان - سره چې د ملتان حاکم
او مدافع وو مخامخ شو- دا جنګ جګړې روانې وې ترڅو چې تیمور
پخپله په کال (۱۳۹۸م) کې د افغانستان په لاره ورغی او د سند نه
ور پورې وتو او په لار کې یې ډېر قتلونه او یرغلونه او تالانونه
وکړه تیمور په اوله مرحله کې د هند سرحدي محافظې ولې د غره
په لمن کې له منځه وړې او بیا یې د «تلنبی» ښار چې د جهلم او
چناب د یو ځای کېدو سره واقع وو تالا ترغه کړو او غلې یې پکې
وسېزلې تیمور په شهوازکې چې د یو ځای نوم دی پیرمحمد خپل نمسی
د افغانانو د ګیرې نه راخلاص کړو- څو د «بتهیر» په حصار کې
د غلجي افغان بهادرخان د سخت مقاومت سره مخامخ شو خو د هغه
سره یې چل ول او صلحه وکړه او د ملاقات په وخت کې یې وواژه
او په هغه ځای کې عام قتلونه او تالانونه وکړه خو د بهادرخان -
خامنو لومړی خپل واړه او ښځې ووژل او بیا یې په تیمور او لښکر
یې سخته حمله وکړه ترڅو چې ووژل شو او په تیموري لښکر کې یې

يې لاس پورې کړه او د ډهلي شته يې راغونډ کړه - او صنعت کاران يې هم راټول کړه او پخپلو خاصو يې وېش کړه چې د ځينو هندیانو سره يې خپلو خپلو علاقوته واستول او په تېره سنګ تراشان يې سمرقند ته ولېږل چې د هغه ځای جامع مسجد جوړ کړي - تيمور (۱۵) ورځې په ډهلي کې استراحت وکړه او بيا د افغانستان پلو روان شو او د کابل او ځلم په لاره د جيحون نه پورې وتو او - سمرقند ته ورغی.

## د امير تيمور يرغل او د افغانی ولس مبارزه

تيمور د ماوراالنهر د نيولو نه پس د افغانستان سره ډېره د لچسپي لرله دی څو وارې د جيحون نه پورې وتی وو او افغانستان ته ورغلی وو او بلخ او بدخشان او قندهار او سيستان ته يې سفرونه کړي وو او کله چې تيمور د خپل امارت اعلان وکړو نو په بلخ کې و ولوړی يې هم د بلخ د هندوان قلعه ورانه کړه او بلخ يې د خاورو سره برابر کړو او بيا نو ماوراالنهر ته تړې روان شو او په (۱۳۸۰م) کال کې د جيحون نه ور تېر شو. په دغه وخت کې ملک محمد بن ملک فخرالدين کرت د سرخس حاکم د تيمور د استقبال د پاره ورغی تيمور دی د خان سره معطل کړه

او وېې ساته او د هرات د نیولو نه پس یې د غور حاکم مقرر کړو دا مغه سړی وو چې د تیمور په مقابل کې پاڅون وکړو او ډېر تیموري لښکریې ووژل.

د (۱۳۸۱م) کال په اوایلو کې تیمور د پوشنګ د نیولو د پاره (چې د هرات د ولایت یو ځای دی. د مغه ځای خلکو یوه هفته سخت مقاومت وکړو. او د جنګ په دوران کې تیمور په پوښتي و لګېد او زخمي شو یوه هفته پس پوشنګ ونیول شو او خلکو ته سختې سزاوې ورکړی شوې او د پوشنګ حصار وران کړی شو او تیمور هرات ته ورغی ملک غیاث الدین پیرعلي کرت باد شاه سره د دې چې ځوی یې د تیمور د کور زوم او زوم هم وو خو د هرات د مدافعې د پاره پاڅېد او قلعه بندي وکړه. څلور ورځې جنګ او بند شو بیا د صلح د خبرو شروع وشوه په نتیجه کې غیاث الدین باج ومانه او د تیمور دربار ته ورغی او فی الحال خو پخپل حکومت باقي پاتې شو. خو تیمور حکم وکړو چې د هرات د حصار دننه او د بنار د باندې دېوالونه ټول وران کړي او د بنار د اوسپنو دروازې چې د کرت باد- شاهانو نومونه پرې ښکل شوي وو لرې کړی او شهر سبز ته یې ولېږلې. تیمور د هرات نه نیشاپور ته ورغی او امیر علي موید د مغه ځای زمامدار او واکدار چې د تیمور د (۵۰) پنځوس زره لښکر سره یې جنګ نه شو کولی تسلیم شو. تیمور د نیشاپور نه-

اسفراین ته ورغی او د معه ځای د قلعه برجونه او دیوالونه یې
وران کړه او د کلات په تینګه قلعه ورغی او دغه جنګ او-
مقاومت نه پس قلعه یې علي بیګ د کلات د حاکم نه ونیوله او-
ترشیزته تري لاړ د ترشیز حاکم امیرعلي سدید غوري قلعه تیمور
ته په صلحه ورکړه او تیمور د ایران مازندران ته لاړ او لس
وروسته د ایران د شمال نه وګرځېد او چې ماوراالنهر ته تللو
په لاره کې د هرات د کرت کورنۍ حکمرانان بندیان سمرقند ته ولېږل
او د هرات ښاریې هم تیموري نظامیانو او سپاهیانو ته وسپارلو
او د امیر تیمور ځوی میرانشاه په مرغاب کې مرکز نیولی وو- ملك محمد
کرت د غور حاکم د تیمور په دې وخت د پرمتاش شو او د غوریانو
د خلکو سره کومکي شو او د تیموري تسلط په مقابل کې یې پاڅون
وکړو او هرات ته یې لښکر وکړو او هرات یې په زور ونیولو او
د تیمور لښکر یې مات کړو او څوک چې په لاس ورغلل ویې وژل
میرانشاه د مرغاب نه بېرته لښکر هرات ته واستولو ښار ته دیوال
درلوده او نه یې دروازې وې په اسانه هرات تیموري لښکر-
لاندې کړو او څوک یې چې لاندې کړو نو ویې وژل او د تیمور
سنت یې په ځای کړو او د خلکو د سرونو نه یې کله منارونه
جوړ کړه - په کال (۱۳۸۲ م) کې چې کله د هرات د نیولو او د غوریانو
د حاکم د بغاوت او پاڅون واورېدل نو امیر غیاث الدین کرت

او ورور يې محمد او د هغه ورکوټی ځوی يې د غوري اميرې چې ورسره بندي وه ووژل او پخپله بيا هرات ته راغی او ښار يې ښه پسې وران کړ او په خلکو يې د مالياتو ډېر درانه بارونه کېښودل چې چا به نشو ورکولی نو هغه به سخت شکنجه کېدل ترڅو چې مړه به شو د هرات علاقه د مړو نه ډکه وه خلکو بيا د شيخ داؤد په مشرۍ پاڅون وکړ خو تيمور لښکر په زور هغه مات کړ او عام قتلونه وشو او تيمور د اسفزار ته ورغی او هغه ښار يې هم وران کړ او خلک يې ووژل او برجونه به يې جوړول او ژوندي بنيادمان به يې پکې ايښودل او په دې ډول يې دوه زره سري په برجونو کې ولګول او مړه يې کړه - تيمور د - هرات نه فراه ته ورغی او د هغه ځای محلي امير ملك جلال الدين تسليم شو او د مرګ نه بچ شو- تيمور د فراه نه وروسته د- د زاوه حصار ته ورغی ، د هغه ځای خلکو مقاومت وکړ او په سخت جنګ او زور زيالاندې شو او مرګ ژوبله پکې وشوه امير تيمور له هغه ځايه د سيستان مرکز جلال آباد ته ورغی د ښار اشرافو او مشرانو اطاعت ومانه او لکه شاه شاهان سيستاني او تاج قلعه کهي او سراج تيمور ته تسليم شو خو د ولس خلکو مقاومت وکړ او دفاع کوله او محلي حاکم قطب الدين هم د خلکو سره وو او خلکو جنګونه کول خو اخر قطب الدين هم د تيمور لښکر ته ورغی

او تسلیم شو تیمور لښکر راټول کړی وو او کنټلو یې چې ملخاپه د ښار د دروازه بیرته شوه او خلك د تیمور په لښکر پسې را ووت او د غشو باران یې پرې جوړ کړ وچې د تیمور په لښکر کې یې ډېره مرګ ژوبله وکړه او دا پېره بیا تیمور د لرګي په غشي ولګېد او زخمي شو خو خلك مات شو او ښار د تیمور لښکر رالاندې کړه او وران یې کړ او امیر قطب الدین سمرقند ته بندي ولیږل او شاه شاهان سیستان یې د فراه حصار ته واستول او د دغه ورانی ځای حکومت یې وروته حواله کړو.

امیر تیمور په ۱۳۸۳م کال کې د سیستان مشهور بند «بند رستم» یې وران کړو دا بند د زرنج د ښار نه یو منزل پاس وو - د دغه بند په ورانه ټوله علاقه شاړه او ورانه شوه دی بندکې به د - هلمند نه راغلي او به ټولېدلې او بیا به د ویالو په واسطه په علاقه کې تقسیمېدلې او ټوله علاقه به شنه او ودانه وه او بندچې - وران شو نو ټوله علاقه ورانه او شاړه شوه د ګرشك نه ترفراه او چخانسوره پورې دا ټوله علاقه ورانه ، شاړه او خرابه شوه او یو عالم خلك در په درا وکډه په سرشو، تیمور د دغه علاقې او سیستان د ورانه نه پس بست او ګرم سیر ته ورغی او هلته یې هم مرګ ژوبلې او ورانه وکړې او په قندهار ورغی او د قندهار خلکو څه مدافعه وکړه خو فوځي زور پرې ورغی او ښار رالاندې شو او

محلي حاکم په دار شو، تیمور چې د دې ځای د مرګ، ژوبلې او
ورانۍ نه چې خلاص شو نو حکومت یې یو خپلوان امیر سیف الدین
برلاس ته ورکړو او د قندوز او تخارستان او بغلان په -
حکومتونو یې هم امیر جهاندار شاه د امیر جاکو برلاس ځوی مقرر
کړو او د بدخشان له خوا ډاډه وو ځکه چې هغه د تیمور دوست وو
د کابل حاکم هم اطاعت منلی وو نو امیر تیمور بېرته سمرقند ته وګرځېد
او دومره چابک لاړ چې په څوارلس ورځو کې خپل مرکز سمرقند ته -
ورسېد. څو موده وروسته د طوس خلکو په (۱۳۸۸م) کال کې
بغاوت او مقاومت وکړو او د تیمور امیر میرانشاه هغه وزپل او
قواریې ساوستله او تیمور میرانشاه په شمالي او شمالي مغربي افغا
نستان حاکم مقرر کړو چې تر (۱۳۹۵م) کال پورې وو او په کال -
(۱۳۹۶م) کې تیمور د افغانستان په حکومت خپل مشهور او لایق ځوی
(شاهرخ میرزا) مقرر کړو، خو په کابل او زابل باندې تر سنله پورې
پیر محمد د تیمور لمسی او ولیعهد لا حاکم وو. په کال (۱۳۹۷م)، کې تیمور
بیا د هند د نیولو په نیت روان شو او د افغانستان په شمالي ولایاتو
وریغ او د هندوکش د غره خوا کې اندراب ته چې ورسېد خبر شو چې
د کتور فلک او سیاه پوشان په خوار شا علاقو یرغلونه کوي او بیا -
خپلو غرنیو ځایونو ته ګرځي او هلته هر څوک نشي ورتللی. تیمور عزم
وکړو چې د شمال له خوا د خاوک له پلوه د پنجشېر د درې په برخه

برخه دکتور خلکو او د بلورستان او سنی نورستان، له لارې تېر
شي خو اوس ډېره ګرانه وه مجبور شو چې وګرځي او د پخالک په ډول
دی او دده اس واکوز کړی شو بیا هم د شمال له خوا یې لس زره
لښکر دکتور خلکو د تابع کولو له پاره ولېږلو او هلته یې څه
یادګاري نښې هم جوړې کړې او تیمور دې ته هم فتحه وایې.
کېدی شي چې دا فتحه محض د نوم وه تیمور چې دا سختي ولیدلې
وګرځېد او د خاواک له لارې کابل ته ورغی او په هندې بیا
یرغل وکړو او د افغانستان په شرقي ایالتو ورغی ویلی شي
چې تیمور په دې سفر کې په لاره کې یوه قلعه «ایزیاب» ولیده
چې اوسیدونکي یې څه پښتانه وو، د تیمور د دې قلعه استحکامات
خوښ شو او امر یې وکړو چې دا دې بیا ترمیم او ودان کړی
شي تیمور د قلعه په خوا کې واړول او په څوارلس ورځو یې دا کار
سرته ورسېد، یوه ورځ تیمور سور د قلعه نه چاپېره ګرځېده
او کار یې کتلو چې یو تن د قلعه د ننه دیو دوه منزله ودانه
نه پرې د غشي ګذار وکړو او د تیمور سینه یې نښنه کړې وه.
خو د تیمور اس د غشي آواز واورېده او په ټوپ شو او له بلې دروازې
نه قلعه ته ورننوت او تیمور حکم وکړو چې د قلعه حاکم موسی خان
پښتون او د هغه دوه سوه نور ملګري ونیول او غشي ویشتونکي
او شپږ ملګري یې لاپاتې وو او جنګ یې کاوه او د تیمور په پس

لښکريان يې زخمي کړه خو يو تن سيستاني دکـه ګی، ورغی او مغوی وبيول او تيمور مغوی او موسی خان او ملګري يې ټول و وژل او هند ته روان شو او په ( ۱۳۹۸م) کال کې له سند نه ورتېر شو او (متوسط هند) يې فتحه کړو او بېرته افغانستان ته راوګرځېد او دکابل له لارې د خلم په ښار ورغی او د جيحون نه ورتېر شو او ماورالنهر ته ورسېد.

تيمور يو وار بيا د ايران له خوا افغانستان ته راغلی وو او د مرغاب او نيشاپور دلارې د ترمذ سره د جيحون نه تېر شو او سمرقند ته ورسيد.

په کال (۱۴۰۴م) کې اميرزاده سيدی محمد بن عمر شيخ دقندهار حاکم وو او د افغانستان ځينې شمالی ولايات هم ورسره وو او اميرزاده پير محمد دغزني حاکم وو او زابلستان هم ورسره وو او شاهرخ ميرزا د تيمور زوی په شمالي ولاياتو حاکم وو.

## د امير تيمور مرګ د ۱۴۰۴م کال کې

تيمور په (۱۴۰۴م) کال چين ته د لښکر کولو په فکر کې وو او دا عزم ده د ځينو فقهاو په شرعي فتوی کړی وو چې علما و ته تيمور ويلي وو چې ما يې وينې توی کړې او س توبه باسم او نور قتلونه

نه کوم خو د تېرو قتلونو ازاله چې وکړی شم دغسې کارونه و بنایي چې نه یې وکړم او خدائ ما ته عفوه وکړي!

علماوو فتوه ورکړه چې د کفارو سره په مذهبي جذبه او د اسلام د لوړتیا په لارکې جهاد کول د دې کفاره کېدی شي.

نو تیمور نیت وکړ چې په چین او د هغه ځای په کفارو غزا وکړم چې داوېنې په وینو ووینځل شي، تیمور د پرلوی لښکر چین ته په ډېرو سختو شرایطو او یخنۍ کې روان کړ، خو په اترار کې د سیحون په غاړه ناروغه شو او علماء به یې د خپل کټ خواته کېنولي وو او تلاوت به یې کولو او مریضي یې ډېره سخته شوه خپلو پهلوانو او افسرانو ته یې نصیحتونه وکړه او امیرزاده پیرمحمد خپل نمسی یې ولیعهد وټاکلو چې هغه حاضر نه وو او په شعبان د۸۰۷هـ ۱۴۰۴م، کال کې وفات شو او چین او دنیا د دې لوې بلا نه خلاصه شوه!!

## د تیمور اداره:

تیمور د خپل قلمرو په چارو کې یواځې په خپل فکر او نظر روان وو او د هیچا نه یې مشوره نه غوښتله - خو په لښکرکشو کې به یې کله د خپلې کورنۍ د افرادو او ځینې فقهاوو نه مشورې غوښتلې، تیمور

دخپل سلطنت اکثري برخې خپلو اولادو ونوته ورکړې وې او هم دغه شهزادګانو ته به یې د پرلوی لوی بخششونه هم ورکول او د دوی سزا هم لږه وه غټه سزا یې څولبنتې «چوب یساق» وې، تیمور په اخري عمر کې شراب هم پرېښودل او د شرابو څکلو ټول سامانونه یې مات کړه او ساز او سرودې هم منع کړو. او دځان نه یې ـ سپین مسلمان جوړول غوښتل.

تیموري لښکرو او سلطې د افغانستان خلک د اقتصاد له نظره ډېر زیانمن کړه، زراعت او صنعت یې له منځه لاړ او ودانۍ او لوی بناګانې یې وران شو او د سیاسي نظره د افغاني ولس سیاسي غوښتنې خپلواکۍ او د خپلې خاورې تمامیت ته د پر تاوان ورسید خو د خلکو سیاسي روح فنا نه کړې شو!! او لا ژوندی وو.

د تیمور نه (۳۶) تنه اولادونه پاتې وو چې څلور یې ځامن وو او (۳۲) تنه نمسي او (۱۷) تنه لوڼه وې. ځامن یې جهانګیر میرزا امیرشیخ، میرانشاه او شاهرخ میرزا وو، مشران ځامن یې په ایران او ترکستان کې د پلار په ژوند کې مړه شوي وو او میرانشاه په ـ اذربایجان کې په جنګ کې وژل شوی وو، یواځې شاهرخ میرزا په افغانستان کې پاتې وو.

د تیموري دولت شکل یو فیودالي ډول دولت وو او وروسته هم دغه بقایا ترې پاتې وه، د تیمور د مرګ نه چې امیرزاده ـ

پیرمحمد چې په غزني کې وو خبر شو او دی ولیعهد هم وو سمرقند ته د تاج او تخت د نیولو د پاره ورغی خو خلیل سلطان پرې نښود او مات یې کړ او شاهرخ میرزا په هرات کې په (۱۴۰۴م) کال کې دځپل سلطنت اعلان وکړ او خلیل سلطان د سمرقند نه او پیرمحمد د غزني او زابل نه شاهرخ میرزا ته غاړه کښېنوده او. د شاهرخ میرزا باد شاهي ومنل شوه او آخر خلیل سلطان چې یو عیاش او فحاش شخص وو خپلو فوځیانو ووژه او پیرمحمد هم دځپلو درباریانو له خوا ووژل شو او د شاهرخ میرزا سلطنت قایم او افغانستان نسبتاً متمرکز شو او د هرات ښار د سلطنت مرکز وګرځېد شاهرخ میرزا په (۱۳۹۶م) کال کې د هرات حاکم مقرر شوی وو او تر (۱۴۴۶م) کاله پورې دی هلته وو یعنې تقریباً نیم قرن یې هلته ژوند کړی وو او خوا و شا علاقې یې هم ورالاندې کړې وې، شاهرخ میرزا څه نوې اصلاحات وکړه او غوښتل یې چې دځپل پلار دقتلونو تالانونو او د ښارونو د ورانولو دغل څه جبیره وکړي خو د هغو جبیره څه آسان کار خو نه وو!!

د شاهرخ میرزا[۱] د مرګ نه پس دالغ بیګ میرزا[۲] د سلطنت دوره

---

(۱) شاهرخ میرزا په (۱۴۴۶م) کې په ایران کې وفات شو (۷۲) کلن وو.

(۲) الغ بیګ میرزا په (۱۴۴۶م) کې باد شاه او په (۱۴۴۸م) کې دځپل ځوی دلاسه ووژل شو.

راغله او ماوراالنهر کې یې د خپل سلطنت اعلان وکړ او د حکومت مرکز یې د هرات نه سمرقند ته نقل کړ خو په (۱۴۴۸م) کال کې دی ووژل شو او بوسعید میرزا د سلطنت واکدار شو ابوسعید د میرزا سلطان محمد زوی د میرانشاه نمسی او د تیمور کړوسی وو ابوسعید میرزا په کال (۱۴۶۸م) کې ووژل شو او سلطنت یې حسین میرزا ته ورسید. حسین میرزا په (۱۴۳۸م) کال کې په هرات کې زیږیدلی وو دی د غیاث الدین منصور بن میرزا بایقرا بن عمرشیخ بن امیر تیمور زوی وو. ابوسعید (۳۶) کاله سلطنت وکړ (۱۴) خامن او (۱۱) لورنه یې وې. د حسین میرزا د مرگ نه وروسته د هغه د جانشینانو په منځ کې یې اتفاقه وې.

د گورگان دولت عمر په افغانستان کې د (۱۳۸۰م) کال نه ولخله تر (۱۵۰۶م) کال پورې تقریباً (۱۲۶) کاله وو په دې موده کې چې داروپایانو په اصطلاح د نوي تاریخ جز گڼل کیږي د افغانستان ولس ډیرې سرې تودې لیدلې او سیاسي، اقتصادي او فرهنگي ډیر خړیې دلاسه ورکړي دي.

# د خارجي دولتونو له خوا د افغانستان تجزيه

## او د افغاني ولس مبارزې

## د «۱۶» قرن نه تر «۱۸» قرنه پورې

د «۱۶» قرن د اغاز نه سياسي حوادث څه په داخل کې او څه په گاونډي هيوادو کې چې واقع شوي ول د افغانستان په زيان او تاوان تماميده په داخل کې د «۱۶» قرن د اول نه د «سلطان حسين د مرگ نه وروسته ۱۵۰۵ کې، دولت سياسي او اداري قدرت د لاسه ورکړی وو او محلي فيودالانو او تجزيه غوښتونکو سره د خپل قدرت د زياتيدو فکر وو او د يو بل سره جنگيدل - په ماوراءالنهر کې هم شيباني دولت په «۱۵۰۰م» کې او په ايران کې صفوي دولت په «۱۵۰۲م» کې منځ ته راغلی وو د دغو دولتونو د شمال او غرب او شرق نه د افغانستان د تجزيې د پاره ټگيا وو او کوششونه يې کول او آخر يې افغانستان له دريو خواو نه شمال او غرب او شرق نه سره ويش کړه -

شيباني دولت د افغانستان شمالي ولايات او صفوي ايراني دولت د افغانستان غربي ايالتونه او بابري دولت د افغانستان شرقي

ولایات ونیول او دا د پردو سلطه چې د (۱۵۰۶م)، نه ینولی تر (۱۷۰۸م)، پورې او ران تر (۱۲۱۶م)، پورې لاره او په غرب کې خو یې ان تر (۱۲۴۲م)، پورې هم دوام وکړو ترڅو چې د سدوزو دولت منځ ته راغی او په شمال او شرق کې د پردو نفوذ څه دوه نیم قرنه دوام وکړو په دغه موده کې د افغانستان د خپل دولت وجود نه وو نو اقتصادي مرکزیت یې ورک وو او بحري - معارف د منځ نه تللی وو، پردو د افغانستان ملي وحدت دامې د منځه وړی وو چې د بیا د اعاده کېدو امید لږ وو.

افغانستان د سیاسي نظره د پردو د سلطې د اغېزې لاندې تر اتلسمې پېړۍ پورې او د علمي او فرهنګي لحاظه تر شلمې (۲۰) پېړۍ پورې متاثر پاتې شوی دی او د قولو ژوندي ملتونو نه وروسته پاتې شو او څه وده او انکشاف یې په برخه نه وو. خو پردو دولتونو هم د دوی د شتون نه چې څه ګټل هغه هم دلته لګول او استحکامونه به یې جوړول او نظامي لګښتونه به یې هومره وو چې څه خاصې ګټې به یې په لاس کې نه پاتې کېدې او نه به په قرار وتل به دلته مضطرب او ناقراره وو.

# افغانستان او شیباني دولت

ازبک اصلاً تایمن او قبچاق مغلي قبیلوته ته منسوب دی او
د ازبک خان په لاربښوونه یې په څوارلسمه پیړه کې د اسلام دین
منلی دی (ازبک خان د مغلو د مطلا اردو یو امیر وو)، او د نورو
قبایلو نه د امتیاز دپاره یې د ازبک نوم خوښ کړو، او په پنځلسمه پیړۍ
کې ازبکان سره غونډ او متحد شو او څه نور مغلي قبایل یې د ځان
تابع کړه او د اورال د غاړو نه مخ په جنوب روان شو او د جیحون
د بحرا په لاندنۍ برخو کې د چغتیانو سره مخلوط او ګډ شو او مستقل
قوم یې جوړ کړو او د قزاقو او قرغزو څوک چې دلته او سیدل۔
هغه یې هم په خپل قوم کې حل او مدغم کړه او ورو ورو یو قوي
اولسي دولت تری جوړ شو۔ محمد خان شیباني د جوجي د چنګیز د ځوی
د اولادې نه یو زړه ور سړی وو او د دوی کورنۍ په سایبیریا
کې حکمراني کوله او زمامدار وو او همدا محمد خان شیباني یې مؤسس
وو۔ ازبک خلک په پنځلسمه پیړه کې د محمد خان شیباني په قیادت
کې ماوراالنهر ته راغلل، سلطان محمود میرزا چې په (۱۵۰۰م)، کې مړ
شو او خامن یې سره وران وو او د یو بل سره په جګړو اخته وو

محمد خان شیباني راغی او ماوراالنهر یې ونیولو او په کال (۱۵۰۰م) کې یې ځان د شیباني مستقل باد شاه په عنوان اعلام کړو. او په (۱۵۰۶م) کال کې چې سلطان حسین چغتایی مړ شو او خراسان یې د حکومت په سر سره ځوان وو، محمد خان په بلخ حمله وکړه او د شمالي افغانستان ځینې ولایتونه یې هم لاندې کړه او شیباني دولت بنه قوي شو. محمد خان شیباني سمرقند او بلخ او هرات او د ایران ځینې برخې هم را لاندې کړې خو اخر صفوي دولت اسمعیل شاه صفوي محمد خان شیباني ته ماتې ورکړه او ورپسې یې واخیست او د مروی سره نژدې د طاهر آباد د کلي سره په یو جنګ کې محمد خان شیباني په (۱۵۱۰م) کې د آس نه ولوېد او د آسونو په غوبل کې وژل شو او تر مروې پورې صفوي دولت فتحه وکړه. د محمد خان شیباني په وخت کې هم افغانستان د قرارګه ورځې نه دي لیدلې جنګ او جګړې به وې او د افغانستان خلک د پردو د لاسه زورېدل او کړېدل او تجارت او صنعت او زراعت او معارف یې ډېر زیانمن وو خو افغاني ولس هم سو د دې چې ډېر زورېدلی او کړېدلی وو او د پردو نه ډېر تاواني وو خو چې څه وخت به بې څه فرصت په لاس ورتللو د پردو نه به یې خپل انتقام اخیستلو او د پردو پرې هېڅکله د قرارګه حکومت نه دی کړی.

# افغانستان او د ايران صفوي دولت

د شپاړسمې پېړۍ په اوايلو کې په ايران کې يو نوی دولت منځته راغی چې مشري يې د يو روحاني صوفي کورنۍ په لاس کې وه او مؤسس يې په (۱۵۰۲م) کې اسمعيل صفوي وو ده په ايران کې اماميه مذهب رسمي اعلان کړو - دې دولت داتلسمې پېړۍ دا ولې ينايۍ پورې عمر وکړو - صفوي دولت محمد خان شيباني ته ماتې ورکړه او تر مروې پورې علاقې يې رالاندې کړې - اسمعيل شاه صفوي دافغانستان شمالي مغربي ايالتونه نيشاپور، مشهد او هرات او نور هم په (۱۵۱۵م) کې د خراسان په نوم يو کړه او حکومت يې خپل ځوی طهماسب ميرزا ته وسپاره - شاه اسمعيل په (۱۵۲۳م) کال کې په گرجستان لښکر وکړو او هغه يې فتح کړو او په کال (۱۵۲۴م) کې وفات شو او په ځای يې ځوی طهماسب ميرزا د ايران بادشاه شو - او د سلطنت - مرکز يې د تبريز نه قزوين ته منتقل کړو، د طهماسب سلطنت د کال (۱۵۲۴م) نه تر (۱۵۷٦م) پورې وو، د ازبکو حملې و دروولې خو د عثماني دولت حملې پرې پيل شوې خو بيا د ايران او عثماني دولت په منځ کې صلحه وشوه - هغه په دغه وخت کې په کال (۱۵۴۰م) کې همايون بابري ته شېرشاه سوري افغان په هند کې يو له پسې

ماتې ورکړې او اخر همایون ایران ته پناه ور وړه او شاه طهماسپ صفه په هرات کې استقبال کړ او ایران ته یې وغوښت او خپل حضور ته یې رهانه او خو موده پس یې ور سره معاهده وکړه او غربي افغانستان ایالتونه یې ایران ته ورکړه او طهماسپ ور سره لښکر وکړو او همایون قندهار او کابل ونیولو، قندهار ایران واخیست او کابل د همایون په لاس کې وو.

طهماسپ په (۱۵۶۱م) کال کې انګریزي کمپنۍ نماینده ګان چې د تجارت په نامه ایران ته راغلي وو او د ملکه الزابت پیغام یې د شاه طهماسپ په نوم راوړي وو په ایران کې ومنل خو شاه طهماسپ په (۱۵۷۶م) کې د دربار د يوې ښځې له خوا مسموم او وفات شو او د طهماسپ په ځای د وه ځامن حیدر او اسمعیل تر (۱۵۷۷م) کاله پورې د دربار د امراو د لاسه ووژل شو او سلطنت یې بل ځوی (محمد خدا بنده) ته ورسید خو په صفه د عثماني دولت پر له پسې حملې وې او دی د مقابلې نه عاجز وو، ځوی یې عباس په (۱۵۸۷م) کال کې د خپل سلطنت اعلان وکړو او د انګریزي کمپنۍ نه یې کومک وغوښت، د ایران اردو منظم شوه او عثماني دولت او ازبکي دولت ته یې ماتې ورکړې خو د افغانستان خلکو پاڅون وکړو او قندهار یې د ایران نه بېرته ونیولو - دو بناغلي لوستونکي به اندازه وکړي چې په دې کشکشونو کې به په افغاني ملت څه تېرې

شوې وې او خوږه قربانۍ به یې ورکړې وې او خوږه ځوانان او
مالونه او شته به یې ضایع شوې وي خو ملي روح یې لا ژوندی
وو چې د هغې په اثر یې قندهار بیا د ایران نه ونیولو.

# د هند بابري دولت او افغانستان

د هند بابري دولت د څلورلسیزو کلونو په واسطه چې افغانستان ته یې
څو وارې وکړې د افغانستان اقتصاد ته یې ډېر تاوان رسولی وو
محمد بابر د تیموري شهزادګانو نه یو وو دی د عمرشیخ میرزا ځوی
وو چې هغه د اندیجان چې په ماوراءالنهر کې واقع وو او عمرشیخ یې
حاکم وو. د بابر پلار عمرشیخ چې مړکېده نو دی (۱۱) کلن وو
دا یوولس کلن بابر د پلار په ځای په (۱۴۸۳م) کې کېناست او په
کال (۱۴۹۷م) کې سمرقند د خپل تره سلطان احمد نه ونیولو - او په
(۱۴۹۹م) کال کې یې اندیجان بیا د خپل ورور جهانگیر نه ونیولو
او په (۱۵۰۰) کې یې سمرقند بیا د محمد خان شیباني نه ونیولو خو په
کال پس ته پرې بیا محمد خان شیباني اوزبک حمله وکړه او بابر تاشکند
ته خپل ماما سلطان محمود ته ورو تښتېد ماما یې ورسره کومک وکړه
او بابر په اندیجان بیا حمله وکړه او زخمي شو او ترمز ته ورو
تښتېد په (۱۵۰۱م) کال کې بابر د ترمز نه افغانستان ته ... او

او په افغانستان کې د گورگاني حکومت اقتدار کمزوری شوی وو.
بدیع الزمان میرزا په میمنه کې وو او په تخارستان د خسروشاه
حکومت وو چې اته زره لښکرې هم په لاس کې وو، دې سړي بابر
په قندوز کې استقبال کړ خو بابر د ده لښکر د ځان خواته کش کړو
او خسروشاه وتښتېده او میمنې ته بدیع الزمان ته ورغی او بابر
د دغه لښکرو سره په هندوکش واوښت او کابل ته ورغی په کابل
کې د مرحوم عبدالرزاق میرزا حاکم وو خو اصلاً حاکم محمد مقیم ارغون
وو دی هم گورگاني وو چې قندهار او زمینداور یې هم په لاس کې
وو. مقیم د میرزا عبدالرزاق نه حکومت ونیو او د هغه خورېې
هم په نکاح کړه او عبدالرزاق لغمان ته وتښتېد. بابر چې ورغی.
مقیم یې مات کړو قندهار ته لاړ او کابل بابر ونیولو بابر په(۱۵۰۵)
کال کې چې گورگاني دولت په زوال کې وو او سلطان حسین چې
مړشو نو په هرات کې بدحال وو او حکومت سقوط کړی وو بابر
هغه خواته د غزني او زابلستان له لارې روان شو او دغه ځایونه
یې د ارغوني حکمرانانو نه ونیول او قندهار یې هم والاندې کړو
او چنېد وروجهانگیر یې پرې مقرر کړ او په کال (۱۵۰۶م) کې
بابر د هزاره جات له لارې هرات ته ورغی په دغه وخت کې.
بدیع الزمان او مظفرحسین د واړه بادشاهان په مرچو کې وو.
او په مرغاب یې اړولي وو چې د شیباني دولت د حملې مخنیوی

وکړي بابر هم وغوښته چې د دغه باد شاهانو سره ملګرتیا وکړي او د محمدخان شیباني مخه ونیسي خو د ژمي یخني رانغله او جنګ ونه شو او بابر بېرته کابل ته راوګرځېد او کابل جان میرزا ونیولی وو کابل بابر بیا د هغه نه ونیو او هغه قندهار ته لاړ.

بابر په کال (۱۵۰۷م) کې د غزني په غلجي پښتنو ورغی او جنګونه یې ورسره وکړه او د هغوی رمې او پسونه یې ولجه کړه خو د خلکو د بابر نه ډېر منفرت او کرکه پیداشوه، محمد شیباني هرات ونیولی وو او ګورګاني دولت پورته شوی وو او د ازبکو مخه جنوب خواته وه، محمدمقیم ارغون او شابېګ د شیباني قوت په مخکې وو هغوی د بابر نه کومک وغوښت خو تینګ نه شو او د محمد شیباني دولت ته تسلیم شو او محمد شیباني هغوی پخپل حکومتونو پرېښودل نو هغوی د بابر په مخه لښکر راووېست او جنګ جوړ شو او بابر د واړو ورونو ته ماتې ورکړه محمدمقیم زمینداور او شاه بېګ بلوچستان شمال ته وتښتېدل او قندهار بابر لاندې کړو او خپل ورور ناصر یې پرې حاکم مقرر کړو او بابر بېرته کابل ته وګرځېد خو مقیم او شاه بېګ بیا راوګرځېدل او د شیباني دولت په کومک یې په قندهار حمله وکړه او قندهار یې د ناصر نه ونیولو او هغه د واړه ارغونو ورونه راغلل او قندهار یې په لاس کې کړو او محمد خان شیباني هم د زمینداور نه بېرته هرات ته وګرځېد

بابر د قندهار خبره هدغسې پرېښوده او ننګرهار ته په پام شو او په کال (۱۵۰۸م) کې ننګرهار ته وروان شو میرزا عبدالرزاق د کابل پخوانی حاکم چې په ننګرهار کې ورځنه مزاحمت وکړ وځو بابري لښکر هغه مات کړ او ونیول شو او د بابر په حکم ووژل شو او ننګرهار هم د کابل د بابري حکومت سره وتړل شو په دې وخت کې بدخشان کې خلک د زبیر راهي چوپان سره پاڅېدلي وو او دغه ولایت یې ونیولی وو د بابر نیت وو چې په افغانستان کې د ګورګاني دولت جانشین شي بدخشان ته یې د جان میرزا په مشرۍ لښکر ولېږلو - جان میرزا بدخشان د زبیر راهي نه ونیولو په دې وخت کې بابر د محمد خان شیباني د مرګ نه خبر شو چې محمد خان د مرو په جنګ کې مړدی نو د ماوراالنهر د نیولو په فکر کې شو او فوراً قندوز ته وروان شو او د ایران د بادشاه اسمعیل صفوي نه یې هم کومک وغوښت، بابر په (۱۵۱۱م) کې ماوراالنهر ته ورغی او بخارا او سمرقند یې ونیول خود شیباني لښکرې را وګرځېدلې او د بابر نه یې بېرته بخارا او سمرقند ونیولو او بابر په (۱۵۱۴م) کې بېرته افغانستان ته په تېښته راغی، او د ماوراالنهر نه یې نور زړه تور شو او د افغانستان په شمال مغرب پلو هم د ایران د صفوي دولت زور ور نو بابر د افغانستان شرقي برخو ته متوجه شو او قبایلي پښتنو سره په جنګ جګړو شو سوات او باجوړ یې ونیولو

او د صفه خان په حکومت یې خواجه کلان بېګ مقرر کړ او په دې جنګونو کې تقریباً دری زره قبایلي پښتانه و وژل شول بابر ورو ورو بیا قوي شو او د هند د نیولو اراده یې وکړه او په (۱۵۱۸م) کې د اباسیند نه ورتېر شو او ترچناب پورې ورسید خو بېرته وګرځېده بل کال بیا بابر هند ته روان شو او د یوسفزو سره یې جګړه پېښه شوه او بیا د اټک سره له اباسیند نه پورې وتلو او محمد سلطان د څلور زره سوره سره د لاهور د نیولو د پاره مقرر کړو او پخپله کابل ته وګرځېد. په کال (۱۵۱۹م) کې بابر بیا پنجاب ته ورغی او سیالکوټ یې ونیولو او (۲۰) زره بندیان یې هم په لاس ورغلل او د سیدپور پښتانه یې هم تالا کړه او بېرته کابل ته راوګرځېد او په (۱۵۲۰م) کال کې یې شهزاده همایون بدخشان ته ولیږلو او پخپله قندهار ته ورغی او شاه بېګ ارغون یې قلعه بند کړو، په راتلونکي کال کې شاه بېګ قندهار بابر ته حواله کړو او پخپله د بلوچستان په حکومت قانع شو چې وروسته ده او اولادې ورپسې سند ته هم ننوتلو - بابر قندهار خپل ځوی کامران ته وسپارلو او دی بېرته کابل ته راغی.

د بده مرغه په دغه وخت کې د پښتنو لودیانو دولت چې بهلول لودي تاسیس کړی وو اوس د ابراهیم لودي د دهلي د بادشاه په وخت کې د انحطاط په حال کې وو ابراهیم دلودي د دولت د مشرانو

او د سردارانو سره بده وضعه کوله او ډېرې بنديان کړي وو او د ډېرو نه يې جاګيرونه بېولي وو په دې ترڅ کښې اکثر مشران خفه او ناراضه بدي وو د ابراهيم لودي تره علاوالدين عالم خان هم د ابراهيم نه خفه وو او دولت خان لودي د پنجاب مقتدر حاکم او د هغه ځوی دلاور خان هم د لودي دولت نه ناراضه بدی او خفه وو.

د علاوالدين عالم خان کابل ته ورغی او بابر شاه يې د هند حملې ته وهڅاوه بابر شاه په (۱۵۲۳م)، کال کې پنجاب ته لښکر وکړو په لاره کې د پښتنو قوي قبيلې يوسفزو سره يې لاس مخکې خپلوي کړې وه او د يوسفزو د خان شاه منصور لور بي بي مبارکه يې واده کړې وه پنجاب ته په قراره د بابري لښکرې ورسيدې او لاهور يې د هغه ځای د مدافعو پښتنو ونيولو بابر ميرزا عبدالعزيز په هغه ځای حاکم مقرر کړو او ورپسې يې سيالکوټ او ديپالپور هم لاندې کړه او هلته يې د سته جمعي قتلونه وکړه او خپل حاکمان يې هلته مقرر کړه او بېرته کابل ته وګرځېد د سيالکوټ حاکم عالم خان د سلطان ابراهيم کاکا وو ده په ځای د دې چې د پردو مخه يې نيولی وای عالم خان او د دولت خان ځوی غازي خان په دهلي او سلطان ابراهيم پسې لښکر وکړو خو د سلطان ابراهيم له خوا مات شو او بېرته پنجاب ته لاړل بابر شاه په (۱۵۲۵م)، کال کې بيا د هندوستان د نيولو په نيت روان

شو دا پېړ د بدخشان او قندهار لښکر م ورسره وو چې ترلو «۲۱» نه ړ لښکر کېده . بابر د پنجاب نه تېر شو او په پاني پت کې د سلطان ابراهیم لودي د فوځ سره مخامخ شو سخت جنګ وشو او سلطان ابراهیم ووژل شو او بابر فتحه وکړه او شاهي خطبه یې د ظهیرالدین محمد بابر په نوم ولوستله شوه او بابر د هند شهنشاه شو - بابرشاه د غزني او زابلستان حکومت خولجه کلان بېګ او د کابل حکومت چې بدخشان م ورسره وو شهزاده همایون ته وسپارلو او د قندهار حکومت یې شهزاده کامران ته ورکړو او د مملکت تنظیم یې وکړو - بابرشاه په کال «۱۵۲۹ م» کې په هند کې وفات شو او جنازه یې کابل ته ویوړه شوه او د کوه اسمائي غره په لمن کې ښخ شو او قبر یې بیا وروسته نهسي جهانګیر جوړ کړو - همایون د بابر ځوی په کابل کې زېږېدلی او پالل شوی وو او د غه وخت «۲۴» کلن وو چې پلار یې بابرشاه وفات شو او همایون د هندوستان بادشاه شو خو خپل او پردي د ښمنان یې ډېر لکه خپل ورور یې میرزا کامران چې کابل او قندهار نیولی وو د همایون مخالف وو او په همایون پسې یې لښکر وکړو او پنجاب یې تری ونیو او بل ورور یې په هند کې هندال نومي مخالفت وکړو او په اګره کې یې د خپل استقلال اعلان وکړو او په دهلي م لښکر کشي وکړه خو په جنګ کې مات شو خو همایون ته بله لویه بلا راپیدا شوه او هغه سوري شېرشاه افغان وو

څي خان يې د هندوستان د حکومت وارث گڼلو-

يو پښتون شاعر ويلي وو:

که بابر دی نن په قهرلودي پښتون ته
کوم شېرشاه به خدای پيداکړي هايون ته
د پښتون په تنگ به بيا وتري ملا
تخت اوتاج به ور په سرکاندې پښتون ته

(سيدرسول رسا)

شېرشاه په (۱۵۳۹م) کال کې په (بهوجپور)[۱] کې هايون ته ماتې ورکړه او په (۱۵۴۰م) کال کې دگنگا په غاړه يې بيا هايون ماتکړ او د هند نه يې وويست او په هندکې يې بيا د پښتنو سوري دولت دلودي د دولت په ځای ودراوه- د دغه مدبر شخصيت او سوري بادشاه لوی او مهم تاريخ دی چې د هند د تاريخ سره تعلق لري او موږ د دلته دافغانستان د مهمو تاريخي پېښو نه بحث کوو نو دا موضوع زموږ د بحث نه وتلې ده- هايون د هند نه د بولان په لاره ايران ته پناه گزين شو او په (۱۵۴۴م) کال کې د ايران صفوي تهماسپ بادشاه سره وليدل او هغه ورته کومک او يو لښکر ورکړ چې دی افغانستان پرې لاندې کړي په دې شرط چې قندهار به د ايران دولت ته پرېږدي هايون قندهار او کابل ونيولو او ورونه يې کامران بدخشان او هندال هند ته وتښتېدل هايون قندهار ايران ته -

---

(۱) [illegible]

پرېښود او د چپلو ورونو سره په جګړو اخته شو آخر د ننګرهار د سرخ اب په جنګ کې کامران مات شو او د همایون نور دوه ورونه هندال او عسکري میرزا په جنګ کې ووژل شو او د (۱۵۵۰م) کال وو کامران وتښتېد او د ګکهړانو حاکم سلطان ادم ته ورغی خو هغه کامران ونیولو او همایون ته یې وسپارلو او همایون کامران ړوند کړو او ځان یې د دې جنجال نه هم خلاص کړو او په (۱۵۵۳م) کال کې همایون بېرته کابل ته وګرځېد - همایون په څو کلونو کې د هرې وینې متوی کړی او چپل حکومت یې په بدخشان او تخارستان او کابلستان او زابلستان او قندهار کې ټینګ کړو - او د زمینداور حکومت یې سیستان بهادرخان ته او قندهار شاه محمد کلان او بدخشان یې سلیمان میرزا ته ورکړه او پخپله یې مرکز په کابل کې ونیوه چې شرقي خواته یې نوي د اباسینده غاړې ته وکړی شي - همایون د هند د احوال نه خبر وو چې د شیرشاه سوري او د هغه د ځوی اسلام شاه د مرګ نه پس د سوري سلطنت زوال ته راغلی وو د اسلام شاه ځوی فیروز ورکوټی هلک برای نام بادشاه شو خو ماما یې عادل خان د نظام خان ځوی ورپسې راغی او چپل ورکوټی خوریې د چپلې خور په مخکې و واژه او سوري سلطنت یې پخپله نامه اعلان او د سکندر شاه عنوان یې غوره کړه خو ولسي خلکو به ورته عادلي وایي او ده د سوري سلطنت د ادارې اهلیت او صلاحیت یې نه درلود

یو عیاش سړی وو. همایون په (۱۵۵۴م) کال کې د کابل نه د (۱۵) زره لښکر سره د هند د نیولو په نیت روان شو او ډېر ژر په آسانه سره افغاني سوري دولت یې مات کړو او ډهلی یې ونیولو او په ډهلي کې (۱۵) کاله پس بیا د همایون په نوم خطبه و ویلی شوه خو بل کال ته همایون د شېرشاه د جوړې کتابخانې د لیدو له ورغی او د زینې نه ولوېدو او مړ شو او په ځای ځوی اکبر جلال الدین چې د همایون د فرار په وخت کې په عمرکوټ د سند کې زېږېدلی وو او اوس څوارلس کلن وو بادشاه شو خو اکبر د افغانانو د سخت مقاومت سره مخامخ شو چې هغوی د خپل مستقل حکومت ادعا درلوده په افغانستان هم د ایران صفوي دولت په (۱۵۵۶م) کال کې حمله وکړه او قندهار یې لاندې کړو، سلیمان میرزا غوښتل چې بلخ د ازبکو نه آزاد کړي، په (۱۵۵۹م) کال کې په بلخ لښکر وکړو خو پیر محمد د بلخ حکمران ورته ماتې ورکړه. په کال (۱۵۶۳م) کې یو آزادي خواه افغاني شخصیت «شاه ابوالمعالی» چې په هند کې د اکبر سره جنګېده او مات شوی وو کابل ته راغی په کابل کې ورکوټی شهزاده حکیم میرزا د همایون ځوی حاکم وو خو اصلاً حکومت یې د مور په لاس کې وو ابوالمعالی د حکیم میرزا د مور نه د هغه خور په نکاح واخیسته او وروسته یې د حکیم میرزا مور او نور د سر مقتدر سړي ووژل او کابل یې تصرف کړو خو میرزا سلیمان په بدخشان کې خبر شو او

کابل ته راستون شو او ابوالمعالي هم مخې ته ورغی د غوربند په
جنګ کې ابوالمعالي مات شو او په چهاریکارو کې ونیول شو او اعدام
شو - سلیمان کابل ونیولو خو د خلکو خوښه نه وه او حکیم میرزا پېښور
ته وتښتېد حکیم ته اکبر کومک ورکړو او د سلیمان نه یې کابل ونیو
او تر غزني حکمران شو او سلیمان میرزا په (۱۵۶۴م) کال کې بېرته -
بدخشان ته لاړ، سلیمان د خپل ځوی سره او محمد حکیم میرزا سره
څومره جګړې او لانجې راغلي او محمد حکیم څو واري د خپل ورور اکبر
جلال الدین سره جګړې ربړې وکړې او په مملکت کې بدحالي او ناارامي
وه او دې جګړو ربړو کې ډېر افغانان ووژل شو - خو په (۱۶۰۵م)
کې اکبر جلال الدین د هند مقتدر بابري بادشاه مړ شو او په ځای
یې شهزاده سلیم د جهانګیر په عنوان بادشاه شو او په اګره کې په
تخت کېناست د دې بادشاه په وخت کې صفوي دولت د هرات نه
بیا په قندهار حمله وکړه خو شاه بیګ د قندهار حاکم ماتې ورکړه
او د جهانګیر کومک هم د لاهور نه ورغی په (۱۶۲۱م) کې عباس صفوي
بیا حمله وکړه او قندهار یې د عبدالعزیز بابري نه ونیولو، په (۱۶۲۵م)
کې جهانګیر بیا کابل ته د قندهار د نیولو په طمعه راغی خو څه ترې
و نشو او بېرته هند ته وګرځېد - جهانګیر په (۱۶۲۲م) کال کې په لاهور
کې مړ شو او هلته ښخ شو او د ده مشهوره ملکه نورجهان هم هلته په
شاه دره کې ښخه وه ، د جهانګیر نه یې ورور ستره ځوی شهزاده خرم

په (۱۶۲۷م)، کې چې په هند کې د شاه جهان په نوم باد شاه شو په دې وخت کې نذر محمد خان ازبک د بلخ حکمران په بامیانو حمله وکړه خو خنجر خان قلعه دار ورته د ضحاك په قلعه کې تینګ شو نو مخه کابل ته مخه کړه او کابل یې محاصره کړو. شاه جهان کابل ته کومکي لښکر را ولیږلو د الښکر ایله باریکاو ته رسېدلی و چې په (۱۶۲۸م)، کې نذر محمد خان په شا شو او بلخ ته لاړ نو څه کاله پس د قندهار حاکم علي مردان خان واورېدل چې صفوي دولت سیاوخش د اته زره لښکر سره قندهار ته را ولیږلو او د لښکر په راليږلو علي مردان خان د صفوي دولت نه خفه شو او په قندهار کې یې خطبه د شاه جهان په نوم ویله او د (۱۶۳۷م) کال و د کابل حکمران سعید خان د شاه جهان په حکم د علي مردان خان کومك له ورغی او ایراني لښکر ته یې په ارغنداب کې ماتې ورکړه او د قندهار حکومت د هند په بابري حکومت وتړل شو په (۱۶۳۹م)، کې چې شاه جهان کابل ته راغی نو علي مردان خان یې د کابل حاکم مقرر کړو دا هغه سړی دی چې د کابل منقش چهارچته یې او باغ علي مردان جوړ کړی و و چهارچته په (۱۹)، پېړۍ کې د انګریزانو زورګیرو لښکرو وسېزله او وران یې کړه.

شاه جهان په (۱۶۴۴م)، کال کې لښکر د شمال خواته واستول چې تر کهمرد او اندرابه ورسېد او څه جنګ جګړې یې د ازبکو د لښکرو سره وکړې خو یې نکړی شو چې هندي لښکرې د هندوکش

په شمال کې څه خاصې کامیابۍ ترلاسه کړې خو څه مال متاع د خلکو یې په لاس کې کړې او بې ګناه خلک یې ووژل او بېرته کابل ته راوګرځېد شاه جهان په (۱۶۴۵م)، کې بیا کابل ته راغی او لښکر یې بیا د هندوکش شمال ته ولېږل د الښکر د سیغان او نارین د لارې نه قندوز او بلخ ته ورسېد د شاه جهاني لښکر سپه سالار شهزاده مراد بخش و، چې د شاه جهان ځوی و۔ د نذر محمد خان ځامن، سبحان قلي خان، او بهرام خان، مراد بخش ته تسلیم شو او شهزاده ښار ته ننوتلو خو نذر محمد خان په چټله مخکې اندخوي ته تللی و و۔ مراد بخش چې د ازبکو د خوړو وړو سره و د هلو د خلو نه خبر و و، چې په بلخ تخار، قندوز، شبرغان او میمنه کې به یې کولې په بلخ او شبرغان او میمنه کې یې حاکمان مقرر کړه او دی بېرته کابل ته وګرځېد او شاه جهان هم بېرته هند ته لاړ یو کال پس په (۱۶۴۶م)، کې شاه جهان مجبور شو چې بیا کابل ته راشي ځکه چې نذر محمد خان ازبک ایران ته تللی و و او د صفوي دولت نه یې کومک اخیستی و و او میمنه یې محاصره کړې وه او سبحان قلي د ماوراالنهر نه ورکړې شو چې ځنېل ورور عبدالعزیز بخارا نه د ځنېل پلار کومک ته ولیږي او بل ځوی قتلغ محمد خان د پښتو زمرو لښکر سره راغی او بلخ یې محاصره کړو او ښار یې د بابري حاکم نه ونیولو شاه جهان دا واره ځنېل ځوي اورنګ زیب د دې جنګ سپه سالار مقرر کړو

چې بلخ بیا ونیسي اورنګ زیب را ورسید او عبدالعزیزخان
ازبک هم لښکر تیمور آباد کې مخې ته ور وویست خو عبدالعزیزخان
ماتې وکړه او په شا شو او اورنګ زیب فاتحانه بلخ ونیولو۔
شاه جهان ته د ازبکو زور او د سوړو خلکو معلوم وو نو دنذر
محمدخان سره یې دصلحې خبرې وکړې او بلخ او میمنه یې ورته و
سپارله او شاه جهان دکابل نه بېرته هند ته لاړ او شهزاده ـ
اورنګ زیب هم کابل نه هند ته راوګرځېده او نذرمحمدخان هم بلخ
ته بیا راغی او خپل ځوی عبدالعزیز ته یې د بخارا او ماوراءالنهر
حکومت ورسپاره او په دې ډول په ماوراءالنهر او بخارا کې ـ
عبدالعزیز دجنیدي سلسلې پنځم بادشاه شو.

په (۱۶۴۲م) کال کې ایراني عباس دویم صفوي بادشاه دپنځوس
زره لښکر سره په قندهار راغی او ښار یې دوه نیمې میاشتې ـ
محاصره کړو، او آخر یې لاندې کړو او زمینداور یې هم ورپورې
وتاړه ـ صفوي بادشاه لس زره لښکر دمحراب خان سره په قندهار کې
پرېښودل او پخپله بادشاه د فراه د لارې هرات او مشهد او ایران ته
لاړ ـ شهزاده اورنګ زیب چې د افغانستان د مدافع په حیث په
ملتان پروت وو خو په قندهار باندې د ایران دحملې مخنیوی یې
ونشو کړی خو بل کال یې (۷۰) زره لښکر دځان سره واخیست او
دکابل او غزني له لارې قندهار ته ور ورسید او شاه جهان

م کابل ته ورپسې راغی خو دې پردو جنګونو په افغانستان لوی او سخت قحط راوست یو من غله او بوس په دوه روپیو شو چې دا د هغه وخت د پر طاقت فرسا قیمت وو او څاروکولی شو؟ د قندهار ایراني لښکر څلور میاشتې مدافعه وکړه او ژمی راغی په صحرا کې م واښه نه مینډل کېده نو مجبوراً شاه جهان هند ته وګرځېد او اورنګ زېب ته م حکم وشو چې بېرته ملتان ته ستون شي خو شاه جهان د قندهار پر ښندو ډېر ټینګ نه وو ځکه چې قندهار د هند او ماوراءالنهر او ایران په منځ کې یو تجارتي او اقتصادي ښار وو او د ګمرکونو پر عایدات تر ډېر پلاس راتلل او د دا ورکړه ورکړي مرکز وو او کاروانونه به له دې لارې تېرېدل او را تېرېدل او د قندهار ښار یوه مظبوطه مورچه هم وه او کلک نظامي مرکز وو.

په (۱۶۵۰م) کال کې شاه جهان بیا په قندهار د حملې نیت وکړ او (۶۰۰۰۰) نفره لښکر او د لویو جنګي فیلانو سره قندهار ته ورروان شو، (۴۰۰۰) تر پوپه م ورسره وو او شهزاده اورنګ زېب د فوځ سر لښکر وو او د ملتان نه د سند په لاره قندهار ته ورسېد او شاه جهان پخپله م کابل ته راغی او رنګ زېب دوه میاشتې قندهار محاصره کړ وخو څه نتیجه یې وانخستله ژمی راغی او اورنګ زېب بېرته ملتان او شاه جهان هند ته وګرځېدل، بل کال (۱۶۵۱م) کې

داورنګ زیب رقیب شهزاده داراشکوه د قندهار په مهم مقرر شو
چې (۷۰) لوی افسران او (۷۰) زره عسکر هم ورسره وو چې سواره او
(۱۰) زره تفنګچي پیاده او (٦) زره بیلداران او (۵۰۰) نقب زن او
(۵۰۰) هم سقاوان (۳۰۰۰) او منبان (۲۰۰) فیلان او زور دار و مردکي او
جنګي تجهیزات او مهمات هم ورسره وو قندهار یې محاصره کړ وخو-
مواب هغه زړه ور حاکم د پخوا په شان مدافعه کوله دا محاصره
پنځه میاشتې اوږده شوه -او د هند حکومت د قندهار د نیولو نه مایوس
شو او د شهزاده داراشکوه لښکر د قندهار نه هند ته بېرته وګرځېد
او افغانستان تجزیه شو شاه جهان پادشاه د (۳۱) کاله بادشاهۍ
کولو نه پس په (۱٦۵۷م) کال کې د خپل ځوی اورنګ زیب په لاس
بندي او د بادشاهۍ نه محروم شو او په (۱٦٦۵م) کال کې مړ شو
اورنګ زیب پلار بندي کړ او په وروڼو هم غالب شو او په کال
(۱٦۵۷م) کې د خپل سلطنت اعلان یې داورنګ زیب عالمګیر په نوم
وکړ او (۵۰) کاله یې تر (۱۷۰٦م) پورې بادشاه وو اورنګ زیب
هم د همایون او اکبر او شاه جهان په شان علم او معارف ارتقا او
صنعت ته توجه کوله خو د خپلو مشرانو په خلاف وو مذهبي تعصب
یې لاره او په سیاست کې قسي القلب شخص وو، په بابري کورنۍ
کې اورنګ زیب لوی او قوي بادشاه وو چې د دکن جزیره یې
والاندې کړې وه خو د افغاني قبایلو یوسفزو، خټکو، مهمندو

شینواري افریدو سره به تل په جګړو اخته وو او ایمل خان مومند
او دریاخان افریدي ورته څو واري ماتې هم ورکړې وې او
خوشحال خان هم ورسره مودې مودې په جنګ جګړو اخته وو او
مجبور وو چې اورنګ زیب افغاني قبایلو ته دري کاله په حسن ابدال
تېرکړه خو څه خاصه ګټه یې نصیب نه شوه اورنګ زیب په (۱۶۰۷م)
کال کې وفات شو او له دې وخته نه بابري دولت هم مخ په زوال ـ
روان شو ـ د اورنګ زیب په زمانه کې فتاوه عالمګیري څو
جلده لیکل شوې ده چې اکثر فقهي مسئلې په کې شته دي ـ د قندهار
او غزني د صفوي دولت او بابري دولت په منځ کې خط فاصل مقر
وو غلجي او د رانو خانانو کله یوه ته او کله بله دوله منوله ـ
سلطان محمد خالص وایي چې سلطان ملخی توخی د هغه وخت د
غلجو لوی خان وو او د ابدالي کورنۍ خانان به په ارغستان کې
... او هنه اقتدار یې په لاس کې وو او سلطان محمد حسین خان
سدوزی یې مشر وو د اورنګ زیب د مرګ (۱۷۰۷م) کال نه پس
په هند کې د بابري دولت په منځ کې ګډوډي وه د محمد شاه د جلوس
(۱۷۱۸) امپراتوري هم غښې ګډوډي روانه وه په (۱۳) کاله کې (۴)
بادشاهان راغلل او لاړل او ووژل شو او ملوک الطوایفي په هر
کنج او کنار کې سر راپورته کړه ، مرهټانو ، جاټانو او سیکانو د هند
په جنوب اګره او پنجاب کې راپورته شو د دکن نظام او د بنګال

ولایت هریو د خپل خانګړي استقلال او خپلواکۍ دعو لرله نو د-
باندي قوتونو د یرغل هم د حمله او مداخلې زمینه برابره شوه لکه نادر
افشار او احمد شاه ابدالي یو په بل پسې په هند حملې وکړلې او هند ته
راغلل - کلکته او بمبی او مدراس د برطانوي تجارتي کمپنۍ پلاس کې
وو او د فرنګیانو د استیلا نه وروسته هند نیم قرن د شلمې پیړۍ
پورې د ملي آزادۍ مخ بیا ونه لیدلو په هرحال بابري حاکمانو د-
اورنګ زیب د مرګ نه پس هم په پېښور او غزني کې تر اتلسم قرنه
پورې د محلي فیودالانو په کومک څه ډېمګړي حکومت لا کولو او د صفوي
دولت سره یې فاصل حد د مقر علاقه وه - آخرین د هند د بابري حکومت
حاکم ناصرخان په اتلسم قرن کې وروچې په غزني زابلستان او کابلستان
یې حکومت کولو خو د پښتو ابدالي قوا وو هغه مات کړو او د اباسینه نه
نه یې ور تېر کړو لکه چې مخکې ویلي شوي د محمد شاه د جلوس -
(۱۷۱۸ م)، نه په (۱۲)، کاله کې (۴۰)، باد شاهان لا ړل او راغلل هم د هغه
محمد شاه په وخت کې نادر افشار د ایران نه په (۱۷۳۸)، میلادي کې
راغی او هند یې ونیولو او ورپسې بیا احمد شاه دراني په (۱۷۵۶ م)،
کې راغی او هند یې ونیولو خو ملک تر ټې شو خلو پښت کاله شرقي
ایالات د افغانستان نه بېل وو او د خپل سر وخورو وو زمینه
یې استقلال ته هموار شوه او د اتلسم قرن په منځ ومیانه کې شرقي
ولایتونه د اباسینده پورې په یو آواز پورته شوا و خپل مستقل

افغاني دولت يې تاسيس کړو.

اورنګزېب يو متعصب مسلمان بادشاه وو خو د افغانانو سره يې هم د زړه کينه وه او له دې نه په وېره کې وو چه دغه وجه وه چې پخپله د وطن نه راغی او د پښتنو د آزادۍ خواهو د مبارزې د غلي کولو د پاره په حسن ابدال کې درې کاله تېر کړه خو يوسفزو، مهمندو او افريدو ورته د خپلې تورې برېښ ورښود ايمل خان مهمند او دريا خان افريدي د محمد امين لښکر په لنډي خانه خيبر کې داسې ووهلې چې د محمد امين ښځه او مور او نور کورنۍ هم ترې بندمان کړه بيا يې په کرپه او خاپخ د مومندو په علاقه کې داسې ماتې ورکړه چې جسونت سنګ او شجاعت خان له د نيانه ارماني لاړل او ورپسې خوشحال خان ختک د ايمل خان او دريا خان په ملګرتيا د مغلو سره ډېره موده - وجنګېدله چې آخر په دمبره کې په (۱۶۶۱ م) کې وفات شو او په اکوړه ختک کې ښخ شو. د پردو دې ګوزارو د ولسونو. ان بکيه صفويه او مغليه په مقابل کې افغانان راپورته شوا و د خپل - مستقل دولت تادا و (بنياد) يې د (۱۸) اتلسمې پېړۍ په پيل کې کېښود.

# د روښانیانو مبارزه

بایزید انصاري مشهور په پیر روښان د شیخ عبدالله انصاري
ځوی وو او د شیخ سراج کورنۍ ته منسوب دی د وزیرستان د
کاني ګرام د علاقې اوسېدونکی وو دی پخپله د هند په جالندر کې
په (۹۳۲ هـ)، (۱۵۲۵ م)، او ځیني وایي چي په (۱۴۲۶) کې زېږېدلی وو
دی یو متقي او پرهېزګار سړی وو او صاحب طریقه وو ده پخپله
څو کتابونه په پښتو، فارسي او عربي کې لیکلي دی. دی د یو خاص
ډول تصوف او خاصي مذهبي تصانیفو مصنف وو چي د (حالنامې
او خیرالبیان)، په نوم مشهور وو او بل معروف تصنیف یې مخزن الاسلام
وو. دی د بابري حکومت د غیر عادلانه روش نه چي د افغانانو سره
یې کولو متاثر شوی وو په تېره دی وایي چي ما د قندهار په سفر کې
پخپلو سترګو ولیدل چي بابري حاکم بهرام خان سپاهیانو یوه ښځه
د پښتونو په جرنده پوري تړلې وه او څرخوله یې منو دي په ډېر
غضبجن او متاثر شو او د بابري دولت د ظلم او تیري په مقابل کې قد
علم وکړ او پخپل کتاب مخزن کې لیکلي چي زه لبکر تولوم چي د هند
بابري حکومت مسخر کړم او د جهاد اعلان یې وکړ او خپل نفوذ
یې تر پېښوره پوري خور کړ او په عملي جګړو یې لاس پوري کړ او

د یړله او مهمندو او نورخوا وشا خلکو ورسره ملګرتیا وکړه خو -
بایزید د شینوارو او د تور راغه جګړې کې د محسن خان د کابل والي
د لښکرو د لاسه په (۱۵۷۹م) یا (۱۵۴۵) کې مړ دی او مړی یې اشنغرته
ته یوړ شو، د بایزید د مرګ نه پس د پښتنې لښکرو قیادت د هغه
ځوی جلال الدین په لاس ونیو او د پېښور بابري حاکم حامدخان
بخاري یې ووژلو او جلال الدین په (۱۵۸۵م) کې په خیبر کې د اکبر.
جلال الدین د فوځونو سره څو جنګونه وکړه او مومند او یوسفزي
او نورغوریا خیل د جلال الدین ملګري وو. د دې جنګونو دوه کاله
اوږد والی وکړو خو د اکبر فوځونو د کشور مان سینګ او خواجه -
شمس الدین، خافي او زین خان کوکه په مشرۍ کې د جلال الدین
لښکر مغلوب کړو او تر سوات او باجوړ پورې پسې لاړل او افغانان
خواره شو - جلال الدین د بابړو لښکرو لارې وهلې او په دلروا و
ګوریله جنګونو یې لاس پورې کړو چې مردو فوځونو ته یې ډیر
تاوانونه ورسول په (۱۵۹۱م) کې د مغلي لښکرو سپه سالار جعفر بیګ
جلال الدین کوړنه او ورونه یې احداد علي او کمال الدین ونیول او
د جلال الدین په مقابل کې مغلي حکومت حیثې فتقاولمسول لکه ملک
حزه اکوزی او اخون درویزه م وو او په جنګونو کې د جلال الدین
ورونه شیخ عمر او خیرالدین او نورالدین ووژل شو او لوی
او مهم جنګ د دوارو لښکرو په باجوړ کې په (۱۵۹۲م) کې وو

چې د مغلو (۴۰) زره فوځ پکې جنګېدل جلال الدین او ملګرو ماتې ورکړې
په (۱۵۹۸م) کې په غزني حمله وکړه او جلال الدین په جنګ کې زخمي
او وروسته مړ شو او مغلي لښکرو د هغه سر د ډهلي دربار ته ولېږلو
او د جلال الدین ځای یې وراره احداد ونیولو او ملي مبارزې ته
یې دوام ورکړو او په (۱۶۱۴م) کې یې لوګر کې مرکز وو احداد
هم پېښلو جګړو بابري حکومت ته سخت تاوانونه ورسول آخر په
(۱۶۲۵م) کال کې احداد د تیراه په جنګ کې د هند لښکر و واژه او
سر یې د هند دربار ته ولېږلو په (۱۶۲۷م) کې د احداد ځوی عبدالقادر
د پلار ځای ونیولو او د شاه جهان د لښکرو سره جنګېده په (۱۶۲۸م)
کې عبدالقادر او کمال الدین په پېښور کې سره یو ځای شو او د شاه
جهاني لښکر سره وجنګېدل - په (۱۶۳۶م) کې عبدالقادر د شاه جهان
د حاکم سعید خان په واسطه خپله مبارزه پرېښوده او د هند -
دربار ته ولېږل شو - او په (۱۶۳۶م) کې مړ شو او کریمداد یې جانشین شو
خو د شاجهان فوځونو هغه ونیولو او په پېښور کې اعدام کړی شو او د دې -
روښاني کورنۍ (۶۰) کلن جنګ جګړې او ملي مبارزې هم د لته ختم
شوې او د دې کورنۍ څوک یې باقي نه شو خو په (۱۶۶۶م) کال کې
اخند چالاک خټک او ملک باکو خان یوسفزی راپیدا شو او بیا یې
د ملي آزادۍ بیرغ پورته کړو خو د اورنګ زیب لښکرو هغوی تیت
کړه او ورځل شو - خو وروسته ایمل خان مومند او دریاخان افریدی

راپیداشوچې داورنګ زیب د صوبدار محمد امین لښکرې په خیبرکې په (۱۶۶۸م)، کې مات کړو او مړشوې ترې ولجه کړه او حتی د محمد امین ښځه او مور او کډې یې هم بندیانې شوې چې بیا په حفاظت ورته واستولې شوې - او پښتنو د خپلې عزت او شرف وساتلو اخر د هغه د امپراطورۍ سره په مسلسلو جنګونو کې چې ډېره موده یې ونیوه او ایمل خان مومند په کرپه او نخاپخ کې په (۱۶۶۸)، او (۱۶۶۷م)، کې جسونت سینګ او شجاعت خان هندي سپه سالارانو ته ماتې ورکړې او و بېې ورغې په ننګرهار کې د مغلي فوځونو سره ونښت ایمل خان یواځې پښتو مشروو چې د کنړ د صافو یوې پښتنې میرمنې ته مغلي فوځونو چې سپک نظر کړی وو او ایمل خان په دغه غیرت راپاڅېده او نور شینواري او افریدي په تېره دریاخان، ادم خېل افریدی هم د ځان ملګري کړي وو او د محمد امین د میرجله د ځوی چې کابل کې صوبدار وو او په هغه خوا روان وو په خیبر کې راحصار کړو او ډېره مرګ شوله یې پکې وکړه او د محمد امین کډې هم بندیانې پاتې شوې او بیا یې ورته واپس واستولې آخر ایمل خان مومند د شګې په جنګ کې زخمي شو په مایا د مومندو کې مړ شو او په چنګنو رادیره کې ښخ کړی شو او دریاخان افریدی د تیرا د راجګل په جنګ کې زخمي شو او د

---

(۱) غالباً په (۱۶۷۰م)، کې مړ دی او دریاخان هم په هم دغه وخت کې مړ دی.

افغانستان خوست ته یوړ شو او هلته مړ او ښخ کړی شو. خوشحال خان ختک د دوی د توري او قلم خاوند ملګری یوازې پاتې شو هغه هم د خپلو خلکو او خپلو خاصو نه په تنګ شو او د افریدو د مېږي ترلاړ او هلته په (۱۶۹۱م)، کې ناروغه او مړ شو او په اکوړي کې ښخ کړی شو د ۸۷ کاله عمر کړی وو او د شرقي خوا د پښتنو د هند د بابري حکومت په مقابل کې چې د (۱۶) قرن د اوایلو نه مبارزه پیل شوې وه د (۱۷) قرن د اوایلو پورې وچلېده او آخر دا ملي مبارزه د ځینو مذهبي تبلیغاتو او علماؤ له خوا چې ویلې د مسلمان بادشاه په مقابل کې جنګ کول ګناه ده.. غلې شوه ؛

د خوشحال خان په باب خو پښتنو لیکوالو ډېرڅه لیکلي دي او د ایمل خان په باب او دریاخان په باب مادوه رسالې لیکلي چې د ایمل خان په نوم رساله په کابل کې چاپ شوې ده او د دریاخان په نوم لا قلمي شته دی. دا د پښتنو ملي مبارزه د (۱۶) قرن نه د اوایلو نه واخله تر (۱۷) قرن نیمایي نه هم وروسته چلېده. او د هند مغلي حکومت تر ېې تر پوزې راغی.

# د افغانستان په جنوبي خواکي

## د هوتکو غلجو پښتنو مبارزه او د صفوی

## د هوتکي دولت تأسیس

د ایران صفوي دولت او د صفوي سختګیرو حاکمانو د قندهار د ولس خلك ډېر په تنګ کړي وو او په خپلو منځو کې به يې بې اتفاقه کول او د زور او جبر حکومت به يې پرې کولو دلته دوه لوېې ډلې او قبيلې پښتانه لکه غلجي او دُراني استوګن وې او هريوه دعوه لرله چې په دې منطقه کې زما د قوم خاني ده. صفوي دولت ته هم دا ښه موقع په لاس ورغلې وه او دواړه خوا به يې د خپلو غرضونو د پاره جنګول او ګټه به يې دوی ته راجع وه سلطان ملخي د غلجو د پخوانو د مغلي دولت نه يې د خانۍ او مشرۍ فرمان اخيستی وو او په لاس کې يې وو چې ان تر (۱۹) قرنه پورې د مغلي اورنګ باد شاه اعزازي فرمان چې د مشرۍ تمسك وو د غه کورنۍ په لاس کې درلود او هم غسې د ايران صفوي دولت هم په ايدالیانو

کې ملک حُسین خان او شیرخان دوه تنو خانانو د ارغستان او تنهو صفا ته فرمانونه ورکړي وو ملک حُسین خان ته صفویانو منشور او د میرزا لقب او آسونه او عنبر ورکړي شوي وو او هغه بل ابدالي شیرخان ته د هند بابري دولت د شهزاده ګړیه خطاب او انعامونه او اکرامونه ورکړه او د واړو یې دیوبل مخالفت ته جوړ کړه او دیوبل سره به یې ضدیت او مخالفت کوله دا جریان لا روان وو چې د ایران بادشاه په (۱۶۹۴م) کې مړ شو او په ځای یې شاه حُسین صفوي بادشاه شو شاه حُسین صفوي یو تن ګرګین خان ګرجي چې صفویانو مسلمان کړی وو او په ایران کې به یې ورانکارۍ کولې را وغوښت او قندهار ته یې د حاکم په حیث مقرر کړو او قندهار ته یې زلزلو ګرګین چنل یو قوي ګرجي ګارډ هم درلودلو او (۲۰) زره ایراني عسکر هم ورکړه شو قندهار ته راغی او په ډېر شدت او سختۍ پرې حکومت کولو پیل وکړو او دلته دی وپوهېده چې د هند بابري حکومت دومره ضعیف شوی دی چې دلته د موږه سره رقابت نشي کولی او نه ابدالي او غلجي خانان ځان ته جلبولی شي. او نه یې د ایران په ضد جنګولی شي نو د غلجو او ابدالیانو خانانو ته یې توجه نه کوله - دابدالیانو خان د احمد شاه بابا نیکه دولت خان چنل ترېبور - حیات سلطان وځلی او د ملک نه یې د باندې شړلی وو ملتان ته

تللي وو او اوس دی پخپله د ابدالي قبیلي مقتدر خان وو او د صفوي حاکم په مقابل کې به يې د خپلو منافعو دفاع کوله او مقاومت يې ښووډلو، گرگین د ابدالي قبیلي د انقراض او بېلتون او ورکاوي په فکر کې شو او د دې مخالف شو چې پخوانو ایراني حاکمانو خانانو د ابدالي قبیلي خلکو ته بې ځایه مراعاتونه ورکړي دي او خپله توجه يې غلجو ته واړوله او لښکر يې ولېږلو د دولت خان قلعه يې په شهرصفا کې ورانه کړه او دولت خان او د هغه مشر ځوی نذر محمدخان يې بندیان کړه او ويې وژل خو د دولت خان دوه نور ځامن رستم خان او محمدزمان خان د گرگین نه و تښتېدل او ارغستان ته ورغلل او په خپل ځای کېناستل گرگین هم کوشش شروع کړه او غوښتل يې چې دا دواړه ورونه په لاس ورشي۔ د رستم خان سره يې جرگه جوړه کړه چې د پلار خاني او هرڅه به تاته درکړه شي او د هغه په ځای به خان شي خو خپل ورور محمدزمان به موږ ته يرغمل راکړې، رستم خان دا خبره ومنله او خپل ورور محمدزمان خان يې گرگین ته يرغمل ولېږلو او هغه محمدزمان خان زندان ته واستولو ځکه چې گرگین د مازندران، قندهار، کرمان او گرجستان هم حاکم وو څه موده پس گرگین رستم خان مرکز د قندهار ته وغوښت او بندي او اعدام يې کړو او د هغه سر يې ایران ته په نېزه کې ولېږلو او د ارغستان علاقه يې هم تر ځان لاندې

کړه او ټول ابداليان يې د خپلې علاقې نه فرار کړه ځوک شوراوک ته او ځوک فراه ته لاړه خاني پاتې شوه او په مالدارۍ يې پيل وکړ او څه ابداليان هرات ته لاړل او تر اسفزاره خواره واره شو. او ګرګين د ابداليانو په ځای د غلجو سره رابطه قايمه کړه او د غلجو سره به يې ښه ګذاره او روش کولو او په خواپوري ښول او پالل يې ځو غلجيان هم پر هيدلي وو او ورو ورو يې د ايرانيانو د سلطې مخالف شو او په قندهار يې د ايراني صفوي دولت سلطه بده ګڼله او قومي افغاني غيرت يې راويښ شو په دې وخت کې د غلجو په منځ کې يو شخص د سياست ميدان ته راووت چې فطري ذکا او افغاني غيرت او همت يې درلود او هغه سړی ميرويس خان غلجی د شاه عالم خان ځوی وو چې د يو تڼ د غلجو د هوتکو د قبيلې يو لوی خان وو، او په (۱۶۷۲م) کال کې پيدا شوی وو او مور يې (نازو) هم د غلجو د قبيلې د سلطان ملخي ترخي لور وه. د ميرويس خان درې نور ورونه هم وو چې يو مير عبدالعزيز او بل مير يحيی او دريم عبدالقادر وو او دوه يې ځامن مير محمود او مير حسين او د ميرويس خان ښځه د محمود او حسين مور د جعفر خان سدوزي ابدالي لور وه، د پښتنو عمومي پيشه مالداري او زميندارۍ وه خو د ميرويس سره نور فکرونه وو هغه دغه صنعتي پيشه پرېښوده او تجارت ته يې مخه کړه

او قندهار یو تجارتي مرکز وو راغی او په قندهار کې واړول او د
خلکو سره محشور او ګوښه شو او د منځنۍ طبقې د خلکو نه حسابېده - او
د خپلې قبیلې د خلکو سره یې هم د خالص پښتواني روابط ساتل میرویس
خان د بن دې نه د پردو ظلمونه تېرې، تبعیض او کینه د خپلو
وطنوالو سره لیده او په زړه کې به وېر کېده څو وس یې نه وو
میرویس خان ورو ورو حکومت او ګرګین ته ورننوتۍ شو او
د مالیاتو په ټولولو او نورو انتظامي امورو کې به یې ګرګین ته
ښې ګټورې مشورې ورکولې او خپل لیاقت یې ښکاره کړ وګرګین هم
د میرویس د لیاقت او شخصیت نه متاثر شو او دی د قندهار کلانتر
مقرر کړ و چې دا رتبه د بلدیه د ریاست برابره وه، میرویس خان
هم د دې وظیفې په دوران کې د قندهار د خلکو نور اعتماد هم حاصل
کړ او خپل شخصیت یې نور هم ښکاره کړ او د قومي مشرانو او
خانانو سره یې هم تعلقات ښه ساتل! څو د نورو دې نه یې د پردو
ظلمونه او تېرې لیدل او په دې پوه شو چې هغه خلک د خپل لاس
په ټناکو کښلي شته د پردو شل زره عسکرو په تغذیه او تقویه
لګوي او په خان یې ږېږدي د روند هار منلی دی او په دې هم
وپوهېده که چېرته دا قوم یو شي نو دا پردي به بیا واسي بې -
د وده حکومت نشي کولی او بیځله خپل حکومت به جوړ کړي او د
افغانانو د راتلونکو او یو کېدو په فکر کې شو نو د دې مهم کار

دپاره د عمومي منځ ملاحظې او ښه شهرت نه و، ورته يې عمومي اعتماد او
اعتبار هم پکار وو. د قبايلو خانانو لا د مخکې نه دی پېژانده او د ښه
سړيتوب يې قايل وو. د ښار خلکو ته هم د ده د روند خوی او ښه
عادتونه معلوم شو او د خلکو پوره اعتماد او اعتبار پرې راغلی وو
او د ابداليانو ځينې هم وو او د غلجو نه علاوه د صفوي د اعتماد-
وړ هم وو. خلک نور د ګرګين د ظلم او تيري نه ډېر په تنګ شوي
وو. نو ميرويس لومړی د صفوي پادشاه شاه حسين په عنوان د ګرګين
د ظلمونو نه د خلکو د شکوې يوه عريضه ترتيب او وليکله او ورو
يې ليږله خو د ايران دربار د ومره اغراضو او ماده پرستيو ړوند
او کوڼ کړی وو چې نه يې داسې عرايض او د خلکو اورېدی
او نه ليدی شو. په ځای د غوږ سره ميرويس او نور مشران چې په
عريضه يې دستخطونه کړي وو بنديان ايران ته وغوښتل او د
حکومت په ضد تورن و بلودل شو. ګرګين وقارېد او نور يې هم
ظلمونه پيل کړه او په غلجيانو يې نور زياتی راواخيست. ابداليان
خو د پخوانه لا څوک فرار او بې ځايه او څوک بندي او رټلي او
د ګلي او خفه وو. ميرويس هم د نژدې نه په اصفهان کې د شاهي
دربار د فسادونو ننداره وکړه او په دې ښه وپوهېده چې د
داسې يو فاسد دربار او ګنده نظام لرې کول څه ډېر ګران کار
نه دی. نو اراده يې نوره هم قوي شوه او د شاهي دربار او اعتماد الدوله

سره یې رابطه پیداکړه او ټوله ګناه او تور یې بې ځایه ثابت کړه او
د بادشاه نه یې د حج د ادا اجازه وغوښتله او د اکار وشو!!
میرویس په دې پوهېده چې د افغانانو په منځ کې یو ټپل نفاق او
بل د ملایانو نفوذ دی چې د حکومت په لاس کې دی که څوک د
ټپلې آزادۍ غږ پورته کړي د وی ملایان ورته وایي چې د یو
اسلامي دولت په خلاف پاڅون ګناه ده خلک نه پوهیږي او د دوی
خبره د دین خبره ګڼي نو میرویس د حج د فریضې په دوران کې
د دې کوشش هم وکړ چې د اسلامي مرکز د علماؤ نه د دې فتوا
واخلي چې د ظالم بادشاه په مقابل کې پاڅون جهاد او ثواب دی
او دا فتوا یې حاصله کړه. شو د حج نه پس بېرته اصفهان ته
راغی په دې وخت کې د روس د تزاري حکومت نوی سفیر یو -
ارمني د «اسرائیل» په نوم مقرر شوی وو او دا ډېر مالدار شخص
وو او موده یې په روسیه، فرانسه او جرمني کې تجارت کړی
وو او ډېر شتمن وو او آوازه وه چې دا سړی د روس په سازش
غواړي چې د ارمنستان په ایراني برخه کې ټپل حکومت جوړ کړي-
د دې ارمني وو او ګرګین هم ارمنی وو نو حکومت د ګرګین په ډېر
رسوخ هم بې اعتباره شوی وو او د هغه مخالف شکی بس میرویس
خان وو حکومت میرویس خان بېرته د قندهار په کلانترۍ مقرر
کړ او د غلجو د خانۍ تصدیق هم د دربار نه ورکړه شو او وطن

ته راستون شو په لاره کې یې خلک او ملایان د حکومت او د حجاز د علماؤ د فتوو نه خبرول او اکثر خلکو ورسره فکري اتحاد وکړو او د عملي اقدام وعدې هم ورکړې میرویس قندهار ته راغی او پخپل کار مصروف شو په ظاهره خو یې ګرګین ته اطاعت کولو خو په پټه د خلکو سره په تماس او جرګو مرکو لګیا وو چې څنګه ملي آزادي ترلاسه کړی شي، خو په قندهار د ګرګین قوه او عسکري زور مسلط وو ددې د پاره تدبیر وشو چې دا عسکري قوه د ښار نه په څه بهانه لرې شي، کار داسې وشو چې یو تن بلوڅ مشر د مالیه د ورکړې نه انکار وکړو او ګرګین ورپسې لښکر ور واستولو چې بلوڅان ووهي او د تېرې مالیه راټوله کړي له بل پلوه د ارغستان کاوګانو هم د مالیې د ورکړې نه انکار وکړو او ګرګین په دې لا په قهر شو او پخپله د پاتې لښکر سره هغه خوا ورغی او د ښار نه ووت او د هغو په ټپولو، وهلو او کړولو بوخت شو. په دې وخت کې میرویس ور ته پخپل باغ «ده شیخ» د ارغستان کې یوه میلمستیا ګرګین ته ورکړه او میلمه ئې کړو او خلک یې ور ته تیار کړي وو ګرګین په میلمستیا کې ډېر شراب څکلي او بې خوده پروت وو، خلکو د میرویس په حکم په هغه حمله وکړه او ګرګین او نور فوځیان یې ټول ووژل او وسلې ترې واخیستلې او د درې زره لښکر او سره د میرویس خان د-

قندهار ښار ته ور روان شو او ورځی دروازه وانانو په دې چې ګوندې د ګرګين سوړلۍ را ورسېده دروازې یې لرې کړې او د میرویس خان لښکر ښار ته داخل شو او څه پردي لښکر او د ګرګين کومکيان چې وو هغه یې د ښېرې نه وشړل او د خپل ملي آزاد حکومت اعلان یې په کال (۱۷۰۹م)، کې وکړو او د ولس ټول خلک غلجي، دُراني، تاجک، وزبک، هزاره او بلوڅ ټول پرې راټول شو او ټول يو خوله او يو لاس شو او په يو صف کې د پردو په مقابل کې ودرېدل.

# په قندهار کې د هوتکو دولت

## د ۱۷۰۹م نه تر ۱۷۳۸م پورې

د قندهار هوتکي دولت د افغانستان د مکملې آزادۍ لومړی - زېری وو څو د ټول افغانستان په راټولېدو کې ډېر مشکلات وو په غرب کې سيستان، فراه، مرو، نيشاپور، هرات او مشهد باندې پردي ايراني لښکرې وې، شمال خوا ډېر لرې او په منځ کې ډېر موانع وو او په شرقي خوا د هند بابري دولت آن تر غزني پورې مسلط وو په لومړۍ مرحله کې ميرويس خان يواځې د قندهار په

آزادی او خپلواکي او ودانۍ او انتظام اکتفا وکړه او خپل ځان
یې هم د باد شاه په نوم معرفي نکړ او هم هغسې د نورو مشرانو
په شان یو ملي مشر وو خو خلکو ورته د ډېر احترام درلود لوا و
د حاجي میرخان په نوم یې دی ملي مشرمانه او هغه یې کوله
میرویس خان د قندهار د ښار انتظام وکړ او قومي داوطلب
لښکر یې راټول کړ او د ایراني حملې د مخنیوی د پاره یې ځان
برابر کړه او د ټولو نه مخکې د ګرګین په هغه برخه فوځ پسې لښکر
ولېږلو چې مخکې میري ته د بلوڅو د وهلو د پاره لېږل شوی وو
د ګرګین لښکر هم د ګرګین د واقعې نه خبر شوی وو او د ښېرو په
وېسترو وو او روان وو خو په مخه د میرویس خان لښکر ورغی
او راګیر کړ خو ایراني لښکر د ګرشک خواته هغه وکړه خو -
افغانانو پرې نښودل او اکثره لښکریان یې ووژل شو او صرف (۱۶)
تنه ایله په خوارو اصفهان ته ورسېدل او ایراني مرکزی حکومت
یې د ګرګین د انجام نه خبر کړ خو ایراني حکومت چې تر څو ځان -
جوړاوه میرویس خان خپل ځان او خپلې قواوې ښې سمبال کړې
وې او خلک یې ترشا ښه په کلکه ولاړ وو میرویس خان
پرلیک په دې وخت کې د هند بابري دولت ته ولیکلو او د -
قندهار د خلکو د اقداماتو او پاڅون نه یې خبر ورکړ او ورته
یې لیکلي وو چې د دې ځای خلک د ایراني فوځونو د اقداماتو

کتونکی دی نو ستاسي پاملرنه هم غواړي.

او بل یې دا سپېداو ول لیک یې صفوي دولت ته ولیکل چې زه دخپلو زمکو دلیدو دپاره هغه خواته تللی وم خو خلک دگرگین د ظلمونو نه ډېر په تنگ شوي وو د هغه برخلاف یې پاڅون وکړو او دغسې واقعات منځ ته راغله چې تاسې به ترې خبر یاستی خو مرکزي حکومت او دربار دې د مغرضینو خبرې نه اوري او څه حوصله دې وکړي دا مسئله حل کېدونکې ده او زر به امنیت قایم شي انشاءالله ـ

خو د میرویس خان دغسې خبرو د ایران حکومت کله قانع کولی شو؟ خو د ایران د حکومت فوري اقدامات څه څنډ کېږی شو او د قندهار سره یې لومړی د خبرو په واسطه په علیاقلی‌لاس پورې کړو. نو قندهار ته یې یو تن جانی خان نومی قندهار ته ولېږلو چې د قندهار وضعی نه ایران بنه خبر شي - جاني خان میرویس خان ته په مذاکره کې ښکاره کړه که افغانان ایراني فوځونه په قندهار بنار کې ومني نو ایراني دولت به دگرگین دوړنې او دلښکر د تاواني کېدو نه تېر شي خودا د افغانانو د ملو ور خبره نه وه میرویس خان ـ جاني خان څه وخت په خبرو اترو تال کې وخوړي ونشوه او هغه تلل غوښتل نو بندي کړه چې د ایراني فوځي حرکات نور هم معطل شوا فغانانو د قندهار قلعه بنه کلکه کړه او وسلې او خوراکي شیان یې هلته بنه راټول کړه او میرویس خان پوره واوه شو-د ایران د دولت استازی چې څنډ

شو او پته یې و نه لګېده نو صفوي ایراني دولت مشوش شو او د
عسکري اقداماتو په لټه کې شو او په دغه حال کې لس زره لښکرې
په (۱۷۱۰م) کې د محمد خان د هرات د والي په مشرۍ کې قندهار ته ولېږلو
محمد خان د میرویس خان ذاتي دوست او د حج د سفر ملګری هم و. و
محمد خان هم یو استازی میرویس خان ته راولېږلو او د شاه ایران
هغه پخوانۍ خبرې راوړې وې چې پکې ویلي شوي و چې ایراني
فوځونه که افغانان په قندهار کې په قرار چه پرېږدي نو ایراني
دولت به د قندهار حکومت میرویس خان ته ورکړي خو میرویس
خان د دې خبرو په پس منظر پوهېده ـ هغه د محمد خان استازی
هم بندي کړ. نو محمد خان ته حکم و. چې هغه قندهار ته چټل فوځونه
رامخ کې کړو او د حملې په نیت راروان شو میرویس خان هم د (۵)
پنځه زره منوي لښکره سره مخې ته ورغی که څه هم چې په فوځي
مشقونو بلد نه و. خو په جنګ کولو کې د لوړو معنویاتو خاوندان
وو چې کله فوځونه مخامخ شو نو افغانانو ټینګ نه شوا و
پیاده و او سواره په ایراني لښکر یرغل وکړ او د هغه منځ یې
وواهه او ایراني لښکر په ماتې سر شو او چټل مشر محمد خان او یو
زر تنه مړي یې په میدان کې پرېښودل، د ایران حکومت چې د دې
ماتې نه خبر شو نو (۳۰) دېرش زره لښکرې د ایراني او ګرجي افرادو
نه تشکیل کړو او د ګرګین د ورور خسرو خان ګرجي په مشرۍ کې

یې قندهار ته په (۱۷۱۱م) کال کې راولېږلو - دا لښکر د هلمند سره
د میرویس خان د مدافع لښکرو سره مخامخ شو نو د میرویس خان
لښکر دومره نه وو چې د ایراني لښکر مقابله یې کړې وای نو مجبوراً
وروسته شو او د قندهار د ښار تعبیه وکړه او د خسرو خان لښکر
یې پرېښودو چې مخکې ورشي، خسرو خان د راتګ په لاره په کرمان
کې محمد زمان خان ابدالي چې هلته د پخوانه د ایراني حکومت یرغمل
وو راضي کړو او د ابدالیانو په مشرکه ومانه او د خان سره یې
قندهار ته راوستلو خو غلجو مشرانو لا پخوا عبدالله خان د حیات
سلطان ابدالي ځوی چې په ملتان کې وو د ابدالیانو د مشرۍ -
د پاره رابللی وو او هغه د غلجو سره د ابدالي مشر په حیث موجود
وو او صلا او مشوره یې ورسره وه - زمان خان هم د خپلو ګټو نه
د تمام ګټې منې ګڼلې او د عبدالله خان سره یو ځای شو او تېرې جوړې
او ترېګونه پرېښودل - خسرو چې د ابدالیانو نه نا اُمیده شو
نو قندهار یې محاصره کړو خو خلکو د ښار نه منه په مېړانه مدافعه
کوله میرویس خان د ښار نه د باندې وو او خلک یې راټولول او
د لېږ به یې ترې جوړولې ترڅو چې د لښکر د تګ راتګ او خوراک
لارې یې وتړلې - خسرو خان چې دا حال ولید نو څو ځلې جنګ ته یې
زور ورکړو او میرویس خان د شاته د (۱٦) زره لښکر سره پرې
راغی نو د ایراني لښکر پښه ونښوېدله او په تېښته شو خو د ولسونو

خلک هم په ځان ورته ناست وو چې څوک به پلاس ورغلل وسلې به یې ترې اخیستې او دغه به یې وژل ایله په خوار و څو سوو تنو ایراني ولس ته خلاص شو په دې کال (۱۷۱۲م) کې افغانانو بنه- گټه وکړه او قندهار بنه کلک شو خو په (۱۷۱۳م) کې د ایران بل لښکر د کرمان نه د محمد زمان خان په مشرۍ قندهار ته راولیږل شو خو دغه لښکر په لاره کې د ولس خلکو تالا والا کړو- میرویس خان د فراه او د ایراني بریدونو نه واخله د قلات او مقر پورې افغاني ولس ټول ملي مشر او رئیس و او په احترام ورمانه خود بده مرغه دده ارمانونه لا پوره نه وو چې په (۱۷۱۵م) کې د (۴۱) کالو په عمر کې یې د دې دنیا نه سترگې پټې کړې او وفات شو او د قندهار په کوکران کې ښخ کړې شو- د میرویس خان د مرگ نه پس قوي (۴۰) ځلو بنت تنې جرگې د میرویس خان د خدمتونو په اثر د هغه ورور عبدالعزیز خان ټول مشر وټاکلو- ځکه چې د میرویس خان ځامن محمود (۱۸) کلن او حسین یې (۱۴) کلن وو، خو عبدالعزیز خان د دې قیادت او مشرۍ اهلیت نه درلود او په اول کې ترې عبدالله خان د حیات سلطان ځوی او محمد زمان د دولت خان ځوی ابدالیان بېل شول او د خپلې قبیلې سره د قندهار نه ووتل او هرات او فراه او اسفزار ته چې د مملکت د غربي حصې او برخې گڼل کېدې لاړل- د غسې منوړو مشرانو سره هم د بېلتون فکر پیدا شو او میر عبدالعزیز

د میرویس خان په شان د قوي ارادې او لوی عزم خاوندخو نه وو هغه سړی هم د وطني مشرانو او ښیوالانو نه ویره پیداشوه او د هرچا د مشورې نه په غیر یې د صفوي دولت سره خبرې پیل کړې او د ایران د دولت نه یې غوښتي ووچې عسکر دې قندهارته نه رالیږي او مالیه دې نه غواړي او نور دې د کورنۍ حکومت دی - موږ وایو تصدیق کړي شوه به ایراني حکومت ومني ، نو خلکو ته چې د میرعبدالعزیز داسې خبرې افشا او ښکاره شوې نو ټولو خلکو، خانانو مشرانو او د میرویس خان کورنۍ پرې پاڅون وکړو او د مخالفینو په سر کې میرمحمود د میرویس خان ځوی وو او اله ګوله جوړه شوه او میرعبد العزیز ووژل شو د عبدالعزیز د حکومت یوکال لا نه وو پوره شوی چې په افغانانو کې دا درز پیښ شو او غلجیان هم دوه ډلې شو خو جرګې بیا غونډه وکړه او د ۱۹ کلن محمود یې د شاه محمود په نوم د عبدالعزیز په ځای انتخاب کړو او د میرعبدالعزیز ځوی اشرف چه وروسته شاه اشرف شو هم په دې جرګه او دې بیعت کې شامل وو.

# د شاه محمود سلطنت

## د (۱۷۱۶م) نه تر (۱۷۲۵م) پورې

ځنګه چې شاه محمود په قندهار کې بادشاه کېده نو په هرات عبدالله خان ابدالي حمله وکړه د ایرانیانو نه يې د هرات حکومت هلته رالاندې کړو او د ملي استقلال اعلان يې وکړو او د هغه يو ځوی اسدالله نومېده د هغه خوا وشا علاقه هم د ایراني فوځ نه پاکه کړه خو دې به تجربه نه لري وو په دغه يې صبر ونکړو او په فراه يې هم لښکر وکړه او د غلجو نه يې د فراه حکومت هم ونیولو او د دې حرکت نه زوړه پخوانۍ د ابدالیانو او غلجیانو ورک مخالفت بیا پیدا شو چې د دا افغانانو د دې ملي نهضت او حرکت د پاره ضرور ضرر او مضر وو د ا او میرویس خان په خپله عقلمندۍ وژلی وو. د اسدالله دې مندۍ غلجیان هم راوپارول او شاه محمود هم فراه ته لښکر وکړه او په دلارام کې د دې دواړو لښکرو په مخامخ کېدو جنګ جوړ شو او اسدالله په کې ووژل شو او لښکر يې مات شو او د ابدالیانو مړی د هرات حکومت هم متزلزل شو او عبدالله خان هم د هرات د حکومت نه استعفا وکړه او د هرات حکومت به کله د یو خان

او کله د بل خان په لاس کې وو، د فراه د لښکر په وخت کې د سیستان خلک هم شاه محمود ته راغلل او د هغه تابعیت یې ومانه او د هر رنګه مرستې وعده یې ورکړه.

# د ایران لاندې کول د (۱۷۲۱ م) نه تر (۱۷۲۹ م) پورې

شاه محمود د خپل نوي حکومت او انتظام او کورجوړولو په ځای پر پښو دوه او د ایران د صفوي دولت سره پنجې ورکولو ته په پام شو ځکه چې د ایران خلک په دغه وخت کې د صفوي دولت نه پوزې ته راغلي وو او د هغه حکومت ډیر فاسد او ګنده شوی وو او خلک ترې بېزاره وو چې وهل یې څه ګران کار نه وو!! او بل په دې وخت کې د پښتنو افغانو مخه هم د خپل منځي اختلافاتو نه بل پلو ګرځول پکار وو!! چې پخپلو منځو کې چې جګړې کوي د دې په ځای دې باید د پردو سره مخامخ شي ایرانیان هم په دې وخت کې خوځېدلي وو او اې ګوې وې ((لزګیانو)) په شیراز کې یاخوت کړی وو او بنارې نیولی وو او په کال (۱۷۲۰ م) کې لورستان هم بغاوت کړی وو او آن د کردستانه پورې یې اغېزه کړې وه

او بلوڅانو هم شورش کړی وو او بندر عباس یې په (۱۷۲۱م) کې نیولی وو. شاه محمود هم افغانانان د خپلو کورنیو جګړو نه د ایران سره د ایران سره جنګ ته ورمخ کړه او خپل ورور حسین یې په قندهار کې پرېښود او اشرف د تره ځوی ورسره وو شاه محمود په لومړۍ حمله کې (۱۷۲۰م) کې کرمان قلعه بند کړو خو صفوي دولت مقاومت وکړو او محاصره اوږده شوه او د صفوي دولت وزیر کومک هم چې د لطف علي خان په مشرۍ کرمان ته را ولېږلو او د قندهار نه هم د ځینو ورا تعاتو خبر شاه محمود ته راغی لکه د سلطان بېچین لکزي، فراهي پاڅون هم په قندهار کې یې د ملك جعفر سیستاني سره هم جوړ جاړ کړی وو چې هغه به د بند نه خلاص کړي او د ځان ملګری به یې کړي. شاه محمود دې خبرو مشوش کړو او د کرمان قلعه بندي یې پرېښوده او بېرته وطن ته راستون شو خو دی چې تر څو راتللو خلك راپاڅېدلي وو او د بېچین او ملك جعفر کار یې خلاص کړی وو او صفوی وژلي وو او شورش یې ورك کړی وو. شاه محمود په (۱۷۲۱م) کې بیا د افغانانو پښتنو ازبکو هزاره تاجکو او نورو قومونو نه (۲۸) زره لښکر جوړ کړو چې یوه زمبورکه توپه هم ورسره وه چې په اوښ به بارېده او تر (۴۰۰) متره پورې غښته به یې ویشتلی شوه. شاه محمود د کرمان په لار په ایران بیا ورغی او کرمان یې لاندې کړو او ورپسې

یې اصفهان ته مخه کړه که څه هم د ایران خلک د صفوي دولت نه په تنګ وو او د کار سري چې څوک وو فتح علي خان او لطف علي خان څوک یې رانده کړي وو او څوک بندیان وو او د ولس د خلکو د صفوي دولت سره هیڅ علاقه نه وه او په وړکاوي پسې یې وو هو! په اصفهان کې (۵۰) زره عسکري قوه موجوده وه چې ښه قوي توپخانه یې هم درلوده - شاه محمود د کرمان نه اصفهان ته ورمخکې شو او بې جنګ جګړې د اصفهان (۱۰) میلی «ګلنا آباد» ته ورسېد شاه حسین صفوي د ټول ایراني قوم بې علاقه ګي چې ولیده د ټول صدراعظم محمد قلي خان سره یې صلا وکړه او خپله کمزوري یې ولیده او په صلا د شاه محمود سره خبرو ته جوړ شو او شاه محمود ته یې د صلحې پیشنهاد وکړه ورته وې ویلې چې شرط به داوي چې شاه محمود ته به (۲۷) زره طلا ورکړی شي او دی دې بېرته وګرځي خو شاه محمود ونه منله او پیشنهاد یې وکړ چې صلحه پدې ټکو کېدی شي چې :-

اول :- د خراسان ټوله علاقه چې د افغانستان د طبیعي - خاورې جُز دی افغانستان ته پرېښودلی شي .

دویم :- صفوي شاه دې د خپلې کورنۍ یوه پېغله سره د (۱۲۵) زره طلا جهیزه سره شاه محمود ته ورکړي -

په دې شرائطو د ایران دربار متردد وو چې څه وکړي؟ په

دې کې د خراسان حاکم عبدالله خان مخالفت وکړ او جنګ ته یې د پادشاه توجه وګرځوله او د جنګ بندوبست وشو او د اصفهان نه (۵۰) زره عسکر سره د (۲۴) توپونو او نور د شاه محمود مقابلې ته راووته. دا ډېر سخت جنګ وو او د ایران توپخانې د افغانانو لښکر ډېر تاوانې کړ او عبدالله خان د خراسان والي هم په جنګ وکړ او څېنې افغانانو یې بندیان هم کړه خو امان الله خان افغان افسر د سور وحمله وکړه او په توپخانه واوښتل سره د دې چې ډېر افغانان ووژل شوخو توپخانه یې رالاندې کړه او اوس د دغه توپخانې او توپکو مخه ایرانې فوځ ته شوه او د ایران د لښکر تاوان لږ ډېر (۲۵) زره تنو ته ورسېد چې سید احمد خان د توپخانې قوماندان او د شاهي غلامانو قوماندان رستم خان هم په دې مرو کې وو او د ایران لښکر ماتې وکړه او افغانانو د خپلو سپلاو سره وروسته ورپسې وو چې ترڅو په اصفهان ننوتل او دوه زره قاریدلي وو چې افغاني بندیان قتل کړي ووژل. چې په افغاني بندیانو کې د شاه محمود د کورنۍ هم درې تنه خپلوان وو، دا نامردانه اقدام د دې سبب شو چې ایراني بندیان هم افغانانو ووژل او د دواړو فرقو او پادشاهانو دښمنۍ یې نوره هم ډېره کړه او ایراني لښکر د پادشاه شاه حسین او کورنۍ یې چې د خلکو د کومک او مرستې نه محروم وو په ښار کې محصور پاتې شو او افغاني

لښکرو ښار له هرې خوا محصور کړو او هیڅوک یې تګ راتګ ته نه
پرېښودل او خوراک څښاک په ایراني لښکر له د باندې نه ورول
شو او څومره چې محاصره اوږده پېدله د ښار خلک نور هم نااُمیده
کېدل او اخر اووه میاشتې پس ایراني لښکر او بادشاه په تنګ
شو او شاه حسین ته تسلیمېدو ته جوړ شو او په (۱۷۲۲م) کې
شاه حسین پخپله سره د دربار د مشرانو د شاه محمود هوتک افغان
اردو ته ورغی، شاه محمود د مات شوي بادشاه احترام او
استقبال د پاره ور پاځېده او مخې ته ورغی او دواړه په یو تخت
کېناستل افغان بادشاه په دغه وخت کې (۲۵) کلن وو او صفوي
شاه حسین پوخ سړی وو او (۳۰) کاله خو یې سلطنت کړی وو
افغان شاه ورته د پلار خطاب وکړو او ویې ویل چې دنیا
دغسې بې وفاده کله دیوچا سره او کله د بل چا سره وي او د کې
ټولو چارو واک د خدای جل جلاله په لاس کې دی چې چاته یې ورکوي
هغه مختار دی - زه به کوشش کوم چې ټولې چارې ستا په صلا
او مشوره پوره کړم او ستا د رضا نه به چپ (نه)، کار نه کوم
شاه ایران د دې په ځواب کې چېل شاهي تاج شاه محمود ته په سر
کړو او مبارکي یې ور کړه - بله ورځ شاه محمود اصفهان ته
ورغی او خزانې او وسلې یې رالاندې کړې او ځای او معاش
یې د شاهي کورنۍ دپاره ومنودلو، شاه محمود چې اصفهان ...

لاندې کړو نو نور د افغانستان پایتخت یې پرېښود او اصفهان یې خپل مرکز او پایتخت اعلان کړو او شاه حسین خپل ورور یې چې ورسره وو هغه یې د قندهار د حکومت کولو ته مامور کړ او ور ویې پرېښو ، افغان مشران وایي د شاه محمود سره په ایران کې حاضر وو نو شاه حسین ته د قندهار په حکومت کې څه خاص مشکلات نه وو او ښه په خاطرجمعۍ یې حکومت کولو او پخپله شاعر او لیکوال هم وو ، په دغه وخت کې د پښتو ادب د پاره شاه حسین ډېر کار هم وکړو چې اثار یې شته [illegible] ویلی شي چې «پټه خزانه» هم [illegible] په وخت کې محمد هوتک لیکلې وه . چې بیا [illegible] استاد حبیبي را پیدا کړه او د پښتو په ادبي تاریخ کې [illegible] ډېر موثر کتاب دی او ډېر معلومات [illegible] شاه حسین د لیکوالو او علماوو ډېر قدردان هم وو .

شاه محمود په ایران کې ډېر معقول حکومت پیل کړ [illegible] فوځ ته یې حکم وکړو چې دیو فاتح فوځ په حیث [illegible] په مال او ځان تېری او تجاوز نه کوي خو د ایران شهزاده او ولیعهد طهماسپ میرزا لاړ او په شمال د ایران کې په قزوین کې حاکم شو او ملت یې ځای او مقر وینوه او د ترکیه دولت او د روس دولت هم د افغاني دولت د دې دومره لوی فتحې نه وېرېدلو او د طهماسپ میرزا کومک یې کولو او د ایران نور والان هم

پخپلو ښتو او مال دولت و وېرېدل او ګمان يې کولو چې افغان حکومت
به له دوی نه قول شته ضبط کړي نو له دې وېرې نه يې لښکرې
ترلېږلې او د طهماسپ ميرزا مرسته او کومک يې کولو۔ شاه محمود
د مملکت چارې ډېرې ښې اداره کولې او امن او امان يې قايم کړ
او سوداګرو ته يې هرڅوک چې وو تجارتي تسهيلات يې پيدا کړه
او ايراني افسران او کاروداران يې پخپلو کارو بېرته مقرر کړه
او وېې تاکل او د تېر حکومت خاينانو ته يې هم سزاوې ورکړې
خو افغان هرڅنګه چې شاه محمود ته ډېر مشکلات په مخکې وو۔
ميرزا طهماسپ په قزوين کې د ځان سلطنت اعلان وکړ او سره
ددې چې کړنه يې د شاه محمود پلاس کې وه ميرزا طهماسپ
د اذربايجان خواته لښکر روان کړ په دې وخت کې د ډېر
مصروفيت له کبله د شاه محمود په صحت او اعصابو هم اثر پرېوت
که څه هم چې د طهماسپ لښکرې يې په شاکړې او طهماسپ ميرزا
د روس او عثماني دولتونو نه کومک وغوښت او په عوض کې
يې د ايراني مملکت شمالي او څه غربي برخې هغوی ته پېشکش کړې
په دغه وخت کې د روس بادشاه پطر کبير د رومانوف د سلسلې
نه ؤ او ددې سلطنت د ۱۶۸۹م نه تر ۱۷۲۵م کاله پورې وو او هم
دده په وخت کې لويه روسيه تشکيل شوې ده - او روس د دنيا
د لويو دولتونو په ډله کې ودرېدلی دی.

په دې وخت کې د قزوین خلکو پاڅون وکړو او د شپې په افغاني لښکر راغلل او ډېر مرګ ژوبله يې په افغاني لښکرکې وکړه دې واقعې د شاه محمود ناروغي هم ډېره کړه او اعصاب يې نور هم ډېر خراب شو او په هر چا بدګمانه هم شو او ده ته ډېر نږدې اشرف هوتک د میر عبدالعزیز ځوی او امان الله هم د شاه محمود نه ووېرېدل او وتښتېدل او قندهار ته لاړل - خو شاه محمود بیا ورته ولیکل چې دا مړانه نه ده چې ما یوازې د ایرانیانو په - مقابل کې پرېږدئ راشئ او خپله برخه خدمت وکړئ، اشرف او امان الله په دې اثر د څه لښکرو سره بېرته ایران ته راغلل او شاه محمود اشرف د افغاني لښکر سپه سالار وټاکلو- او اشرف په لښکرکې هم ګرانښت درلود.

د (۱۷۲۸م)، نه د شاه محمود عصبیت او ناروغي نوره هم ډېره شوه او د خلکو نه يې ځانله (منزوي)، شو او په یوه توره کوټه کې يې ځان بندي کړو، دوه میاشتې پس چې د کوټې نه راووت د پېژاندګلونه وتلی وو- او دومره هیجاني شوی وو چې د خبرې توان پکې نه وو او د افغاني لښکر او مشرانو د وژلو نه چې ایرانیانو کړی وو خبر شونو د باد شاه د کورنۍ ځینې خلک يې ووژل او په خپله شاه حسین صفوي او دوه واړه ځامن يې ژوندي وو او څه وخت چې شاه محمود هغه ولید په خوړ شو او پخپلو کړو پښېمانه شو خو بیا يې

د پښېمانۍ څه ګټه وه؟

د شاه محمود ناروغي نوره هم پسې وه پړسېدله او اخر فلج د (ګوزڼ) مرض پرې راغی او فلج شو او په کټ پرېوت او په کال (۱۷۲۵م) کې چې د پطرکبیر روسي د مرګ کال وو شاه محمود (۲۸) کلن افغان بادشاه مړ شو او څوک وایي چې اشرف د خپل پلار د وژنې په انتقام کې وواژه - او دا افواه په قندهار کې هغه وخت خوره شوه چې میرحسین د شاه محمود ورور د هغه مړه بادشاه ورور فاتحه اخیسته او وې ویل چې زما ورور اشرف د خپل پلار عبدالعزیز په بدل کې وواژه، همدغه وخت (۱۷۲۵م) کې میرحسین په قندهار کې د خپلې بادشاهۍ اعلان هم وکړ او غلجیان دوه ډلې شو او قندهار د ایران نه بېل شو او په نتیجه کې غلجي دولت د ایران نه لاس په سر شو د شاه محمود د مرګ نه پس په ایران کې د افغاني مشرانو جرګه کېناسته او پرېکړه یې وکړه او اشرف سپه سالار یې خپل بادشاه وټاکه او د فوځ سپه سالار مشهور سیدال خان ناصر مقرر شو دا سړی له دې نه ور تېر چې یو ماهر او زړور سپاهي هم وو او د پښتو ژبې ښه شاعر او عالم هم وو.

# د اشرف د سلطنت دوره

## د (۱۷۲۵م، نه تر (۱۷۲۹م) پورې

شاه اشرف باد شاه خوشرخو په دې پوهېدلی وو چې د-
افغاني دولت د ایران په خاوره کې له دې کبله چې خارجي دوه لوی
دولتونه هم مخ ته راولوېده لکه روسیه او عثماني دولت نور ډېر
دوام کول ګران کار دی- شاه طهماسپ د شاه حسین صفوی مشر -
زوی او ولیعهد وو د اصفهان او د شاه حسین د تسلیمیدو نه پس
لاړ او په قزوین کې یې د بادشاهۍ اعلان وکړ او د ولس د
خلکو نه یې د استمداد او کومک هیله وکړه، خو د خلکو د صفوي
دولت نه زړه چاودی وو هیڅ هم د ټینګ کومک وعده ونکړه نو
چې د ملت نه ناامیده شو، طهماسپ د ایران طبعي خاوره په فروش
کې واچوله او د غرب خوا یې عثماني دولت ته پیشکش کړه او د شمال
خوا یې د روس پطرکبیر ته وبخښلې کړه- عثماني دولت لا د پخوا
نه دې کار ته لېواله وو زر تر زره یې خپل فوځونه همدان او ایروان
او طبریز ته راولېږل خو د طبریز خلکو دفاع او مقاومت وکړه
او جګړه یې وکړه او د ماتې نه پس بل ځای ته په هجرت لاړل

خو د عثمانیانو اسارت ته تسلیم نه شو. عثماني دولت د روس سره
د ایران د وېش په مسئله هم موافقې ته ورسېدلی وو. شاه طهماسب
بیا هم په عثماني او شرقي دولت هم خائله اکتفا ونکړه او خپل استازی
اسمعیل بیگ یې د روس پطرکبیر ته ان پیطورگراد ته ولېږلو
او د شمال خوا د ځمکو پېشکش پېشنهاد یې ورکړو او روس دا
پېشکش ومانه او په (۱۲) سپتمبر (۱۷۲۳) کال کې اسمعیل د طهماسب
نماینده د روسانو سره داسې قرارداد امضا کړو چې د دربند ښار
او د باکو بندر یې سره د توابعو مربوطو ځمکو او ځینو ځایونو چې
په دغه ښارونو یې تعلق درلود روس ته وروبخښودل او د
ایران دولت او پادشاه د دغه ځمکو نه بېزاره شو په دې طمعه
چې افغانان به ماتوي او له ایرانه به یې وباسي او د ایران تاج
او تخت به ماته بیا ترکان او روسان راکوي. روس هم [illegible]
او د باکو بندر یې ونیوه او مسلط شو. شاه اشرف او هو[illegible]
دولت و پوهېده چې د غرب او شمال له خوا ورته د دوه لوی قوي
امپراطورۍ راځکې شوې جنوب خوا یې بحر وو او هوتکي د [illegible]
څه بحري قوه هم نه درلوده او د شرق په خوا یې د سیستان نه
نیولې دا وسني خراسانه پورې د محمود خان سیستاني حکومت چلېده
چې د هوتکي افغاني دولت سره یې هیڅ ارتباط هم نه وو او [illegible]
هغې شاته ورپسې ابدالي افغاني حکومت په هرات کې وو چې د

هوتکو سره يې پخوانۍ دښمني وه ، هوتکي دولت او شاه اشرف
د مختلفو مشکلاتو سره مخامخ وو چې يو پلو ترې د ايران ځينې خلک
او مالداره شتمنه طبقه د شاه محمود نه زوروېدلې وه او د افغانانو
نه يې کرکه کوله او مخالف سازشونه به يې کول د بل پلوه -
غلجي هم سره يو فکرا و يو لاس نه وو- اشرف ته د طهماسپ
نمايندګان او ملګري يې ميرزا صفي نومی او سلطان محمد راپاڅېدلي
وو او د طهماسپ د پاره يې وسلې او لښکرې ټولولې - بل پلو د -
عثماني دولت او روسيه دحملو وېره هم په منځ کې پرته وه او
ور سره ويل کېده چې داشرف پخواني ملګری او تکړه غښتلی بريالی
امان الله خان هم په پټه د شاه طهماسپ سره جرګې مرکې لري سره
د دې ټولو مشکلاتو شاه اشرف مايوس او نااُميده نه شو او په
جرأت يې خپل کار پيل کړو او د خلکو سره يې ګذاره او مداره کوله
دچا چې شاه محمود مالونه ضبط کړي وو هغه يې بېرته ورکړه
او پخواني کار داران يې په کار ولګول د شاهي کورنۍ ټول مړي
په ښه ډول او احترام او تشريفاتو بيا ښخ کړه - او ميرزا صفي
او سلطان محمد چې يوه په فارس کې د باد شاهۍ ادعا کوله او بل يې
په ښاور او بلوچستان کې دصفوي دولت ځان وارث معرفي -
کړی وو خو دواړه يو په بل پسې پخپلو سپايانو بردست خان
په مغه ويوژل او سبدال خان افغاني سپه سالار د طهماسپ -

عسکري قوی ته په طهران کې ماتې ورکړه او قزوین یې تر یې هم لاندې کړ او یزد او کرمان یې هم بېرته تر یې ونیول او طهران او قم او سامم تسلیم شول شاه اشرف د مرکزي قدرت د استحکام د پاره د خپل زاړه ملګري امان الله نه په دې چې د شاه طهماسپ سره یې پټه رابطه لري تېر شو او هغه یې وواژه خود هغه په مرګ نورغلجي هم خفه او د رد بدل. شاه اشرف د عثماني ترکي او روسي لښکرو څارنه هم کوله او په دې داخلي جنګونو کې یې هم د بېره قوه دلاسه ورکړې وه او د قندهار سره یې هم علاقه نه وه پاتې چې چله دا نیمګړتیا له هغه ځایه پوره کړي شي سره د دې هم خپل تدبیرونه وکړل او هلې ځلې کولې لومړی یې خپل سفیر عبدالعزیز په (۱۷۲٦) میلادي کې د ترکیه عثماني دولت ته واستولو او د خپلې اسلامي ورورګلوی او د عثماني دولت د خلافت مقام ته چې افغانان احترام لري خپل عقیدت ورڅرګند کړه او تر یې ویې غوښتل چې د ایران په غرب کې چې کومې ځمکې عثماني دولت نیولې هغه دې بېرته راپرېږدي چې د دوو مسلمانو دولتونو ـ دوستي په ځای پاتې شي خو د ترکي دولت د شاه اشرف پیغام ته هیڅ وقعت هم ورنکړ او ویې غوښتل چې هوتکي دولت باید زر د ایران نیولې خاوره بېرته شاه حسین صفوي ته وسپاري او د ترکانو دا پیغام د ترکانو فوځي لوی قوت بدرګه کاوه یعنې

عثماني دولت (۵۰) زره عسکر د (۲۰) توپونو سره داحمد پاد شاه د
بغداد د والي په قوماندانۍ او حسین پادشاه د موصل د والي او
جنرال عبدالرحمن په مشره په اصفهان راوړش او راومخکې کړي. شاه
اشرف دڅار وقطعي مرحلې ته رسېدلی وو او د ترکي فوځونو
مخې ته ور ولاړ شو په دې وخت کې یې شاه حسین صفوي یې بې
موجبه ووژلو او ترکي او افغاني لښکرې په (۱۷۲۶م) کې په منځ
لاره داصفهان او یزد کې مخامخ شوې او لومړی وار په تاریخ
کې د افغاني هوتکي دولت او عثماني ترکي دولت په منځ کې جنګ
واقع شو چې د هوتکي دولت ته یې د مرګ او ژوند اهمیت درلود
ځکه که آفغاني لښکر مات شوی وای نو د هغې بیا تلافي کول
ممکن نه وو او د ترکي فوځونو تر شا نور لوی قوت هم موجود وو
جنګ جوړ شو او افغاني سوره د برېښنا په شان حملې پیل کړې
او د ترکي په لوی اردو کې په څو ساعته جنګ کې ماتې ګډه شوه
او افغاني لښکر (۵۰) توپونه ترې را لاندې کړه او د ترکي لښکر
نه (۱۲) زره پیاده او سواره ځه مړه په میدان کې ولوېدل او پاتې
شو او نور لښکر یې مات شو او په منډه شو او هر څه لوازم او
تجهیزات یې افغاني لښکر ته پرېښودل خو شاه اشرف د تدبیرنه
کار واخیست او د ترکانو ټول مال متاع یې ورپسې ور ولېږل
او اسمعیلی بیا د سفیر په ډول ور ولېږلو او پیغام یې ورکړی

ورچې موږ ته د واړو مسلمانانو او ورونو یوو او د خلافت مقام ته احترام لرو او د مسلمان مال خوړل په موږ حرام دی او د اسلامي خلافت احترام په موږ واجب دی او ستاسي سره موږ دایمي مصالحه غواړو. د ترکو عثماني دولت د فاتح شاه اشرف له دې وضعې نه ډېر متاثر شو چې د اصفهان د نیولو د خبرې نه تېر شو او په (۱۷۲۸م) کې د عثماني دولت سفیر راشد پاشا هوتکي دربار ته راغی او هوتکي دولت یې په رسمیت وپېژاند شاه اشرف هم چېل وضعیت د بزدې نه ښه درک کولی شوا او په دې قانع شوا او نور یې د ترکیې نه د نورو ځمکو د پرېښودلو مطالبه في الحال پرېښودله او د مناسباتو د ټینګولو د پاره یې محمدخان بلوچ د سفیر په حیث ترکیې ته ور ولېږلو دا مناسبات د دې سبب شو چې د دواړو دولتونو په منځ کې د (۱۲) مادو یوه لوظنامه وشوه چې دا هم پکې ورچې ایراني حجاجو ته به د ترکیې دولت ته د حج په ایامو کې اسانتیاوې پیدا کوي. په دې ډول شاه اشرف د ترکو د غرب له خوا د حملې نه خلاص شو د شاه اشرف ډېر افسران او افغاني لښکر په جنګونو کې د منځه تللي وو او وې غوښتل چې دا ینګړتیا د ایران د داخل نه پوره کړي که څه هم دا کار د ډېر وېر خونه ورخوځه یې کړی وای؛ بله چاره نه وه او د شاه اشرف وضعیت د هغه سرمایه دار په څېر وه چې تاواني

شوی وه او خرخ یې وه او بایداو اصدن یې هېڅ م نه وي !

شاه اشرف چې د ایران نه نوي عسکر استخدام کړه په هغوکې ډېره برخه د کردانو وه او ایراني فرخ ته نوی کومک او نادر افشار په شان یو نوی جنګیالی جرنیل م ورغلی وو او ایراني لښکر بیا پیاوړی شوی وو او افغاني لښکر ورخ تر ورځه په لږېدو وو. کله چې د نادر افشار سره جنګ ونښت نو کردي عسکرو د هغه په مقابل کې جنګ ونکړو او میدان یې پرېښود. شاه اشرف چېل قوت الظهر فرخ جنګ ته له دې کبله ورنه ګماره چې د هغه په نظر کې د شاه طهماسپ او نادر افشار او فتح علي خان د حرکاتو نه چې په او سني خراسان کې کول شاه اشرف ډېر د روس خواته په اهمیت کتل ځکه چې د روس دولت د شاه طهماسپ سره لوظ کړی وو چې د افغاني لښکرو په وېستلو کې به د شاه طهماسپ کومک او نظامي مرستې کوي خو د روسي فوځونو د قوماندان «ارینوف» او سید ال خان ناصري سپه سالار په منځ کې چې جګړه شوې وه نو افغاني لښکر ګټه کړې وه او جنرال «ارینوف» د صلحې مطالبه کړې وه او په دغه سبب د افغانستان او روس په منځ کې په کال «۱۷۲۹م» کې سیاسي مذاکرې پیل شوې او د روس دولت چې د افغاني لښکر په مقابل کې د عثماني دولت د ماتې قصې اورېدلې وې په وېره کې وو چې د افغاني لښکر دلاسه روس ته د غسې ماتې ورنکړه شي نو د «رشت» په ښار کې د

افغاني نمايندګانو سره يې يوه معاهده لاسليک کړه چې د شاه طهماسپ سره شوې معاهدې نه ښه او د افغانانو په ګټه وه ، يعني روسي دولت دامنلې وه چې د خذر د غاړې هغه ځايونه لکه مازندران او بلکو به بېرته افغاني هوتکي دولت ته پرېږدي. دا د لسو مادو معاهده د هوتکي دولت په ګټه وه نو ومنل شوه او په ( ۱۳ فوریه ۱۷۲۹م ) کال کې د ستخط کړې شوه او دا معاهده د هغه روس او شاه طهماسپ د معاهدې ( ۱۲ سپتمبر ۱۷۲۳م ) کې چې کړې وه د هوتکي دولت په ګټه وه او روس وېرې ځمکې بېرته پرېښودلې.

شاه اشرف د دې معاهدې نه وروسته د روس د خوا نه خلاص شو. ولې په دې موده کې د ایران شاه طهماسپ او ملګرو ته یې ډېر فرصت په لاس ورغلی وو او نادر افشار یې د خپلو فوځونو سپه سالار مقرر کړی وو او فوځي صلاح مشوره یې هم ورشوه نادر افشار جنګ دیده شخص وو او د افغانانو د جنګي تکتیک سره اشنا وو او هغه په خراسان ورمنده کړه او په ( ۱۷۲۷م ) کال کې د خراسان او سیستان وېرې برخې لاندې کړې او په نیشاپور کې لږ و ډېر د درې زره مدافعین هم ووژل او په ( ۱۷۲۹م ) کال کې نادر افشار د هرات ابدالي ریاست چې هغه هم د هوتکي دولت د ښمن وو له منځه لرې کړی وو او له مخه یې وېستلی وو او د نادر افشار د فوځونو حملو ته د محمود سیستاني حکومت او ابدالي ریاست کله د ټینګېدو وو؟ - نو شاه اشرف هم اراده

وکړه چې په نادر افشار پسې د ایران د داخل نه خراسان ته ورو‌ځي!!
که څه هم د نادر افشار د نوي جوړ لښکر او د اشرف هوتکي د لښکر په
منځ کې ډیر توپیر وو. افغاني لښکر په پرله پسې جنګونو کې مات ګوډ.
شوي وو او بنې او پوره وسلې یې هم په لاس کې نه وې او د نادر
فوځ نوی تعبیه او مجهز شوی وو او جنګ ته اماده وو او د افغانستان
د غرب ایالتونه یې تر هراته پورې نیولي وو. شاه اشرف او هوتکي
لښکر جنګ ته په داسې حال کې ورغی چې ایراني عوام او د هقانان هم
نور د جنګونو نه په تنګ شوي وو او د افغاني د ولت مرسته یې
نشوه کولی او د ایران د دولت خواته متمایل وو، د ایران په لښکر کې
سنه منظمه او قوي توپخانه هم موجوده وه. په (۱۷۲۹م)، کې افغاني
لښکر ورغی او سمنان یې محاصره کړو نادر افشار هم د هرات نه زر
ور پسې را وګرځېد او لا بسطام ته نه وو رسېدلی چې د سپدال.
خان شیخونی لښکر یې په توپخانه حمله وروړه او ډېر ایرانیان
یې په ځپلو چړو ووژل خو افغاني لښکر هم د توپخانې د بې واره
ونزوله کبله ډېر تلفات ورکړه او بې له څه نتیجې افغاني لښکر په
شا شو، شاه اشرف هم د سمنان کار پرېښود او د نادر افشار جنګ ته
رامخکې شو خو په جنګ کې هغه ایرانیانو چې په افغاني لښکر کې یې
جنګ نه کولو او میدان یې پرېښود نو له دې امله افغاني لښکر (۱۲)
زره تلفات ورکړه او شکست او ماتې ته نژدې شو. شاه اشرف چپل

مات گوړ زخمي لښکر را ټول کړ او « ورامین » ته وړ راوسته شو او د نوي جنګ د پاره یې تیاری کولې او په دې وخت کې د - طهران افغاني والي اسلام خان ترخي هم د پنځه زره لښکرو سره د کومک د پاره راورسېدل ، شاه اشرف د خپل اردو د پاره « سردره خوره » کې ځای ونیوه - نادر افشارهم پخپل رقیب د باد شاه اشرف په لښکرپسې وړ او جنګ جوړ شو په اول کې خود سیدال خان او اسلام خان مېړنی لښکر د نادرافشار د لښکر دواړه خواوې ورماتې کړې خو د نادر افشارلښکر مقاومت وکړ او پخپله نادرافشارجنګ ته را وړاندې شو او افغاني لښکر ته یې توپخانه مخامخ کړه او ډېر تاوان یې ورته واړاوه . د جنګ په نتیجه کې چې افغاني لښکرځه ګټه ونکړه نو شاه اشرف بېرته اصفهان ته مخه کړه ، شاه اشرف بیا په اصفهان کې « ۲۴ » زره هم ترکه « ارجل » لښکر را ټول کړه بیا په نادر افشار پسې را وګرځېد او په « مورچه خورت » کې د نادر افشار د فوځونو په مخکې ودرېد د لښکر دېره برخه هم ترک او کردان وو او دا قطعي او فیصله کن جنګ وو نو اشرف اولښکریې سنه په مېړانه جنګېدل او افغاني لښکر ښه ایماندارانه مقاومت - وکړ او تردې یې ښه ټینګه کړه چې د ټول لښکرنه صرف یو زروخوسوه تنه ژوندي پاتې شو او نور غیرافغاني خلکودجنګ نه تېښته وکړه - او پخپله شاه اشرف هم اصفهان ته بېرته وګرځېد

اوله صفه خایه هم شیراز ته لاړه او نادر افشار ورپسې اصفهان ته راغی او شوکت مات کړه افغانان یې چې وموندل صفه یې ووژل او نادر (۴۰) ورځې نور هم د اصفهان په پایتخت کې پاتې شو او بیا په ډېره دبدبه شیراز ته ور روان شو شاه اشرف هم سره د (۱۲) زره لښکره ورته مخې ته راووت او دواړه فوځونه په «زرغان» کې سره مخامخ شوځو د نادر افشار لښکر ډېر قوي او په زورکې وو او د شاه اشرف لښکر کمزوری او مات کړه وو او د نور کومک طمعه یې هم نه وه نو بېرته وګرځېده او شیراز ته لاړ او کډې لا په قزوین کې حصار ې پاتې وې نو له دې امله یې د سیدال خان سپه سالار او ملا زعفران په واسطه د نادر افشار سره په مذاکره پیل وکړه او داجرګه د نادر افشار اردو ته ورغله نادر افشار دا شرط کېښود چې د شاهي صفوي کورنۍ پاتې افراد دې راپرېښودل شي شاه اشرف له دې کبله چې د ده د کورنۍ غړي له قزوین نه راورسېږي د صفوي کورنۍ دوه بنځې یې هم نادر افشار ته ور ولیږلې او نادر افشار دا غنیمت وګڼله ځکه چې که وشي او شاه اشرف بې جنګه تسلیم شي نو دا به بنه وي خو افغان هوتک شاه اشرف دا کله منله !! نو کډې چې کله راورسېدلې د ده او د شاه محمود د کورنۍ بنځې (۱۵) تنه وې خو ځینې یې داسې وې چې صفه نه په اس سورېدلی شوې او نه پښپله د تګ وې

نو شاه اشرف دا نه غوښتل چې د دښمن په لاس ورشي او خپل لاس یې هم نه ورتلو نو حاجب ته یعنې خواجه سرا ته حکم وکړ چې دا وژني او خپله د دوو خپلو ښځو او د وه تنه ښځې د صفوي کورنۍ چې هم ور سره وې د دوو سوو سوارو سره د شیراز نه خپل اصلي وطن ته روان شو او هغه شپې د شیراز نه مخ په شرق روان شوي وو. نادرافشار چې خبر شو نو په شیراز کې هغه افغانان چې پاتې وو او د تللو نه وو ووژل او ملا زعفران او میامحمد صدیق لوی فقیه او د پښتو لوی شاعر یې ونیول او بندیان یې کړل او خواجه سرا د شاه اشرف دوه ښځې او د شاه محمود مور وژلې وې او نورې پاتې وې چې ایراني لښکر ته سپارل او هغه نورې ښځې له مرګه پاتې شوې او بندیانې شوې نادرافشار امر وکړ چې دا نلرینه بندیان دې اصفهان ته واستول شي چې هلته د خلکو په مخکې ووژل شي خو ملا زعفران افغان د غیرت نه کله چې د یو پل نه تېرېدل ځان یې سیند ته وغورځاوه او ډوب و مړ او نور بندیان په اصفهان کې ووژل شو ملا زعفران یو فاضل شخص او د پښتو شعر یې نومیالی شاعر وو. شاه اشرف د شیراز نه لاره نوې ځای ته ورځي خو خلکو د نادرافشار د وېرې ورنه مانه او مخې ته یې ودرېدل نو شاه اشرف مجبوراً د سیستان لاره ونیوله او ګرم سېر ته ورسېد خو هغه خوانه شاه حسین د ده د تره ځوی هم په شاه

اشرف پسې راوتلی وو او په ګرم سېر او زمینداور کې یې د هغه لټه کوله نو شاه اشرف له ناکامه بلوچستان ته مخه کړه شاه حسین چې خبر شو هغه هم ورپسې د سورو ټولګی هرې خواته واستول یو ټولګی عسکرو شاه اشرف د ځ ېرغره خوا کې چې د شوراوک په لاندې خوا کې واقع دی د شاه حسین سورو راګیر کړ او یو سپاهي شاه اشرف په چټل ټوپک وویشت او مړ شو او د شاه اشرف قصه هدلته ختمه شوه «ځوځینو مورخینو لیکلي دي چې نه ! اشرف په سیستان کې عبدالله خان نومي بلوڅ نیولی او وژلی وو». د شاه اشرف پاتې ښځې او ایرانۍ ښځې سپاهیانو شاه حسین ته راوستلې او قندهارته راغلل او د افغاني لښکرنه پاتې نور افغانان لکه میره سیدال خان سپه سالار او بابرجان بابي د لار او بندر حاکم او نور چې بندې پاتې - پښتانه وو قندهارته راورسېدل. شاه حسین هم د ایرانیانو د نیت نه خبر وو نو په اول کې د خپلې دفاع په فکر کې شو او دفاعي ترتیبات ونیول. او د هغه ایراني دوه تنو ښځو بندیانو په بدل کې (۱۵) تنه مړې او بندیانې افغاني ښځې راخلاصې کړې شوې. د افغاني لښکرنه یو زر تنه چې ژوندي پاتې وو او دوه میاشتې یې په جم کې د نادر افشار په مقابل کې دفاع وکړه خو اخر مجبوراً تسلیم شو او په دې ډول د ایران اشغال چې افغاني لښکرو په (۱۷۲۵م) کال کې کړی وو په (۱۷۲۹) ل میلادي کال کې ختم شو!!

# په قندهار کې دغلجو حکومت

په قندهار کې د غلجیانو محلي حکومت د شاه حسین په قیادت کې لا پاتې وو خو څه اوږده عمر یې نه وو او ژر د ایراني نادري شهنشاهي فوځونو د حملو سره مخامخ شو او په (۱۷۳۸م) کې د نادر افشار د فوځونو نه مات شو. نادر افشار د هغې نه مخکې چې په قندهار حمله وکړي لومړی د کرمان نایب د امام ویردي په مشرۍ کې یې بُست او ګرشک ته لښکر را ولیږلو او امام ویردي د بُست قلعه د افغاني ساتونکو نه ونیوله او په ګرشک هم ورغی خو شاه حسین نور مخکې تګ ته پرې نښود او د بابوجان بابي په مشرۍ کې یې څه لښکر د بُست د بیا نیولو د پاره مقرر کړو بابوجان د ایراني لښکر نه د بُست قلعه بیرته ونیوله او افغاني بندیان یې هم آزاد کړه. او امام ویردي د ګرشک نه مخ په فراه وتښتېد. نادر افشار د خراسان د قبیلو نه یوه پخوانۍ قبیله وه (۵).

په (۱۷۳۷م) کې د یو زورور لښکر او قوي توپخانې سره د لخک او دل آرام د لارې ګرشک ته راغی او خپل خوی یې رضا قلي یې د بلخ د ولایت د نیولو د پاره هغه خواته د یو څه لښکر سره وا-

ستانه. شاه حُسین هوتک هم ډېره غله او خوراکه په قندهار کې ټوله
کړې وه او قندهار ته د راتلونکي لار په سر یې د خلکو غلې و سوځولې
چې نادر افشار ترې ګټه وانخلي. خو په دې خبره افغاني دهقانان د
شاه حُسین نه ډېر خفه شو. شاه حُسین خپل ځوی محمد خان د قلات
د قلعه د حفاظت د پاره ولېږلو او بهادر خان یې د زمینداور د مدافعې
د پاره مقرر کړو او پخپله په قندهار کې پاتې شو او مدافعوي ترتیبات
یې ونیول او د نادر افشار د فوځونو د یرغل په انتظار کې وو.
نادر افشار د ګرشک ټینګه قلعه د زورورې توپخانې په زور را
لاندې کړه او کلب علي افشار افسر یې د زمینداور د نیولو په
کار مامور کړو او امام ویردي بیا د بُست د قلعه د نیولو په کار
موظف کړو او پخپله نادر افشار د شاه مقصود په خواکې د هلمند سنه.
ورتېر شو او د غلو د راټولولو د پاره ترین کوټ او ده راود ته
لښکر ولېږلو او نادر راغی د هلمند په غاړه یې واړوله شاه حُسین
چې خبر شو نو د شپې د پلوه یې په ایراني لښکر داړې پیل کړې
او ډېر تاوانونه یې ور واړول. له دې شبخونونه وروسته.
شاه حُسین بېرته قندهار ته وګرځېد او نادر افشار د خپلو فوځونو
د تېښتېدونه د راګرځېدو د پاره پخپله متوجه شو او ور روان
شو او د هلمند نه یې خپل فوځ پورې وېست او په قندهار یې
د توپخانې د ډزو پیل وکړه او بې واره د توپخانې ډزې په

قندهار شروع شوې شاه حسین هم هغه توپخانې ته چې د چهلزینې
په لوړ غونډۍ کې وه امر وکړ چې په ایراني فوځ ګوزار وکړي ، وزې پيل کړي
او هډغسې وشوه او سیدال خان ناصر سپه سالارې د لښکر د ل
تولېدو د پاره د غلجو قلات ته ولېږل او مامور وو چې د شاه د پلوه
په فتح علي نادري افسر باندې چې د قلات د جنګ د پاره ورغلی وو
حمله او یرغل وکړي سیدال خان فتح علي راحصار کړ وخو د نادر افشا
کومک ور ورسېد او فتح علي یې د تالا کېدو او تباهۍ نه بېچ کړ
او سیدال خان لاړ د قلات په قلعه کې قلعه بند شو نادر افشار
سیدال خان هډغسې د محاصرې په حال کې پرېښود او لښکرې ترې
تاو کړ او په خپله د قندهار محاصرې ته بېرته ور وګرځېد دا د قلعه
بندۍ جګړې دوه میاشتې اوږدې شوې او د قندهار د ښار
خلکو به د نادر افشار په لښکرو د شپې داړې کولې او ایراني فوځونه
د دې داړو نه ډېر په تنګ شو نادر افشار د دې وضعې نه د -
خلاصون د پاره خپل اردو د شهر سرخ زیارت ته ولېږل داوه او هلته
یې د یوې قلعه د جوړولو پیل وکړ او ډېر چلبک کار پرې کېدلو
او ټول هغه افغاني بندیان چې په لاره کې ایرانیانو نیولي وو په
دې کار ګمارل شوي وو ، د دې قلعه چې په نادرآباد موسومه وه
د ورانه اثار اوس هم شته دی ، د نادر افشار فوځونه په دې قلعه
کې د شپې د داړو نه وساتل شو او د قندهار د محاصرې کار ته

متوجه شو او د ښار نه چارچاپېره یې مورچې او د ښار نې خایونه جوړ کړل او ښار ته یې د تګ راتګ ټولې لارې و تړلې او خوراک یې ښار ته نه پرېښود ، د ښار خلک له دې وضعې نه خفه او په تنګ شو د ټولو نه لومړی اشرف سلطان ترخې غلجی د ښار نه و تښتېد او نادر ته ورغی او پناه یې واخېسته د اشرف سلطان د غلجو د لوی خان په وضعه د ښار خلک نور هم وارخطا او نااُمیده شو او ایرانې لښکر نور امیدوار او ډاډه شو اشرف سلطان د دې خدمت په بدل کې د قندهار د فتحې نه وروسته د قلات په حکومت - نادر افشار مقرر کړو. قلات او د شهر صفا قلعه د قندهار د وضعې نه وروسته هم دوه میاشتې قلعه بندې وکړې خونور ورسره غلې دانې خلاصې شوې او تسلیم شو. او سیدال خان نامرا او د شاه حسین حوی محمد خان په جنګ کې ونیول شو او بندیان د نادر افشار حضور ته واستول شو نادر افشار د سیدال خان د مېړانې نه په ایران کې لاخبر وو هغه یې له مرګ نه معاف کړ وخوړوند یې کړو - د کاکړو خلکو او ترکو غلجو هم پاڅون وکړو او په پښین کې یې په ایرانې لښکرو یرغلونه وکړه خو د نادر قواوې هغوی په ټوپکو او توپونو مات کړه او د ټولو نه وروسته د زمینداور قلعه لاندې شوه چې خو میاشتې یې په مېړانه مدافعه کړې وه او ایرانې لښکر ته یې ماتې ورکړې وه کلب علي چې دا وضعیت ولید د توپخانې

په زور یې مدافعه کوله او د نادر افشار له پلوه هم ورته د دیوان
قلي افشار او یاري بېک کومک ته را ورسېدل او د زمینداور قلعه
ته یې دارو کېښودل او سرنګ یې ورته شروع کړو او د توپخانې
زورم پرې راغی او بهادرخان د قلعه مدافعې تسلیم ته مجبور شو
په دې ډول د قندهار د خوا و شا قلعه ګانې یو په بل پسې د مخه
نه لاړې او قندهار یواځې په میدان پاتې شو خو قندهار سره د
دې هم لس میاشتې نور هم مقاومت وکړو خو اخر ایراني لښکرو د
چهل زینې غرم ونیولو او د هغه ځای نه یې په ښار او شاهي
ارګ د توپخانې ډزې پیل کړې چې ټول ښار د دغه اور د تاثیر
لاندې متاثر شو او نور په شاهي ماڼۍ «نارنج» کې هم څوک خوځېدلی
او ګرځېدلی نه شو او د قلعه د باندنۍ برجونه هم د ښمن ونیول
او د ښار دروازه هم په ایراني توپونو ویشتله شوه او ونړېدله
او د نادر عسکر په ښار راننوتل او په ښځو نرو یې صرفه نه
کوله او ټول یې د تېغ نه تېر کړل او د قندهار ښار په (۱۷۳۸م)
کال کې په دغسې خونریزۍ فتحه شو او شاه حسین لا تر دغه وخته
تسلیم شوی نه وو او د نارنج ماڼۍ په لوړ برج کې ناست وو خو
نادر امر وکړ چې دغه ځایونه او برجونه او ارګ په توپونو
ولې په دې امر په شاهي ارګ او د نارنج په ماڼۍ سورې
جوړ شو او نور د جنګ امکان نه وو پاتې شاه حسین هم تسلیم

شو۔ د نادرافشار په امر شاه حسین او د ده کورنۍ بندیان مازندران ته ولیږل شو او شاه حسین په مازندران کې په کال یعنې (۱۷۲۸م) کې مسموم او ووژل شو[1] نادر افشار د غلجو د قبیلې نه په ویره کې وو ځکه قول غلجي یې د غرب خواته قرار کړل او د صفوي په ځای ابدالیان چې صفوي دولت غرب ته کډولي وو راوستل او د غلجو ځمکې په قندهار او بُست او زمینداور کې ورته ورکړې، او په دې ډول یې د غلجو او ابدالو ځړه د دښمنۍ بیا را ویاروله نادر د قلات په غلجو څه غرض ونکړو او اشرف سلطان یې چې مخکې ده ته د قلات نه ورغلی وو په قلات یې حاکم مقرر کړو او په دې وسیله یې د ځینو غلجو طرفداري هم حاصله کړه او یو ځلور ځریزه قوه ترې هم تشکیله کړه او په پل اردو کې یې غلجي مل کړه د نادرافشار د ټولو نه بدکار په افغانستان کې دا وو چې :- ولایت کلي او ښارونه به یې ورانول او د قندهار مشهور ښار یې په څو هفتو کې وران او د خاورو سره برابر کړو او د دې وطن افغانستان د پېښه وره او صنعت مرکز او د علمو او فرهنګ تاتوبې یې ګډ وډ او وران کړو۔ او حال دا چې شاه محمود او اشرف په ایران کې د غسې ورانه نه وې کړې !! او نه یې کوم کلی وران کړی وو په جنګ کې چې کوم ځایونه لاندې کړي وو هغه یې لا ښه ساتل۔ نادر افشار د قندهار د فتحې نه وروسته د مملکت

---

(۱) او (۲۹) کلن هوتکي دولت له مخه لاپ.

شرق خواته متوجه شوېچې بحث به یې بیا د نادر او افغانستان تر عنوان لاندې راشي!!

# دافغانستان دخلکو په غربي مورچه کې مبارزې او په هرات کې دمحلي ابدالي حکومت تاداو

صفویانو حاکمانو په هرات په زور حکومت کولو او دچا وسه او توان، نه وه چې ساه قدرې هم بې حکمه واخلي، په دې وخت کې ابدالیان راپه کډه شوي وو خوځکه په گرشک او فراه پرېوتل او مالداري کوله او ځینې دچپل خان حیات سلطان سره چې دچپل تر بره دولت خان ابدالي نه مغلوب شوی وو دقندهار نه ملتان ته لاړل او څه نور په قندهار او په تېره په ارغستان پراته وو او صفویانو چې له ابدالیانو نه په وېره کې وو نوغلجي ورته په لاس کې ټینګ وو او په مقابل کې به یې ورته لمسول او گرگین گرجي- ایراني حاکم خودا وکړه چې دابدالو لوی خانان لکه دولت خان او نظرمحمد خان او رستم خان یې ووژل او مالونه یې تري تالا کړه نو ابدالیان دگرشک او فراه او هرات ان تر اسفزاره پورې خواره واره شوا و په قندهار کې چې څه ابدالیان پراته وو هغه بې مشره

او بې سره او سپېدل او محض شپې تېرولې. هغه وخت چې د قندهار خلکو پاڅون وکړ او ګرګین او لښکرې یې ووژل شو نو د قندهار ابدالو هم قبیلوي حس را ژوندی شو او ملتان ته یې مخه کړه پخوانی خان حیات سلطان خو مړ وو د وی یې په ځوی عبدالله خان د خانۍ لاس پورته کړ او د دعاوې پرې وکړه او د کډې سره یې قندهار ته راروان کړ او هغه د خپلې علاقې چارې پلاس کې ونیولې دا هوښیار سړی وو او د میرویس خان د هغه سیاست سره چې د پردو د استیلا په ضد وو متفق شو او د غلجو او ابدالو د روغې ژوندې بنه ګانه، د میرویس خان د مرګ نه پس لکه چې مخکې لیکلي شوي دي د هغه ورور عبدالعزیز د ومره کفایت نه درلوده چې د میرویس خان په شان د غلجو او ابدالو ورورولي ټینګه کړي نو ابدالي عبدالله خان په کال (۱۷۱۶م)، کې د قندهار نه هرات ته کډه وکړه او هلته ورغی سره د دې چې هرات د غه وخت د صفوي حاکمانو پلاس کې وو د عبدالله خان دا اراده نه وه چې صفوي حکومت ته دې تسلیم شي بلکه زړه یې وو چې پردي له خپل وطن نه وباسي او داسې څه وکړي لکه میرویس غلجي چې وکړل او نوم او نښان وګټي - عبدالله خان یواځې نه وو محمد زمانخان د دولت خان ابدالي ځوی چې د دولت خان پخوا وژل شوی وو هم ورسره وو محمد زمانخان هغه څوک وو چې د ګرګین وراره خسروخان د کرمان د تبعید ګاه نه

دخان سره د غلجو مقابلې له راوستلې وو خو محمد زمان داونکړه او د میرویس خان په مقابل کې توره ونه وېستله - او نه د عبدالله خان سره چې د ده د پلار مشري یې نیولې وه څه بدي وکړه بلکه د هغه خبره یې ومنله او د قندهار نه هرات ته ورسره لاړ او په دې د عبدالله خان مټ لاقوي شو - د هرات د صفوي حکومت په مخکې د قندهار داستان او د ګرګین انجام پروت وو هغوی نه غوښتل چې عبدالله خان چې ځېنې ادعام ورسره دي په هرات کې دې آزاد او د چلې خوښې شوند وکړي صفوي حاکم عبدالله خان او ځوی یې د واړه بندیان کړه په دې خبره د هرات خلکو پاڅون وکړه او چې د عباس قلي صفوي حاکم نه پوزې ته راغلی وو او هغه یې د کاره لرې کړو د دې واقعې نه چې صفوي دولت خبر شو نو فوراً یې جعفر استاجلو یې د هرات والي مقرر کړو او راو یې لېږلو چې امنیت وساتلی شي هم په دې مال کې عبدالله خان هم د بندي خانې نه تښتېدلی وو او اسفزار ته ورغلی وو او هلته یې ملي لښکر راټول کړو او د اسفزار په قلعه ورغلل او قلعه یې ونیوله او پس له دې د شورشیانو مرکز هم دا قلعه شوه او داځای مرکز شو !! او نورو خواو شا یې هم په ابدالیانو پسې استازی ولېږل او سره د چېل لښکره په هرات ورغی جعفر د هرات ایراني حاکم هم د جنګ د پاره ورته مخې ته راووت خو په جنګ کې مات شو او عبدالله خان

د بنارياتو په کومک او مرسته د پيل خانې د برج سره په قلعه ور ننوت او د هرات بناريې آزاد کړو او په کال (۱۲۱۷م) کې هرات کې دابداليانو يو محلي حکومت جوړ کړو او په هغه کال خلکو غونډه وکړه ټولو خلکو او د قبايلو مشرانو په ګډه عبدالله خان د رئيس په حيث وټاکلو، عبدالله خان هم ملي پخوانه عنعنې ته په پام ووا و د قومي مشرانو جرګه به تل ورسره وه او د هغوی په مشوره به يې کار کاوه جرګې به چې څه پريکړه کړه عبدالله خان به هغه فيصله تطبيقوله او ولس يې هم په شاکلک ملاتړ ولاړ وو عبدالله خان د خپلواکو ابداليانو نه چې شپني او مالداري به يې کوله يو قومي لښکر يې جوړ کړ او عبدالله خان وکړی شو چې د دغه لښکر په زور يې غوريان او کهسان، مرغاب، بادغيس او اوبه هم را لاندې کړي او په هرات يې وتړي او يوه بله قوه يې د فراه خواته ولېږله او د فراه قلعه يې هم لاندې کړه او په دې ډول يې نيم غوڅي افغانستان دابداليانو او غلجو د قوتونو له خوا آزاد شو خو په دې وخت کې ايرانيان په قرار نه وو ناست او يو لښکر يې د فتح علي ترکمن په مشرۍ دافغانستان د آزادو برخو د نيولو د پاره هغه خواته ور ولېږلو او په هرات ايراني لښکر ور مخکې شو خو افغانانو هم بنه په ميړانه مدافعه کوله او اسدالله خان د عبدالله خان ورور د څه قوت سره د بنار نه ورېسي را ووت او د د بنمن

قوي ته یې په کوسویه کې ماتې ورکړه او ډېر تلفات یې ورواړول
د ایران د دې ماتې نه عبرت وانخیست، په ۱۷۱۹م کې څله قوه
نوره هم پوره کړه (۲۰) زره عسکري د خپل مشهور جرنیل صافي
قلي خان په مشرۍ د قوي توپخانې سره د فراه د سنګر نه په هرات
پسې را ولېږله خو د هرات مېړنې هم ورته مخې ته را ووتل او د
کارد د قلعې سره نږدې جګړه جوړه شوه، افغاني مدافعینو هېڅ
توپ نه درلود او د ایراني توپخانې د بې شماره ګولو لاندې یې ورو
اخر افغانانو خپلو چړو او ښیلاوو ته لاس کړو او ویلې چې ترکومه
به داغمونه نه مخامخ په توپخانه ورغلل خو په لاره کې د توپخانې
د پرله پسې فعالیت له کبله درې زره افغاني عسکر ووژل شو، خو
افغاني عسکر هم په ایراني اردو ور ننوتل او د لښکر منځ یې وواهه
او شپږ زره تنه یې ترې مړه کړه او ایراني توپخانې خپل لښکرچې
نږدې یوه جنګي غونډۍ نیولې وه په خپلو ګولو وویشتل او په شا
یې وتمبوله او ایراني لښکر مات او ګډوډ شو او په میدان کې ترې
ډېر مړه او ټپیان کشان پاتې شو او ایراني لښکر د هرات د ابدالیانو
نه بیا ماتې وخوړه او ابدالیان د څه وخت د پاره لږ قرار پاتې
شو خو د افغانانو خپل کورنی نفاق او شقاق خو لا منځ کې پروت

(۱) تاریخ عمومي عباسی اقبال طبع ایران.

او دا زموږ په قبیلوي عمل هر وخت زموږ د ملت د بده مرغه ملګري دي. او غلجي او دُراني خولا د پخوانه تربرونه او رقیب واقع شوي وو، په دغه وخت کې چې ایراني فوځ په فراه کې ماتې وکړه نو شاه محمود هوتک په (۱۷۱۹م) کال کې یوه دله عسکر د فراه د نیولو دپاره هغه خوا ور ولیږل او اسدالله ابدالي هم د هوتکو د مخنیوي دپاره ورلره مخې ته راغی د فراه په دل آرام کې دا دواړه لښکرې سره مخامخ شوې او جنګ جوړ شو څو د شاه محمود لښکرې غالب شوې او د اسدالله لښکر مغلوب او پخپله اسدالله هم په دغه جنګ کې ووژل شو دې فتحې نه پس نور نو شاه محمود په ابدالیانو هیڅ کار ونه لاړه او په ځای پرېښودل خو د ابدالیانو په زړه کې کینه او د غلجو او ابدالیو پخوانۍ قبیلوي د شمنۍ نور په ځای پرته وه د دل آرام جنګ د ابدالیانو زړه ورمات کړو او د سپین ږیري عبدالله خان دپاره د خپل ځوی اسدالله مرګ هم د زغملو نه وو او دنیا پرې تور تم شوه - نو عبدالغنی خان الکوزي ته یې وویل چې قومي جرګه راټوله کړه چې هغوی یوه پرېکړه وکړي او زه دچارو نه حضغي شم او زمان خان ابدالي ( داحمد شاه پلار ) دې راشي، او د ریاست مقام دې اشغال کړي جرګه غونډه شوه د عبدالله خان استعفی یې منظوره کړه او محمد زمان خان په (۱۷۱۹م) کال کې د هرات رئیس شو چې تر (۱۷۲۲م) پورې و ومحمد زمان خان چې

قدرت پلاس کې واخیست نو عبدالله خان یې هم بندي کړه او داکار د هغه زاړه خصومت او عنعنوي قبایلي تعصباتو وکړو ګوندي نښه وه، ګوندي عبدالله خان بندي نه وه په کار. نور نو زمان خان د هرات د خلکو ډېره دلجویي او دلداري وکړه او مشرانو جرګې ته یې ډېر احترام درلود او عبدالغني خان ته یې په درنه سترګه کتل. څه وخت چې جعفر استاجلو د هرات پخواني حاکم چې په هرات کې بندي وو ناڅاپه د نوی باغ په خیابان کې د صفوي دولت د بیا اقدام په بدل کې ووژل شو او محمد زمان خان سره د لښکرو د ایراني لښکر د مخنیوي د پاره کافر قلعه (او سني اسلام قلعه)، ته ورغی جنګ جوړ شو او زمان خان دا ثابته کړه چې د ده همت هم د عبدالله خان او اسدالله خان نه کم نه دی او د محمد زمان خان لښکر ایراني لښکر ته سختې ماتې ورکړه او صفي قلي قوماندان یې ووژلو او بېرته د هرات ښار ته را وګرځید محمد زمان مجبور وو چې څه موده وران او ویجاړ کارونه سم کړي او د چنل غم ځپلي جنګېدلي او کړېدلي تمام څه انتظام خو وکړي او له بله پلوه دا یې هم مجبوریت وو چې د عبدالله خان او د هغه د ځوی اسدالله د مرګ نه چې په حکومت کې د ښه را پیدا شوي کړې دې باید دا کړی په ورو ورو را سمې کړي خو د هغه عمر ډېر نه وو په دریم کال وربېې مړ شو او په دې وخت کې د صفوي ایراني دولت د غلجو

د مستقیمو حملو او تعرض د ضربو لاندې راغلی وو او ایراني دولت
د هوتکي دولت سره اخته وو نو هرات د ایراني حملې او یرغل نه
بیخي محفوظ او ساتلی وو او قندهار او هرات یې پخپل ځای
پرېښی وو او ایرانیانو د خپل وطن د بېولو په غم کې وو ا نو
په دې وخت کې د ابدالیانو زړې د ښمنۍ بیا سر راپورته کړو
او د مملکت په ګډه سره د دفاع ته ابدالیان هیڅ متوجه نه وو -
زمان خان قوت راټول کړه د جرګې اکثرو غړو د اغو بستل چې محي خان
الکوزي او نور ټول د زمان خان طرفداران دی او محمد خان د
مرحوم عبدالله خان خوی د هرات پخوانی رئیس دی چې په شورو کې
کې و سیزی د هرات په حکومت وي بیا هغه حاکم شي او هغه هم
راغی په (۱۷۲۲م نه تر ۱۷۲۳م) پورې وو نو محمد خان چې صفوي
دولت او غلجي دولت دواړه په خپلو خپلو لانجو او جګړو اخته -
ولیدل نو د خپلې علاقې هرات د ارتولو په فکر کې شو چې څه توسع
ورکړي - لومړی یې داو کړه چې په خراسان یې لښکر وکړ او د مشهد
ښار یې محاصره کړو دې محاصرې څلور میاشتې دوام وکړ او
او بن ده شوه نو محمدخان د هرات د ادارې او د رقیبانو د تشبثاتو
نه هم مشوش وو نو د مشهد د قلعه د محاصرې نه یې څه نتیجه
او نه اخسته واخستلی شوه یې نیغ هرات ته راوګرځېد او دیره قلعه
یې د سنګان چې د غوریان په غرب کې ده ونیوله - نو څو چې -

را روان شو. او هرات ته راغی او په مبنا رحاکم وټاکل شو.
عبدالغني الکوزی خو د متودیلوه کمزوری و وخو په شیطاني
اولسون کي تر ټولو ډیر مهرت وو ځکه د ذوالفقارخان سره حال
وګرځولو او ورته ویې ویل چي راځه مبنار څو ستا دی ولي
نیسته او زه به دې ملګری یم ځکه وشوه ذوالفقارخان را
پاڅېد او عبدالغني خان الکوزی م په الله یارخان پا څون وکړو
او د دواړو ځلو جنګ جوړ شو ټوټ نو د وطن تنظیم او اداره
په ځای پاتې شوه . دې جنګ جګړو شپږ میاشتې دوام وکړو
اخر جرګه پیاغونده شوه او فیصله یې وکړه چي ذوالفقارخان
دی مرو جان او الله یارخان دې فراه ته لاړ شي او خبره خلاصه
ده او خپل منځی رئیس یې هیڅ مقرر نه کړو او د هرات اداره
پخپله جرګې پلاس کي وځوله دا سستم اداره چي هیڅ رییس نه وو
م یو څو موده وچلیده په دې کي د صفوي طهماسپ دلښکرکشۍ
د تیاریه او یرغل آوازې م راخورې شوې وې او د هرات
په خلکو کي د موږي یرغل فکرله پیدا شوی وو. په دې خبره
د هرات جرګه م وخوځېدله او تکانډ یې وخوړکه ایرانیان دا
کار وکړي او مسئول شخص څوک په منځ کي نه وي پره به ژوله
په جرګه راشي موږ زړیې دا فیصله وکړه موږ زړیې الله یارخان
د فراه نه را وغوښت او په هرات بیا حاکم کړه او ذوالفقارخان

یې را وغوښتل د فراه ولایت یې ورته وسپاره او جرګه پوره شوه چې اوس بل ای نازک وخت دی او د ایراني حملې احتمال وېر دی نو راځئ چې داخلي لانجې پرېږدو او د ښمن ته مخه کړو. هم په دې وخت کې نادر افشار په هرات پسې راروان شو او حمله ئې کوله، په دې حال کې عبدالغني خان الکوزی چې جاه طلب سړی و او په دې لټه کې و چې او به خړې کړي او ماهیان ونیسي د ذوالفقارخان او الله یارخان په منځ کې یې د نفاق تخم وکاره او ذوالفقارخان یې تشویق کړ چې د الله یارخان په وهلو کې دی زه هم ملګری یم ته د خزرنه را روان شو او په الله یارخان حمله وکړه خفه هم ډیل ونکړو او پخپلو کې جنګ جوړ شو او د عمومي مصالحې په ځای خصمض د ځاني ګټو د پاره جنګ و او شپږ میاشتې اوږد شو نو خلک په تنګ شو او ملي جرګې بیا فیصله وکړه چې ذوالفقارخان دې مرو چاق ته لاړ شي او الله یارخان فراه ته ورشي او هم داسې وشوه د جرګې حکم نافذ وو د وا په خپلو خپلو ځایونو ته لاړل او هرات کې کوم رئیس او مشرنه شو پاتې او کار د جرګې پلاس کې پاتې شو او جرګې اداره کوله او دی بې رئیسه اداري سستم څو میاشتې دوام وکړو خو په دې کې د طهماسپ صفوي د فوځونو د ټولولو او د نادر افشار په هرات باندې د حملې کولو آوازې خورې او ترودې

شو چې بوجرګې فیصله وکړه او بیا یې الله یار خان یې له فراه نه راوبللو او د هرات رئیس یې جوړ تاکلو او ذوالفقار خان یې بیرته د فراه حاکم کړو. په دې وخت کې د نادر افشار د حملې د ویرې نه نور کورني جنګونه بس شو او هر څوک د خپلې علاقې د دفاع - په لټه بسنه او یکي شو - ترڅو چې د نادر افشار حملې پیل شوې او په هرات راغی.

## د هرات د حکومت سقوط

نادر افشار چې د شاه طهماسپ په نوم په شمالي کې لښکرې راټولې کړې وې او پوهېده چې اشرف هوتک د روس او ترکیې سره اخته دی نو په دې وېره چې مستقیماً په افغانستان حمله وکړم په دغه وخت کې لوېدیځ خراسان او سیستان کې د محمود سیستاني پلاس کې و. څرګنده چې هغه محمود هم په هغه وخت چې هوتکیان او صفوي دولت په جنګونو سره اخته دي او هم دا وخت دي چې په خراسان او سیستان کې د خپل مستقل حکومت اعلان وکړ او په ۱۷۲۲ م، کې سیستان د صفوي حکومت نه بیولی و خو نادر افشار هم په دې پوهېده چې د سیستان حکومت او هرات حکومت او د قندهار حکومت بېلابېل آزاد او مستقل ژوندون

نښتي کړل!! او هوتکو نښتې دې نو په خراسان یې حمله وکړه
او په لږ وخت کې یې خراسان ایراني لښکر وپرځول او محمود ـ
سیستاني هم په جنګ کې ووژل شو او په کال «۱۷۲۶م» کې تر
«۱۷۲۲م» پورې مشهد، نیشاپور او د خراسان ټولې علاقې نادر
ر لاندې کړې او ملک محمود ته د یوه پلوه هم کومک ونه رسېد
وروسته نادر افشار او شاه طهماسپ په هرات هم لښکر وکړو
او لومړی یې د سنګان قلعه د توپخانې په زور او قوت لاندې
کړه دا جنګ څه ناڅه پنځه ورځې اوږد شو او نادر په پام ـ
شوچې د شانه په توپخانه د خپل لښکر د فایې لین مضبوط کړي
خو نادر دا پېروځه ګټه ونکړه او بې نتیجې بېرته واپس خراسان
وګرځېد او بل کال په «۱۷۲۸م» کې نادر بیا سره د نوي وراوړ
لښکره په هرات باندې حمله وکړه الله یارخان ترکوسان پورې
وړته مخې ته راووت او نادر تر «کافر قلعه» او «سنه اسلام قلعه»
ته تر په شا لاړ، څه جنګ وشو او افغاني سواره په توپخانه ورغلل
او ډېر تلفات یې ورکړه خو دښمن یې هم لیوف کړو او په ځیله نادر
هم په ټپه زخمي شو په مقابله ایراني توپخانې د الله یارخان په لښکر
زوراوره بمباري وکړه او په جنګ یې ریل وکړو او افغاني لښکر
ته یې ډېر تاوان ور واړوه څه مات ګوډ لښکر الله یارخان بیا راټول
کړه او د هرات د دفاع په غرض هرات ته لاړ او څه لښکر یې د

خپلو او لا د ورو دراو سنتلو د پاره چې د غوریان په قلعه کې ور-
مخه خوا ولیږلو- نادر افشار چې خبر شو فوراً یې اقدام وکړو او په
هرات ور روان شو الله یارخان هم د خپل ټول لښکر سره روباط -
پریان ته چې د هرات نه لس فرسنګه لرې دی مخې ته ورغی او مخه
یې ونیوله جنګ دومره سخت شو چې ټور ټوپ او توپک د کاره
ولوېد او لاس په لاس جګړه ونښته او د نادر لښکر په شا شو او دوه
ورځې نور هم د هرات د موسمي سختو بادونو له امله د جنګ امکان
نه وو، په دریمه ورځ الله یارخان نادر ته د صلحې پیغام راولېږلو
او مخه ونه او نادر لږ نور هم په شا شو او د صلحې خبرې
روانې شوې - په دې وخت کې د فراه نه د ذوالفقارخان لښکر
هم د الله یارخان په مرسته راورسېد نادر چې دا لښکر ولیده نو د
شکیان کلی ته په شاه شو او بیا یې په جنګ پیل وکړو نادر په خپله
د توپخانې ترشا ناست وو او لښکر یې تر ماښامه پورې ښه
په مېړانه جنګ وکړو د شپې نادر شاه طهماسپ د شکیان په -
قلعه کې پرېښود او په خپله د ځه فوج سره د هرات د حملې په نیت
مخه خوا روان شو خو افغانان هم خبر شوی وو او د کوشک سر
یې لاره نیولې وه او جنګ جوړ شو او یوه ورځ یې نور هم دوام
وکړو او قطعي نتیجه یې ورنکړه په صباله بیا د صلحې خبرې شروع
شوې او عبدالغني خان الکوزي د دې مرکې محور وو په اخر کې

نادر افشار ومنله چې افغانې بندیان به خوشې کړي او پخپله به هم
خراسان ته لاړ شي او خپله تره یې هم الله یارخان ته ورکړه او
په دې ډول د نادر او افغانانو دا د هرات درې میاشتې جنګ ختم
شو، د دې نه پس نادر افشار د ایران هوتکو ته وزګار او متوجه
شو چې د هوتکو سره د جنګونو قصه مخکې تېره شوې ده د هرات د
جګړې نه وروسته نادر افشار د ترکیې نه هم د ایران د ځمکو د
آزادولو په سر په جنګ لګیا شو او ایران څه موده بیا څه په قرار
پاتې شو د هرات او قندهار حکومتونه تر هغه وخته چې شاه محمود
او شاه اشرف چې په خراسان او ایران کې ترمنځه لاړل هیڅ حرکت هم
نه کاوه خو په هغه وخت کې چې نادر د ایران په غرب کې د ترکو سره
ونښت نو د هرات حکومت اراده وکړه چې په خراسان حمله وکړي
او مشهد او نیشاپور بیرته ترلاسه کړي خو الله یارخان دې کار ته
غاړه کېنښوده او مخالفت یې وکړ خانانو او جرګې ذوالفقارخان
ابدالي چې جرګې په فراه حاکم کړی وو او غوښت او د الله یارخان
په ځای په هرات حاکم کړي خو الله یارخان نه پرېښوده او جنګ جګړې
جوړې شوې دې جګړو درې میاشتې دوام وکړو آخر ذوالفقارخان
د عبدالغني خان الکوزي په مرسته او کومک زور ور شو او هرات
یې په کال (۱۷۳۰ م) کې یې د الله یارخان نه ونیو او د جرګې په صلا
د هرات رئیس ذوالفقارخان وټاکل شو او الله یارخان مروچاق

ورکوو. له دې نه پس یې په یوه قوي او درنه حمله پیل وکړه
نادر هر کوښښ وکړه چې د خپلو توپچیانو او توپونو د ګولو په زور د -
افغاني لښکر مخنیوی وکړي خو ونشو او مجبوراً په شاشو. افغاني
لښکر فوراً قلعه «ساک سلمان» د خپل اردو مرکز وټاکه او له هغه ځایه
یې په د ښمن حملې وکړې. نادر هم فیصله وکړه چې یوه قطعي حمله په افغانانو
وکړي خو د زورورې توپخانې په زوره میدان ته راغی خو هیڅ یې هم
ونکړې شو او د هرات د محاصرې په فکر کې شو نو درې زره لښکر یې
د محمد سلطان د فراه د تالاکولو د پاره په هغه خوا ولیږل چې فراه ونیسي
او هرات ته د تګ راتګ لارې بندې کړي او په خپله یې د کبوتر ورونو
تپنګه کړه د هرات لښکر بیا بله نوې حمله پیل کړه او جنګ د شمس
اوبو په کلي کې جوړ شو دا ځل ایراني توپخانې سخته بمباري وکړه
او درې زره افغاني ځلمي یې په میدان کې پرېښودل او دا تلفات
ډېر درانه وو او د افغانانو د ډېر د کار سړي ووژل شول افغاني
لښکر بېرته ښار ته ستون شو او د نوي قوې د جوړېدو د پاره په
قلعه کې قلعه بند شو. نادر چې دا ولیدل نو راغی د ناګهان په کلي کې
او د ملان د پله سر یې مقرونه جوړ کړه او د خپل اُردو نه چار
چاپېره یې خندقونه وکنستل په هغه وخت کې د لاور لوی خان سره
د درې زره لښکر هرات ته راورسېد او په ځای د دوست د -
د ښمن سره یوځای شو دا شخص هغه دلاور خان تایمني و چې مخکې

یې د نادر لښکر سره جنګ کړی وو او مات شوی وو او د قندهار دربار ته یې پناه وړې وه . او هلته په قندهار کې د شاه حسین هوتکي نه - خفه شو او د هغه د حکومت په وړاندې پسې شو او په هرات کې نادر افشار ته راغی او غوښتل یې چې نادرافشار په قندهار او شاه حسین باندې حمله وکړي . او د قندهار ضعیفې نقطې ور ته ښې معلومې وې د دلاور ملګرتیا نادرافشار نور هم ډاډه او په قندهار باندې د حملې د پاره وهڅاوه په دې وخت کې ایراني لښکر په فراه کې خاشې یټولې وو نادر امر وکړ چې د کرمان نه دې فوځونه د امام ویردي او محمد سلطان په مشرۍ کې په فراه ورشي او خپل ورور ابراهیم ته یې امر کړی وو چې د مشهد او نیشاپور نه د خپل لښکر سره ته هم په فراه ورشه خو علي مردان خان ابدالي افسر لا مخکې د امام ویردي او سلطان محمد - لښکر ته ماتې ور کړې وه او هغوی یې د ده نو په کلي کې مات کړي وو . او سلطان محمد په جنګ کې وژل شوی وو ، علیمردان خان بېرته د فراه ښار ته ننوت خو د قندهار او فراه او هرات لارې د ښمن بندې کړې نادرافشار لس زره لښکر د سګر د مورچې د - استحکام د پاره او لس زره نور لښکر یې د شرقي سنګر و د ټینګښتیا د پاره مامور کړو او لس زره لښکر یې د ناګهان د سنګر په جنوب د هرات کې د ساتنې د پاره مقرر کړو او د خپل اردو د پاره یې د اردوخان کلي مقرر کړو او د هرات قلعه بند شو ذوالفقارخان د ښار د برالونه او برجونه

ترمیم کړه او قوی یونه یې پکې هم ونیول او په ایراني لښکرې ورته
کولې چې یوه ورځ یوه ګولۍ د نادر په خیمه هم ولګېده خو نادر په -
خیمه کې نه و او وتلی و او له مرګه بچ شو ذوالفقارخان یوه ورځ
په ۱۱۴۳هـ کې اراده وکړه چې په ایراني لښکر یوه عوخه قطعي حمله
وکړي او د خپله لښکره سره د ښار نه راووت او د نادر په سنګرې
سخته حمله وکړه خو نادر هم په سختۍ مدافعه وکړه او په دې
حال کې د ښار شرقي خوا ته لښکر هم د نادر کومک ته راورسېد او افغاني
لښکر د دوو خواو په منځ کې ګیر شو او د ماتې وېره منځ ته راغله او
افغاني لښکر بېرته راوګرځېد او د سپېلو توره او په زوره د دښمن
د لښکر صفونه یې ورماتت کړه او د خپلو قلو لاره یې آزاده کړه
او بېرته افغاني لښکر ښار ته ننوتلو نادر هم زړور شو او محاصره
کړې نوره هم تنګه کړه او سخته یې کړه چې هر افغان به د ښار نه
د خپلې اوښې او خوراک د پاره د باندې تللو نه د توري په زور
به پېرېده په دې لړ کې په کرخ کې یوه افغاني دله د ایراني لښکر
سره مقابل شوه او افغانانو ته په دې جنګ کې ډېر تاوانونه ور
رسېدل په دې پوځ د ښې میاشتې نوره هم جنګ او په دې تنګ
خوراکي هرات په خلکو قحطي راغله او خوراک ورک شو سیدال خان
ناصري د علي د حاصلو په غرض له ښاره ووت خو د بېرته راتلو مجال
یې پیدا نکړ او اسفزار ته لاړ ذوالفقارخان هم نور مجبور شو او

قومي جرګه یې راوبلله او ورته ویې ویل چې زه د دښمن نه دومره په تنګ نه یم لکه خوره چې خپلو مخالفینو نه په تنګ یم ماته لاره اوښایې چې څه وکړم؟ چې خلکو کې د الله یارخان ملګري ډېر وو ویې ویل چې اولس حکومت بېرته الله یارخان ته وسپاري نو د مسئلې حل به پیدا شي، ذوالفقارخان هم د جرګې د فیصلې مخالفت خو نشو کولی!! دا خبره یې د ناچارۍ نه ومنله او هغوته یې وویل چې ورشه الله یارخان چې د نادر افشار سره دی راولئه چې زه ورته حکومت وسپارم د جرګې د فیصلې سره سم یو هیئت د نادر اردو ته ورغی او ورته ویې ویل چې د دې مسلمان کشي نه څه مطلب دی؟ الله یارخان ستا دوست دی د موږ سره یې واستوه چې د هرات حکومت ورته حواله شي، نادر هم د افغانانو د اوږدو جنګونو نه تنګ شوی وو فوراً یې الله یارخان د هرات د حاکم په حیث ومانه او د خپل اطاعت په شرط یې هرات ته واستاوه الله یارخان چې هرات ته راغی نو ذوالفقارخان د وعدې سره سم د هرات حکومت ورته وسپاره او پخپله اسفزار ته تری لاړ او د سیدال خان سره یو ځای شو، سیدال خان ناصر او ذوالفقارخان او څه نور و اسفزاري او ابدالیان په فراه کې د قلابند و افغانانو د خلاصون د پاره هغه خوا ورغلل او د فراه قلعه بند افغانان یې د ظهیرالدوله ابراهیم د نادر د ورور په مقابل کې تقویه کړه او پخپله سیدال خان

کندهار ته ورغي چې د شاه حسین نه کومک واخلي ، شاه حسین ورته دوه زره نفره عسکر ورکړه خو چې سیدال خان فراه ته را ورسید نو د هرات د ماتې خبر پخپله دالله یارخان ، دا بله قصه ده چې الله یار خان څنګه مات شو او خپل لښکر ور سره جفا وکړه ، دلاسه ورته را ورسید - د فراه د خلکو هم په دې خبره حوصله ماته شوه او قلعه یې د ښمن ته پریښوده - سیدال خان او ذوالفقارخان او الله یارخان هم چې راغلی وو نو ل قندهار ته لاړل . شاه حسین هوتک ذوالفقارخان او د هغه کشر ورور احمدخان (چې وروسته - احمد شاه بابا شو) بندیان کړه او الله یارخان هم له ویرې ملتان ته لاړ او هم هلته مړ شو او ذوالفقارخان او ورور یې احمدخان په (۱۷۳۸م) کې د نادر افشار په لاس ور غلل او د ایران مازندران ته یې فرار کړه ذوالفقارخان هم هلته وېل کیږي چې په زهرو ووژل شو او کشر ورور یې احمدخان بیا د سیاست صحنې ته را ووت او ښه رول یې ولوباوه - نادر افشار د (۱۱) میاشتې جنګونو نه پس په (۱۷۳۱م) ، کې هرات و نیولو او د هرات خلکو سره یې ښه ګذاره کړله ځکه چې نادر اصلاً د خراسان او سېد ونکی او د دې ځای د یوې قبیلې افشار ته منسوب وو او د افغانانو د جنګیالیتوب نه هم ډېر متاثر وو ، او مخکې د نادر افشار ډېر باور په ترکمانو وو خو پس له دې افغانانو ته خاصه توجه وکړه او غوښتل یې چې

د دوی په کومک په توران او هند یرغلونه وکړي او د دې مقصد دپاره یې عبدالغني خان الکوزی د ابدالیانو رئیس وټاکه او هم د دوی جاه طلب شخص په واسطه یې وکړای شوای چې یوه (۱۲) زره ییزه فرقه تشکیل کړي چې ټول افغانان وو او غلجي محمد خان یې د دغه فرقې قوماندان مقرر کړ او چې په «میرخان» ملقب وو، نادر افشار هم د دې لوی قوې په زور په هند او ماوراالنهر او د عثماني دولت سره په جنګونو او داغستان کې یې ډیرې کامیابۍ او بری تر لاسه کړه عبدالغني الکوزی د نادر په مخکې خدمتونه وکړه نو په صله کې یې د قندهار والي مقرر شو او احمد خان ابدالي د وزیکو د قوې قوماندان وټاکه نادر په افغانانو ډیر اعتماد وکړ او له دې کبله د ترکې فوځیانو او ایراني فوځیانو د نادر سره د بنمني را پیدا شوه. نادر خپل ځوی رضاقلي د هرات حاکم وټاکه خو د هرات خلک او په تیره دهقانان د ایران فوځونو د لاسه ډیر په تنګ وو.

## توکنیز وضعیت

د افغانستان د ویش او تجزیې نه وروسته په شپاړلسمه پیړۍ کې د ازبکو د ولتونو او ایراني صفویانو او د هند بابري دولت سره د اوږدو مبارزو نه پس په افغانانو کې بیا نوی حرکت او جنبش

را پیدا شو او د آزادۍ خواهښه پته جذبه یې بیا راولټېدله، او د کال (۱۷۰۹م) نه د میرویس د حرکت نه پیلولی د نادر د استیلا پورې (۱۷۳۱م) پورې دا لنډه موده کېږي چې د تاریخي مقیاس په اساس بیخي د یو ملت د پاره لنډ عمر چې (۳۰) کاله کېږي ګڼل کېږي نو په دې لنډه موده کې چې اکثره برخه یې په جنګونو او فتح او شکست - لګېدلې وه نو ځکه خاص تمدني فرهنګي او اقتصادي انکشافاتو ته افغان ملت ځکه فرصت نه وو پیدا کړی ترڅو چې په اتلسمه پېړۍ کې څه اجتماعي تحولونه منځ ته راغلل او نوی سیاسي بدلون په افغانستان کې رامنځ ته شو چې د نوي افغانستان د تشکیل واقعه وه چې په اتلسمه (۱۸) پېړۍ کې پېښه شوه.

# افشاري دولت او افغانستان

په ایران کې ټولنیز شرایط د اتلسمې پېړۍ په اوایلو کې داسې وو چې د یو او متمرکز ایران د رامنځ ته کېدو زمینه یې برابره کړې وه چې دا کار د نادر افشار په مشرۍ کې وشو.

## ښه نو نادر څوک وو؟

نادرقلي د امام قلي پوستین دوز ځوی وو او د ابیورد - او سیدونکی خراساني وو په (۱۶۸۸م) کې پیدا شوی وو او نږدې کم

یې نه وه کړې او آمې وو د پلار مرګ نه وروسته نادر م د پوستین ګنډلو کار کاوه خو د دوی په علاقه د ازبکو داړه راغله او نادر او مور یې ازبکو بندیان بوتلل مور یې په بند کې مړه شوه او څلور کاله نادر د ازبکو د بند نه وتښتېد او خپل اصلي وطن خراسان ته راغی خو د ازبکو بند او په بند کې یې د مور مرګ د نادر د پاره د ویښیدو یوه متروکه ، قمچین ، وه چې نادر یې را بېدار کړ او په نوو فکرو منو اخته شو - او یو ماجراجو سړی ترې جوړ شو چې کله ناکله به یې لارې م ووهلې او قافلې به یې لوټلې . او په دې چې دی زړه ور او هوښیار و نو تل به د خپلو ملګرو مشر م وو او د محلي مشرانو خانانو سره به یې نوکري م کوله . په څه وخت کې چې دی د ابیورد حاکم سره نوکر و په خراسان د ازبکو داړه راپرېوتله - او د ملک محمود د سیستان د مستقل حاکم له خوا یې چې مدافعه کېدله نو نادر په دغه جګړو کې مهمه برخه واخیسته او ښه میړانه یې وښودله او ازبکو ته یې ماتې ورکړه - په دې منځ کې د ابیورد حاکم مړ شو نو ملک محمود سیستاني مستقل حاکم د ابیورد د علاقې حکومت نادر افشار ته وسپاره او نادر له دې نه پس ښه نومیالی شو - خو ملک محمود زړور شو چې نادر داسې څوک نه دی چې د چا په دام کې د ډېره موده پاتې شي نو -

غوښتل یې چې له منځه نه یې لرې کړي خو نادر م وپوهېده او وتښتېد او د کلات خان ته یې د خپلو ملګرو سره پناه ور وړه . په دې وخت

کې صفوي شه طهماسپ د غلجو د مقابلې د پاره د لښکر د ټولولو په لټه کې ؤ او د نادر د ميړانې هم اوريدلې ؤ نو شه طهماسپ نادر ته ډېر بلنه ورکړه چې را شي او د ده په لښکر کې ګډون وکړي او د افغانانو په مقابل کې د ده مرسته وکړي، نادر لومړى د کلات خان ووژلو او د هغه ښځه يې واخيسته او ديوې ډلې سره ورغى ولې سره د شه طهماسپ لښکر ته راغى او د شه طهماسپ سره ودرېد او په شاهي لښکر کې شامل شو، ايراني لښکر هم د نادر د ګذارې نه اغيزمن شو او د نادر مشري يې ومنله او په لښکريانو برګران شو، نادر وکړى شو چې سره د ملك محمود په مقابل کې لښکرجوړ کړي او د شه طهماسپ په نوم د ملك محمود سره وجنګيږي په کال (۱۷۲۶م)، کې نادر د ملك محمود په علاقه نيشاپور ورغى او فتح يې وکړه او وروسته يې د نيشاپور او مشهد ټول ولايت او په (۱۷۲۷م)، کې يې سيستان هم د ملك محمود نه ونيولو او ملك محمود يې ووژلو، د دې مرانو د نادر نوم خپور کړ او د ايراني لښکر سپه سالار مقرر شو او نوم يې په ايران او افغانستان کې خپور شو او شه طهماسپ صرف د نادر د لاس يوه اله شان ووځکه چې شه طهماسپ يو شهزاده ؤ او په اشرافي او درباري محيط کې لوى شوى ؤ او نادر خو هغه څوك ؤ چې د عوامونه راوتلى ؤ او ډېرې تودې سړې يې ليدلې او زغملې وې او چپل سرګې يې لوى

نقشې هم درلودې. او تجربه کار سړی و، نادر په (۱۷۲۲م) کې
کې په خراسان کې او استرآباد کې بنسټې ټینګې کړې چې د شرق او-
غرب غلجوا و ابدالو ددوو قومونو غلجوا و ابدالو په منځ کې ورغلی
پروت وو، نادر لومړی وار هرات ته متوجه شو او ابدالیان یې
کېنول چې یې طرفه اوسي. او بیا غلجو ته چې په ایران کې وو په
پام شو په (۱۷۲۹م) کې د غلجو حکومت ته په سختو او پرله پسې
جنګونو کې ماتې ورکړه او له منځه یې یوړه او بېرته هرات ته را
وګرځېد او تر (۱۷۳۱م) کاله پورې یې ابدالي حکومت هم مات کړ و
او هرات او فراه یې ونیول او بېرته ایران ته متوجه شو او په-
(۱۷۳۲م) کې د عثماني دولت سره دایران د ځمکو د آزادولو د پاره
په جګړه پیل وکړ و او د عثماني دولت نه یې اذربایجان او عراق
یې تر یې د نورو په زور ونیول خو څنګه شه طهماسپ د همدان
په جنګ کې ماتې وکړه او د ګنجه د معاهدې په اثر یې تفلس د
ایران او نجوان او شاخه او داغستان یې عثماني دولت ته پرېښودل
نادر په دې خفه شو او شه طهماسپ یې د بادشاهت نه خلع کړ و
او د هغې په ځای د هغه ورکوټی ځوی عباس یې بادشاه کړه او نادر
یې نایب السلطنه شو، او بیا د عثماني دولت سره په جګړه اخته شو
خو د کرکوک په جګړه کې له ترکانو نه په (۱۷۳۲م) کې ماتې وکړه خو په
څنلو بیا حملو یې ترکانو نه د بغداد د دجلې په جزیره کې ماتې ورکړه

او په ایران کې هم ترکان مات شوا وتر (۱۷۳۵م)، پورې دایران ځمکې له ترکانو نه آزادې کړې او گرجستان او ارمنستان یې هم ونیول او وروسته یې دعثماني دولت سره صلحه وکړه په دې جنگونو کې افغاني لښکرو د نادرکومک کړی وو نادر په دې حال کې د روس سره په تماس کې وو او په (۱۷۳۲م)، او (۱۷۳۵م)، کې د دوو معاهدو په اثر روس هم دایراني خاورې نه لاس واخیست او دخزر دبحیرې غاړې او باکو او دربند یې ایران ته پرېښودل او نادر بیا دایران سیاسي یووالی منځ ته راووړ او په (۱۷۳۶م)، کې یې دایران دعسکري او ملکي اوخلکو نه لویه جرگه نادر راوغوښتله او دخراسان په صحرای مغان کې داجرگه جوړه کړې شوه- او نادر ورته د بادشاه د انتخاب پېشنهاد وړاندې کړو ټولو په یوه خوله نادر د ایران د سلطنت بادشاهي ومانه خو د نادرلویه ارزو او مستقله نقشه په دماغ کې لرله نوواخبره یې په دې شرطونو ومنله چې تاسې ټول به ما سره ټینگه وعده کړه چې د ما سره به ودرېږه اول داچې ایران او افغانستان دې یو کړې شي او یو مرکزیت دې ولري او غوښتل یې چې دا مرکز په خراسان کې وي او دمشهد مرکزیت یې د اصفهان نه غوره گڼلو، دویم داچې دواړه افغانستان او دایران خلك دې په یو رسمي مذهب وي چې مذهبي کینه ورکه شي او نادر پخپله حنفي مذهب وو غوښتل یې چې خلك هم دامذهب ومني ټولو خلکو بیا په یوه خوله د مغان په جرگه کې دادواړه

شرطونه هم ومنل او نادر افشار په عنوان د «نادرشاه» اعلان شو، له دې نه پس نادرشاه افغانستان ته په پام شو او په (۱۷۳۷م)، کال کې د قندهار د نیولو د پاره یو لوی لښکر وکړ او خپل خوی رضاقلي د یوه لښکر سره د شمالي افغانستان د نیولو د پاره هغه خوا ولېږلو، چې په (۱۷۳۸م)، کاله پورې نادر شاه د قندهار غلجي دولت له منځه وړو (۱) او رضاقلي هم د شمالي افغانستان واړه محلي حکومتونه د بلخ نه د مرو پورې ونیول، نادرشاه د قندهار نه په مرکزي افغانستان او شرقي خوا ور روان شو هغه وخت کابلستان کې شېرخان او په شرقي ایالتو کې ناصرخان د هند د بابري دولت له خوا حاکمان وو، شېرخان څه مقاومت وکړ خو مات شو او د غزني نه تر کابل، جلال آباده او پېښوره پورې خلکو د هند د بابري دولت مرسته نه کوله نادر شاه مخ په وړاندې لاړو، د دغه خایو خلک د بابري دولت نه خفه وو او هم د نادرشاه د لښکر په مخکې د غلجو او ابدالیو د لښکر دلې را روانې وې، نادرشاه په اسانه تر جلال آباده ورسېد او په ښو اخلاقو او د پیسو په زور یې افریدي او شینواري قبایل هم رام کړه او خپل پلوي یې کړل او د هغو نه یې هم عسکري ټولګي جوړ کړل او په خیبر ور تېر شو او بابري دولت کې د مقاومت قوت نه وو نو نادرشاه ښه په قراره د پنجاب تر مرکزه لاهوره مخ په وړاندې لاړ او بابري دولت هغه شهرت چې محمد بابر او همایون او اکبر او جهانګیر او شاه جهان

(۱) د غلجو په (۱۷۰۹م)، کې قایم شوی او په (۱۷۳۸م)، کې له منځه لاړ (۲۹) کاله عمر یې وو.

او اورنګ زیب ګټلی او ساتلی وو، د اورنګ زیب له مرګه پس نه
وو پاتې او بابري دولت د انقراض په حال کې وو او د مغولو جانشین
«محمد شاه» تش د نامې د هند امپراطور وو نادرشاه هم د لاهور نه د
هند پایتخت ته مخه وکړه او په ستلج ور پورې شو او په کال (۱۷۳۹)
میلادي کې په کرنال کې د بابري دولت روستی مدافع قوت هم مات
کړ او دهلي ته ورسید او په دې توګه د بابري دولت حیثیت د هند
د خلکو په نظر کې نور پاتې نه شو او یو شمیر جاګیردارا و راجه او
جوبدار د هند د بابري دولت مرسته ونکړه او مغلي بادشاهۍ د تاج
او تخت کومک هیڅ ونکړو او محمد شاه بابري بادشاه له ناکامه تسلیم شو
او څنګه لوړیږي نصرالله د نادر شاه خوی ته ورکړه په دې کې دا
افواه او آوازه خوره شوه چې نادرشاه مړ شو د دهلي خلک په دې
راو پاریدل او پاڅون یې وکړو خو نادر شاه او لښکریې هم صرفه
ونکړه او اته ساعته یې د دهلي په خلکو توري وچلولې او وینې د ریخه
یې مړه کړل. او د دهلي ښارونې هم تالا والا کړو نادرشاه اته
ورځې په دهلي کې پاتې شو او بیا یې د هند حکومت پخواني بادشاه
محمد شاه بابري ته بیرته و سپاره او څنګه نادرشاه افغانستان ته روان
شو او څو میلونه طلا او ډېر جواهرات چې «کوه نور الماس» هم
پکې وو او تخت طاوس چې شاه جهان بادشاه په ډېر لګښت جوړ
کړی وو هم د ځان سره ویوړل نادر پس له دې دوه د ولت پیدا

کړی و وچې دخیبر نه د تېرېدلو په وخت یې د خوا وشا خلکو
ته یې یو میلون روپۍ ورو وبخښلې او کابل ته راغی نادرشاه د-
کابل نه یو وار د پکتیا په لاره په سند پسې لښکر وکړ او سند
یې د نورمحمد د هغه ځای د والي نه ونیولو چې د نادرشاه حکم یې نه
و منلی او نادرشاه یو وار د هرات نه د پکتیا او کرمې په لاره او
دېره اسمعیل خان (پلوکه) حکم سند ته په (۱۷۳۹م) کې ورغلی و ونادرشاه-
نورمحمد تسلیم کړو او یو میلون او درې لکه روپۍ او یوه وېره مبنه
کتابخانه ترې هم لاندې کړه او د خان سره یې وېوړه او د میرنورمحمد
ځامن یې هم یرغل بوتلل نادرشاه د هغه غنیمتونو نه چې په سندکې لاس
ته ورغلی وو هر یو لوی افسر ته پنځه سوه اشرفۍ او ورو افسرانو
ته د درې سوه نه ینولی تر یو سلو اشرفو پورې او هر سپاهي ته
دوه اشرفۍ وبخښلې چې په هغه وخت کې یوه اشرفۍ د (۲۴) روپو
معادل وه. په (۱۷۴۰م) کې نادرشاه د جیحون نه ورتېرشو او
بخارا ته نژدې ورغی خو د بخارا امیر هم بې جنګه تسلیم شو او خپله
لور یې د نادرشاه وراره علي قلی ته په نکاح ورکړه او دا یې هم
ومنله چې د دواړو دولتونو سرحد به د پخوا په شان دآموسیند
وي او نادرشاه د بُخارا نه راوګرځېد او په خوارزم ورغی خو د
خیوې خان مقاومت وکړ او په جنګ کې مړ شو نادرشاه په خیوه
کې خپل حاکم مقرر کړ او بیا په خپله بېرته مشهد د دولت مرکز ته راغی

خو په ځینو کې د نادرشاه حکومت ډیر دوام و نکړی شو او د خیوې
د ازبکو د پخوانۍ حاکمې کورنۍ یوه تن ځینو و نیوله ، د (۱۷۴۰م)
نه پس نادرشاه د ټول مملکت په نظم و نسق مصروف او ښښتی وو
او د لویو کارونو نه یې یو دا وو چې یوه بحري قوه یې د یو
انګریز په مشوره کې تشکیل کړه او د خزر په بحیره کې کشتۍ جوړول
پیل کړه او د فارس د خلیج لبنګرګاه یې هم جوړه کړه ، خو نادر
دا ټول فتوحات د ټول قهرمانان دماغ پیدا وار ګڼل او د مطلق العنانۍ
د تاثیر لاندې راغی او قهرند و نکی او ظالم او مستبد شو خو خبر نه
وو چې د دې انجام به څه وي ؟ د ټولو طبقو ګټې په خطر کې وې او
روحانیون شیعه هم ترې متاثر او خفه وو او په پټه به یې خلک
د نادرشاه په خلاف لمسول ، او ځینو خلکو پاڅون هم وکړو او د بختیاري
قبیلې او لزګي قبیلې هم کله ناکله پاڅونونه کول خو نادرشاه به هغه په
ټول زور او قوت وځپل او رام کول به یې یو وار نادرشاه د شیروان
نه مازندران ته په څه مهم لاروان وو چې په ځنګل کې چاپې ورته
وکړې او په لاس زخمي شو په کال (۱۷۴۴م) کې یو تن کرمانی د -
شاه حسین صفوي د ورور په نوم راپورته شو او ترکیه ته یې
پناه وروړه چې د نادرشاه نه د ترکیې په کومک بېرته سلطنت ونیسي
ترکیه او روس هم د نادرشاه د زور نه په ویره کې وو او مخالفت
یې کولو دې واقعاتو نادرشاه دومره عصبي کړو چې په لږه اشتباه

ځپل ځوی او ولیعهد رضاقلي ړوند کړ او ځپل وراره علي قلي چې
په سیستان کې حاکم و، ورته بدګمانه وو او قزلباش او افشار افسران
هم ترې په دې ناراضه وو چې نادرشاه ډېر اعتماد په افغاني افسرانو
کولو - او ایراني افسران لکه محمد قلي خان کشیکچي باشي چې د نادر
شاه د محافظې ولې افسر وو او محمد خان قاجار، موسی خان افشار
قوچه بېګ ارومي، صالح خان ابیوردي، او (۷۰) تنو نورو
داوطلبي وکړه چې نادرشاه به له منځه وړي او لاس یې سره یو
کړه - په کال (۱۷۴۷م) کې په فتح آباد کې د شپې یې نادرشاه و
وژلو او د هغه بار بُنه یې تالا کړه خو افغاني لښکریانو د نادرشاه
حرم او کورنۍ د باغیانو د لاس نه بېچ کړه او د دې خدمت په بدل
کې د حرم خلکو د کوه نور الماس احمدخان افغان ابدالي ته چې -
"وروسته احمد شاه" شو ورکړه او منه یې ترې وکړه د نادرشاه
د مرګ نه وروسته او خاص چې افغانان خپل وطن قندهار ته ترې
لاړل نو د خراسان او نور ایران د اضطرار او اضطراب او په هرج
او مرج کې پاتې شو په ایران کې محمد حسین قاجار د خزر په غاړه
او غلجي آزاد خان په آذربایجان او هراکلیوس په ګرجستان،
ابوالفتح او علیمردان (رقبا) یې په اصفهان کې او کریم خان د
زند د قبیلې رئیس په جنوب د ایران کې هر یوه د خان خانۍ استقلال
اعلان وکړ او دیو بل د غاړې غوړ شو او پخپلو منځو کې سره

اخته شو. لس کاله هم دغسې ملوک الطوایفي وچلېده او ایران کې بدحال
وو ترڅو چې کریم خان زند په هوړو بریالی شو او په (۱۷۵۷م) کې
یې نورو حکمرانانو د منځه لرې کړه او په ایران کې یې یو مرکزي حکومت
جوړ کړی شو داسې د ایران د یو مدبر باد شاه په حیث پیژندل
کېده او ترمرګه (۱۷۷۸م) پورې د باد شاهۍ عنوان د خان د پاره
غوره نکړ او لکه د میرویس هوتکي په شان یې د باد شاهۍ
عنوان و نه مانه او د قوم مشر او رئیس او امیر و او خلکو به وته
(وکیل الرعایا) ویلو او دالقب ملت ورکړی وو خو د دې سړي
د مرګ نه پس په (۱۷۷۸م) کې ایران بیا په خپلو منځو کې اخته شو
او په یو بل به یې یرغلونه کول که څه هم لطف علي خان زند شپږ
کاله نور هم تر قتلولو زورور وو او لوی حیثیت یې درلود خو
مرکزي قوي دولت په منځ کې نه وو په دې منځ کې یو تن -
مقطوع النسل او قهار په نوم د اغا محمد خان قاجار په خپلو رقیبو "فیو
والانو" زمکې والو باندې بریالی شو او په کال (۱۷۹۴م) کې
په قوه او د مټ په زور یې د خپلې قاجاري باد شاهۍ د -
سلسلې اساس کېښود او په ایران باد شاه شو او هم دا باد شاه
وو چې په یوه ورځ یې په کرمان کې (۴۰) زره د انسانانو سترګې
حواله کړې وې او (۲۰) زره کرماني ړانده کړې شو او د هغو
ښځې یې دا ردو سپایانو ته وبخښلې او کرمان د شل زره ړندو

په اشر په یوه افسانوي مناره بدل شو. په خراسان کې د نادرشاه د وفات نه پس په (۱۷۴۷م)، کې علي قلي خان د نادرشاه وراره په مشهد کې د خپلې بادشاهۍ اعلان وکړ او د «عادل شاه» عنوان يې غوره کړ او د کلات د قلعه نه يې د څلوېښتو ميلونو نه زيات طلا او جواهر راوړل، علي قلي غير د شاهرخ نه چې څوارلس کلن ورور او د نادرشاه نمسی وو، د خپل ټول اولادونه او اخلاف قتل اعدام کړه او ابراهيم د علي قلي ورور چې په عراق حاکم وو د خپل ورور په مخالفت پاڅون وکړ او هغه يې ړوند کړ او د خپلې بادشاهۍ اعلان يې وکړ خو خلکو په هغه هم پاڅون وکړ او دواړه وروڼه يې اعدام کړه او ويې وژل او شاهرخ يې بادشاه کړ په دې منځ کې يو روحاني سړی را پاڅېد چې سيد محمد يې نوم وو او د مشهد د زيارت متولي وو او ډېر اعتباري وو پاڅون يې وکړ او شاهرخ يې بندي کړ او ړوند يې کړه او ځان يې د «سليمان شاه» په عنوان بادشاه کړ او د خپلې بادشاهۍ اعلان يې وکړ خو د جلايرخانانو (يوسف علي خان او زال خان)، ورنه مانه او سيد محمد يې لرې کړ او ړوند شاهرخ يې د نامې بادشاه کړ او د دوی او نورو فيودالانو د لاس آله او لوبونی وو لکه امير علم خان خزيمه، جعفرخان کرد، بهبود خان مروي احمد جان بيات، امير خان توپچي باشي او نور شو چې قتل (۱۶)، تنه

کېدل او د حکومت واگې به يې لاس په لاس گرځولې او خراسان کې دې وضعې دوام درلود چې تر څو احمد شاه ابدالي نوی افغاني دولت په ۱۷۴۷م کې تشکيل کړ او خراسان ته راغی او د شهرخ ته يې د خراسان ولايت په نوم و سپارلو او اصلي واکدار يې افغان نور محمد خان وو چې د حکومت نايب وټاکل شو او چارې به يې اداره کولې او د خراسان ولايت بيا په افغانستان وتاړل شو.

# افغانستان د اتلسمې پېړۍ نه تر شلمې پېړۍ پورې

## الف :- ابدالي دولت او د افغانستان نوی تشکیل

### ابدالي احمدشاه د «۱۷۴۷م نه تر ۱۷۷۳م» پورې



په دې وخت کې د افغانستان خلك او په تېره د قندهار ولس د غلجیو، مکو والوا او د پرد و سره پرله پسې مبارزو تر پوزې را ستلي وو او په افغانستان کې دیو متمرکز او قوي دولت د جوړېدو زمینه ښه برابره شوې وه نو د احمدشاه په مشره او قیادت کې ابدالي دولت منځ ته راغی احمد شاه د پلار محمد زمانخان د مرګ په کال په ۱۷۲۲ میلادي کې په هرات کې وزېږېد[۱]، په دغه وخت کې د دوی تربور او د احمد شاه د پلار محمد زمانخان رقیب محمد خان ابدالي د هرات په حکومت تاکلی شوی و او هغه د زمان خان کورنۍ یعنې د احمدشاه مور سره

---

(۱) احمدشاه بابا په (۱۷۲۲م) کې تولد او په (۱۷۷۳م) کې په تو باکي د (۵۰) کالو په عمر وفات شوی دی رجب (۱۱۸۷ هـ.ق).- (۳۷۳- پاڼه مسیر تاریخ).

د خپل واړه ځوی فراه ته کډه وکړه ، وروسته احمد شاه لوی شو
خو د خپل مشر ورور ذوالفقارخان سره څه د نادرافشار په مقابل
کې مبارزه کې او نه په نورو سیاسي چارو کې څه برخه اخیستې وه او
نه یې څه خاص سیاسي فعالیت کړی وو خو وروسته د خپل ورور
د قندهار د غلجو دربارته ورغی او د شاه حسین هوتکي سره پناه گزین
شو او هم هلته په سیاسي توگه بندیان کړی شو، څه وخت چې نادرافشار
په (۱۷۳۸م) کې د قندهار ښار لاندې کړه نو ذوالفقارخان او احمدخان
یې د بنده نه خلاص کړه او مازندران د ایران ته یې تبعید کړه او
ذوالفقارخان لکه چې ویلی شي هم هلته په زهرو ووژل شو، احمدخان
په دغه وخت کې شل کلن و او ښه ښکلي ځواني یې درلوده او د نادر
شاه خراساني دربار ته ورغی نادرشاه افشارخراساني دی په خپل فوځ
کې او خاص په افغاني فوځ کې د افسر په حیث مقرر کړه او وروسته
یې چې د احمدخان اخلاق او کفایت او صلاحیت ولیده نو د ازبکي او
ابدالي قواوو قوماندان یې هم وټاکلو او د نادرشاه د مرگه پورې-
احمدخان په دغه رتبه په نادري فوځ کې پاتې شو. په دې وخت کې
احمد شاه په خپلو فوځیانو کې ښه نوم وگټلو او په نادرشاه یې هم دوینا
او کړو ډېر اثر وشو. د نادرخان د مرگ په کال احمدخان (۲۵) کلن
و او د ژوندانه تودې سړې یې لیدلې وې او عزتونه او ذلتونه
حکومونه او فرار دا هرڅه یې لیدلي او کتلي و او دا ټول واقعات

یې په ذهن کې وراو د ده په طبع او اخلاقو یې اثر کړی وو او په
خوږ بوي کې پخلی پیدا کړی و. او احمدخان زده کړه هم کوله او په
پښتو او دري ژبو کې یې لیکوالي هم کولی شوه، او د پښتو ژبې بنه
وتلی شاعر هم وو چې دیوان یې شته دی اوځه وخت چې نادر شاه
ووژل شو نو احمدخان او ملګري یې نور محمد غلجي چې په فوځ کې
اړی ګړی ولید نو سره د چنله لښکره چې (۴۰۰۰) غلجي او (۱۲۰۰۰) نور
ابدالیان او ورزبک او نور افغانان پکې وو د قندهار په خوا لاړل
قندهار چې دافغانانو بین الاقوامي مرکز وو نو هلته یې یوه قومي
جرګه د ټولو افغانانو، غلجو، دُرانو، ازبکو، تاجکو، هزاره وو
او بلوڅو نه راټوله کړه او نور محمدخان وړته د بادشاه دانتخابولو
پیشنهاد وړاندې کړو، داجرګه په (۱۷۴۷م) کال د شهر سُرخ د
زیارت په ودانه کې کېدله چې د نادرآباد د نظامي قلعه سره
واقع وه او دې جرګې (۹) ورځې دوام وکړو او په دې جرګو او
مرکو کې اتفاق دارا و ممکن نه شو چابه یوځه ویل او چابه بل څه!!
او موضوع هم ډېره مهمه وه او هرلوی خان د سلطنت غوښتونکی
وو او نامتو خانان او د سلطنت مدعیان پکې محبت خان پوپلزی
نور محمد خان غلجي، موسی خان اسحاق زی، نصرالله خان نورزی
او حینې وایې چې حاجي جمال خان بارکزی وو او په ټولو کې احمدخان
په دې جرګه کې نه غږېدونکی یعنې چپ سړی وو ځکه چې د سدوزو

قبیله د کمیت په لحاظ لږه وه خو نیکه یې دولت خان د ارغستان رئیس
وو او پلار یې زمانخان د هرات رئیس تېر شوی وو او اهمیت
او عزت یې د خلکو په سترګو کې وو په نهه ورځ جرګې د پرله پسې
ناکامۍ نه وروسته یو روحاني سړی چې هم هلته وو او د یوې
قبیلې پورې هم مربوط نه وو او د قندهار هم نه وو خوښ کړو چې
دا سړی که هر څوک بادشاه خوښ کړي نو دا نور ټول به دا خبره منوي
مني او هغه ته به بیعت ورکړي په همدې خبره پرېکړه او فیصله
وشوه - دا حکم سړی صابر شاه نومی کابلی د استاد «لایخوار» خوی
و وچې یو روحاني او متصوف بزرګ وو او د کابل او سپېد ونکی وو
د ټولو خلکو په دې بزرګ صابر شاه ښه باور وو - دا سیاست پوه
صوفي او بزرګ پورته شو او په احمدخان یې لاس کېښود او دی یې
د بادشاهۍ د پاره غوره کړو او د غنمو یو وږی یې د هغه په پګړۍ
کې د تاج په ځای کېښود او مبارکي یې ورکړه -

**دابدالي دولت تاداو** ٤- د مشرانو که د چا خوښه وه
او که نه مجبور وو وعده یې کړې وه او یو په بل پسې وا تلل او احمدخان ته
چې اوس «احمدشاه» شوی وو د بیعت لاس ورکول او د احمد شاه
د سلطنت تصدیق به یې کول، احمد شاه له بادشاه کېدو نه پس دا
ثابته کړه چې د ده فطري ذکا او لیدلو کتلو دی د خوا و شا ګاونډی -
ملکونو د رواجو او ضاعو نه او احوالو نه ښه خبر کړي وو او د افغانستان

د دغه حالاتو نه هم خبر وو او د دې اوضاعو په رڼا کې د افغانستان
او افغانانو په گټه یې چې څه کولی شو او قادر وو د هغې کول یې
غوښتل او طبعي استعداد او صلاحیت هم د دې لوی کار د پاره پکې وو
او تر ډېره په دې ارزو کې بریالی هم شو او زمینه د دې د پاره حاضره وه
چې په افغانستان کې دې د یو مستقل دولت تشکیل کړلی شي او دا -
کار یې وکړو - او خلکو هم په دې کار کې د احمد شاه مټ ټینګولو ځکه
چې د دهقانانو پېشه وران او د ملت اکثریت نور د ملوک الطوایفۍ د رنځ
او مالیاتو د بار نه او د ډېرو لښکرو کولو نه په تنګ شوي وو او په
افغانستان کې د یو قوي دولت او امنیت طرفدار او غوښتونکي وو -
افغاني ولس په کلونو کلونو د پردو زورورو ګیرو په مقابل کې مبارزې
او جنګونه کړي وو او د خپلې آزادۍ او خپل ملي حاکمیت په ارمان
کې وو او د دې کار د کولو د پاره هرې قربانۍ ته ولاړ او چمتو وو - او
هم دا قوم وو چې د چنګېزخان د زور او تېرۍ په مقابل کې ټینګ ودرېدل
او بې شماره قربانۍ ورکړې او ویې کړلی شو چې د چنګېزخان د
بشري قوې په مخکې ودرېږي او د هغه زور یې مات کړو او مغلي
قوت یې داسې جذب کړو چې نور په افغانستان کې خالصه مغلي ټبه
او مغلي نسل هم پاتې نه شو!! په دې وخت کې ایران د نادرشاه افشار
خراسانۍ د مرګ نه پس د هرج او مرج په حال کې و او یو ډول ملوک -
الطوایفي پکې راغلې وه او نور په نورو ګاوندیانو د تېرۍ کولو قدرت

پکې نه وو پاتې او په ماوراالنهر بُخارا کې هم جُنیدي دولت د زوړ د انحطاط په حال کې وو او اشرافو او فیوډالانو په علاقو کې دیو مستقل وول واړه محلي حکومتونه لرل ـ حتیٰ چې پخپله هریو د استقلال په حال کې وو او جُنیدي دولت د بادشاهۍ د مدعیانو سره لاس په گرېوان وو ـ لکه د احمد شاه د بادشاهۍ شپږ کاله لا نه وو شوي چې محمد رحیم خان د بخارا د تاج او تخت مدعي د عبدالله خان ثاني جُنیدي بادشاه په ځای کېناست او پنځه کاله پس عبدالعزیز خان د جُنیدي دولت وروستنی بادشاه وکړی شو چې مورثي سلطنت بېرته تر لاسه کړي او د ماوراالنهر اوضاع د فیوډالانو او اشرافو د لاس آله او لوبڼې وو او د احمد شاه د راتللو نه مخکې به یو خان تللو او د بل د راتللو به انتظار وو ـ نو ځکه هم په زوړو د تیري او تجاوز کولو قدرت د پخوا په شان نه درلود او په څلوېښت کاله کې په خوارزم کې لس بادشاهان رد و بدل شوي وو نو په بل چا حمله کولو جوگه نه وو په هند کې هم دغه حال وو چې د اورنگ زیب مغلي بابري بادشاه د مرگ نه وروسته په جنوبي هند کې د میرېټهه حکومت د سیواجي په قیادت کې بنه قوي شوی وو او منځ ته راغلی وو او د جنوبي هند په ډېرو برخو مسلط وو بابري دولت هم نور د دې جوگه نه وو چې په افغانستان نور تېری او تجاوز وکړي او زور پرې راوړي ـ او په شمالي هند کې هم د

سکهانو نوی قوت راپیدا شوی وو او د فعالیت په حال کې وو او محمد شاه بابري بادشاه یواځې د هند د نامې شهنشاه وو(۱). او واقعي شهنشاهي حیثیت یې نه درلود او د محمد شاه والیان چې په اوده او کرناټک او دکن او بنګال کې وو هغوی هم مستقل شوي وو او صرف څه خراج به یې پایتخت ته ورکولو نوابانو هم ځیل نومونه بدل کړل او د صوبدار په نوم به یاد نه دل. په دې مځ کې د دربار دغا نه هم یوې بلې بلا سر راپورته کړ او چې هغه به هندیانو سوداګر او افغانانو بساریان بلل او هغه غربي زورګیر وو چې د هند سواحلو ته د هند د خزانو او هضم کولو د پاره رارسېدلي او راغلي وو. په هند کې په دغه وخت کې افغاني قوتونه او شخصیتونه هم وو چې ډېر سیاسي نفوذ یې درلود او په دربار او ځینو ولایتونو مسلط وو لکه د دهلي په دربار کې نجیب الدوله افغان «نجیب خان یوسفزی» مقتدر افسر وو او په کټړا او فرخ آباد کې او ملتان کې روهیلیان افغانان او بنګش او ابدالیان لکه — «سعدالله خان روهیله احمد خان بنګش او زاید خان ابدالي»، د بنه ډېر قوت سره موجود وو او د هند دې اوضاعو احمد شاه په دې وپوه کړل چې د هند له خوا د کوم خطر وېره نشته؟!

---

(۱) د ا شهنشاه «ابوالفتح ناصرالدین محمد شاه خجسته اختر وو».

نو د دې شرايطو په موجودگۍ کې د احمد شاه د پاره زمينه برابره او حاضره وه چې افغانستان متمرکز او راټول کړي او يو قوي حکومت پکې جوړ کړی شي او احمد شاه وکولی شو چې په لږه موده کې د افغانستان سياسي وحدت د آمو نه نيولی تر عمانه پورې او د خراسان او سيستان نه نيولی د هند د رود باره پورې جوړ کړي او منځ ته يې راولي او افغانستان د سياسي وحدت او يووالي خاوند کړی شي او احمد شاه د خپل سلطنت په (٢٥) کاله موده کې هر څوک او طبقې خپلو وظيفو او وجيبو ته متوجه کړې چې د دوی هر کردار مسئوليت هم لري او حکومت به يې ترې بازخواست کوي او عمومي امنيت قايم شو او د دولت استحکام منځ ته راغی او ملاکان او فيودالانو ته يې دا فکر ورکړ چې تاسې د دولت سره په منافعو او نظامي او ملکي چارو کې گډون لرئ او په جرگو او مرکو کې به يې د هغوی رايو ته اعتنا او توجه کوله او دا مستعد خلک به يې اکثر په جنگي سفرونو کې د ځان سره ساتل او بيول نو له دې کبله د قوي مشرانو نه د يو وار دوه وارې نه ور تېر نور ځله بغاوتونه نه رو- شوي او هغه شور ماشور چې په قندهار کې لږ يو فيودالانو لکه - نور محمد خان، مير افغان، عثمان خان توپچي باشي، گدو خان او محبت- خان پوپلزی او نورو، کړی وو او دا هغه خوک وو چې د احمد شاه د انتخاب په وخت کې يې هم مخالفت کړی وو او چې ويې ليدل چې احمد شاه

په ولس کې داسې نفوذ کړی دی چې اوس د هر څو ورو، په خوله
کې قیصې اورېدلې شي!! نو په (١٧٧٩م)، کې چې احمدشاه د پانیدې تللو
په کار مشغول وو، دوی د هغه د مرګ توطیه وکړه خو احمدشاه قوي
استخبارات لرل او خبر شو او هغوی ونیول شول او اعدام کړې شول
او د دغه فیوډالانو سره یې خپل حساب پاک کړو ـ احمد شاه د خپل
مملکت او خپلو خلکو په وضعیت پوهېده او فیوډالان او قومي مشران
یې په خپلو کورنو کې په قرار نه پرېښودل او دولت دولت عنوانونه
او منصبونه به یې ورکول، چا ته به یې جاګیرونه ور بخښل او
د پلار د مرګ نه پس به یې خوی ته هم هغه ځه او امتیازات ور
کول او اکثر وخت به یې د ځان سره په دربار کې ساتل او د خپل
قوم نه به یې لرې ساتلو او جنګونو ته به یې لیږل او په مرکز کې
یې هم د قبیلو فوځ نه پرېښوده او د هغوی په ځای به یې مرکزي
تنخواه خواره فوځیان ساتل او دې دولت لښکر او فوځ منظم کولی
چې د خلکو او رعیت سره د نږدې نه په تماس کې وي او نه یې
کله قبیلوي مشر په خپله قبیله کې حاکم مقرر ولو او اکثر حاکمان
یې تنخواه خواره او د مختلف طبقې خلک به وو او روحاني قشرونه
او ولې یې هم راضي ساتلي ځکه چې احمد شاه به ورته احترام کولو
او قضائي محاکم او د جماعتونو کار به یې ورته سپارلو ـ احمد شاه
د خپلو ښو اخلاقو او شخصي تقوا له امله او هم چې قوم ته یې خدمتونه

کړي وو او د افغان او افغانستان نوم یې راژوندی کړی و وړو خلکو به وړته احتراماً پلار ویلو !! او تر اوسه ورته ولسي خلک احمدشاه بابا وایي او زیارت ته یې ورځي او په غازي هم شهرت لري.

احمدشاه د افغانستان یواځنی پادشاه وو چې باد شاهي تاج به یې نه په سر کولو او د عامو مشرانو په شان به یې لویه پګړۍ په سر کوله او چپن به یې اغوستله او موزې به یې په پښو کولې او د تخت په ځای به په فرش په زمکه کېناست، او ځینې به یې د خلکو سره لیدل کتل او مشوره درشه به یې کول او په تواضع او ورین تندي به یې خبرې کولې او د قضایاو په حل او فصل کې به یې انصاف او عدالت په نظر کې و او د صفه موضوعه قوانینو نه چې د شریعت برابر د مملکت د پاره وضع شوي وو هم نه تېرېدلو، احمدشاه د خپل سلطنت په وخت کې د تجمل او عیاشۍ نه ځنډه کړله او حریص هم نه وو او په قولو جنګونو کې کله هم د دښمن نه تښتېدلی نه وو او د خلکو او ولس په مقابل کې هم متواضع او نرم وو په جزا کې یې د مجرم (مثله، د اندامونو پرېکول نه وو کړي او منع کړي وو او په تشریفاتو کې هم رکوع او سجدې چې ول بنکته کېدل پوړته کېدل یې په دربار کې منع کړي وو او خپل او خپلوان یې د دولت له چارو نه لرې ساتل او د ګډون او مداخلې موقع به یې نه ورکوله یواځې تیمور خپل ځوی یې چې –

ولیعهد هم وو د خپلو چارو د اجرا د پاره د خان جهان پوپلزي د هدایت لاندې د مملکت په غربي برخو او کله به شرقي برخو کې په ملکي سیاسي او نظامي چارو کې د تمرین او مشق او تجربې د پاره د لوړ اوږ خدمت موقع ورکوله - څنګه کو رڼه د رسمي دولتي چارو نه د دوره ځانله «تجرید» ساتلې وه چې خلکو د تیمور او سلیمان شهزادګانو نه پرته نور ځامن یې هم چا ښه نه پېژندل او حال دا چې د احمد شاه (۸) اته ځامن وو «سلیمان[1]، تیمور[2]، شهاب[3]، سنجر[4]، یزدان[5] بخش، سکندر[6] داراب[7]، پرویز[8] وو» احمد شاه د دربار لګښتونه لږ کړه او سپاهیانو ته به یې په وخت څنګه تنخواه ورکوله او د دولت د مالیې او معاش دخل او خرځ د فترونه یې ښه منظم او «وسیع» پراخه وو - او په پایتخت کې یې ښه منظم تشکیلات لرل لکه وزارت «د صدارت عظمی برابر» او دیوان اعلی د (وزارت مالیه)، او خزانه او ضبط بیګی (امنیه او کوتوالي)، نقیچي باشي ګیري (د مجازاتو تطبیق کونکی)، داروغه، د فتر د هرکاري باشي او اخبار (ضبط احوالات)، او استخبارات، میراخور باشي (حمل او نقل حیوانی)، او نورې دایرې هم د چارو د اجرا د پاره لکه باجګیر، میراب دخالصه سرکاري ځمکو سرپرست او کلانتر (رئیس بلدیه)، د ښار مشر، او په ولایتونو کې لکه حاکم، او پیش کار (معاون)، امیر لښکر او مستوفي، قاضي، قلعه دار، باجګیر، میراخور او نور وو، او په شاهي دربار کې دیوان انشاء عرض بیګي، مهماندار باشي، —

پېشخانه‌چي باشي ، ناظر کارخانه (خوراك) او په لښکر کې لشکر نویس (دفتري نظام) اردو باشي ، جارچي باشي ، سیورسات‌چي او قورخانه په نوم اداري وې او په مرکز او ولایتونو کې د قضایي چارو د اجرا د پاره عدلي اداري او محکمې وې - او د عسکري - افسرانو او ملکي افسرانو او قومي مشرانو جرګې به هم د چارو د اجرا د پاره وخت په وخت کېدلې او دولت ته به یې مشورې ورکولې او په چارو به یې غور او خوض کولو او بادشاه ته به یې لازمي مشورې ورکولې او بادشاه د دې ټولو ادارو ملکي او نظامي او قضایي مشرو او مطلق واکدار وو ، خو سره د دې ټولو اختیاراتو د دولت د مهمو چارو مسئولیت یواځې یې په ځان نه منلو ضرور به یې د قومي او نظامي او ملکي افسرانو د جرګې نه مشورې غوښتلې او په ملي مسئولیت کې به یې هغوی له ځانه سره ګډول ، او یواځې به یې د ملي مسئولیت درانه بار ته غاړه نه ایښوده ، او په د باندنۍ سیاست کې یې په ځینو قوریالی اردو او لښکر تکیه لرله او دا اردو عبارت وو د (۱۶) زره منظمو عسکروته چې سواره او پیاده عسکر یکي وو او درنه او سپکه توپخانه (زمبورك) یې لرله ، او نقلیه وسیلې آس ، اوښ او فیل یې هم لرل - او افسران یې - عبارت د ده باشي ، صد باشي ، مینګباشي ، کشیك باشي ، (قوماندان ګارد) ، محافظه دسته ، جزایر باشي ، زمبورك باشي ، توپچي باشي

نه وو۔ او امیر لښکر به سپه سالار وو، او (۳۰) زره نور غیر منظم عسکر یې په پایتخت او ولایتونو کې هم وو او د جنګ په وخت کې به یې د اطرافونو نور خلک هم په افغاني لښکر کې ور وربېدل لکه د مثال په ډول به د مروتو د یوې ورې قبیلې نه هم بې تنخواه دوه سوه سوره او د بلوچستان نه به شپږ زره سواره چې اوښان به یې لرل هم په افغاني لښکر کې ګډون کولو او ویلی شي چې احمدشاه د هند او پنجاب په جګړو کې (۴۰) زره تنه افغاني لښکر په کار اچولی وو چې سواره او پیاده او توپخانه پکې وه او د یو تن عسکر د میاشتې تنخواه د سواره (۱۲) روپۍ او د پیاده (۶) نقدې او نی وو او د افغانستان مستقله مالیه د کال (۳۰) میلونه روپۍ وې چې دریمه برخه یې په عسکرو لګېدله او دریمه برخه به په خزانه کې ساتل کېده۔ احمد شاه قومي او قبیلوي او مذهبي تعصبات لږ کړه۔ خوانسان وو دی پخپله هم د ځینو تاثراتو لاندې وو لکه پیر صابر شاه ته د انتخاب په وخت د (دُر دران) عنوان ورکړی وو ده د غه عنوان خپلې ټولې قبیلې ابدالي ته د دُراني عنوان ورکړو احمد شاه د خپل سلطنت په وخت کې ډېر مهم لوی کارونه هم کړي دي چې د ټولو نه لومړی او مهم کار یې د افغانستان متمرکز کېدل او د افغانستان یو والی تامینول دی۔

احمد شاه د خپل سلطنت په دوران کې لس مهم سفرونه کړي دي:

**لومړی سفر:**- لومړی سفر یې د مملکت شرقي خواته په (۱۷۴۷م نه تر ۱۷۴۸م) پورې وو چې خان جهان سپه سالار پوپلزی یې په مخکې روان وو او د غزني او کابل په لاره تر اباسینده پورې لاړ په هغه وخت کې د بابري دولت والي ناصرخان په کابل کې وو چې ماتې وکړه.

**دویم سفر:**- دویم سفر یې په (۱۷۴۹م) کال کې د غرب خواته وو چې هرات ته ورسید او د نادر شاه والي امیرخان یې مدافعت کولو او قلعه بند شو، احمد شاه هرات فتح کړو او امیرخان اعدام شو او په ځای یې درویش علي خان هزاره د احمد شاه ابدالي له خوا- والي مقرر کړی شو او خپل صدر اعظم شاه ولي خان بامیزي یې د شمال ولایتو د رالاندې کولو د پاره هغه خوا ولیږلو او ټول شمالي ولایتونه مروه، جوزجان، بلخ، فاریاب، خُلم، بدخشان، تخارستان یې دا زبکو د محلي خانانو نه ونیول او په مرکزي افغانستان یې ونړل او حاکمان یې پکې مقرر کړل او څنګه د اندراب په لاره د هندوکش نه تیر شو او د کابل او غزني په لاره په (۱۷۵۰م) کال کې قندهار ته ورغی.

**دریم سفر:**- دریم سفر یې په (۱۷۵۰م) کال کې شمال مغرب خواته وو چې نیشاپور ته بیا ورغی او په دغه کال یې خپل لوی توپ چې (۱۲۱) سیږي دړه (سیره)، د کابل په وزن یې ګولهٔ خوړله هم جوړ کړو

او عباس قلي نادري والي مدافعه کوله خو د بنار د بوال افغاني لښکر ور ورانه کړو عباس قلي په میدان د جنګ کې و نیول شو خو احمد شاه د ده مېړه افسر و باخښه او په نیشاپور یې حاکم مقرر کړ او د دغه قبیله بیات یې غزني ته رافراره کړه، احمد شاه بېرته هرات ته و ګرځېد خو داخبر یې واورېده چې میرعلم خان خزیمه «مشهد» بیا د رانده شهرخ نه ونیولو احمد شاه ورپسې ورغی او امیر علم خان ماتې وکړه او د شهرخ حکومت بېرته په ځای کړی شو.

**ځلورم سفر:-** ځلورم سفر یې په (۱۷۵۱م) کال کې تر (۱۷۵۲م) پورې وو چې احمد شاه چې قندهار ته ورسېد نو پنجاب ته په پام شو میرمنو والي پنجاب چې مخکې په (۱۷۵۰م) کې صلحه کړې وه او د «سیالکوټ»، او اورنګ آباد او ګجرات» مالیات به چې د کال یو میلون او څوارلس لکه روپه کېدلې منلې وې د مالیې د ورکولو نه ټینګه کوله نو احمد شاه ورپسې خپل نماینده هارون خان ور ولېږلو چې مالیه اداکړي او خپله وعده وفا وکړي خو میرمنو آنې بهانې وکړې، احمد شاه ورپسې خپل بل نماینده «سکهجیون مل» ور ولېږلو او د مالیه په ورکولو کې پرې تاکید کړی و او خو صفحه ایله (۹) لکه روپۍ مالیه ادا کړه اخر احمد شاه په (۱۷۵۱م) کال کې پنجاب ته لښکر وکړ او کشمیر یې لاندې کړ او په افغانستان پورې یې وتاړه او خواجه عبدالله کوچک یې پرې حاکم کړ او

او احمد شاه د پېښور نه لاهور ته ورغی د مېرمنو سپه سالار "گوراملـ" څه مدافعه ځنې وکړه خو مات شو او وتښتېد شو او مېرمنو تسلیم شو او دوه میلونه باقي مالیه ورکړه او پنجاب او ملتان د افغانستان جز وگرځېدل احمد شاه په (۱۷۵۲م) کې قندهار ته راوگرځېد.

پنځم سفر:- پنځم سفرې شرق خواته وو، دا سفرې په (۱۷۵۶م نه تر ۱۷۵۷م) پورې وو د پنجاب والي میر منو مړشو او احمد شاه د پنجاب حکومت د میر منو نالایق ځوی محمد امین ته ورکړ او د محمد امین مور "مغلانی بېگم" اواره په لاس کې واخیسته او د چارو په اداره کولو مشغوله شوه خو د هغه خوا و شا رقیبانو او زمکه والو جاگیر دارانو په لاس ورکړه لاس پورې کړو او غوښتل یې چې د پنجاب مرکزیت له منځه یوسي په دهلي کې هم اقتدار د بادشاه نه د ېر د عماد الملک غازی الدین پلاس کې وو چې هغه یو ماجراجو سړی وو چې فرصت یې پیدا کړو په (۱۷۵۲م) کې یې د هند مغلی بادشاه احمد شاه د محمد شاه ځوی خلع کړو او په ځای عالمگیر ثاني کېناوه او دا بادشاه یې هم په (۱۷۶۰م) کې ووژلو او د مرهټیانو سره یې جوړه وکړه او د هغوی په مرسته یې دهلی ونیولو غازي الدین دیو قوي فوځ په زور په مارچ (۱۷۵۶م) کال کې یې په پنجاب حمله وکړه - او لاهور یې لاندې کړو او "مغلاني بېگم" یې بندي کړه او د پنجاب حکومت یې یو پخواني حاکم ادینه بیک ته

وسپارلوا و دري ميلونه روپۍ ماليه يې پرې کېښودله او په کشمير کې م سکهجيون رام داحمد شاه مستوفي پاشونی وکړ او خواجه عبدالله خان دکشميرافغاني والي يې مرکړ او کشمير يې په دهلي پورې وتاړه او پخپله دکشمير حاکم م سکهجيون شو. د دغو حالاتو په رڼا کې احمدشاه ابدالي نر په (۱۷۵۶م)، کې د بلوچستان له لارې سند ته له قندهاره روان شو او پنجاب ته ورور سيدچې د دې د ورتللونه اوينه ميک لا پخوا تبنتېدلی ووا او کشمير ته يې م د نورالدين خان راولېږلو هغه کشمير لاندې کړو او سکهجيون رام يې بندي کړو او بېرته يې کشمير په افغانستان پورې وتاړه او احمد شاه دهلي ته د ورتللو په نيت ور روان شو او د دهلي په (۳۰) ميلي کې يې د عالمگير ثاني لښکر د نواب نجيب الدوله په مشرۍ کې د احمد شاه د فوځونو مخه ونيوله خو نجيب الدوله په کرنال کې احمد شاه ته سلامي شو او ابدالي بادشاه په قرارۍ دېلي ته ورغی او د غازي الدين او پخپله د عزيز الدين عالمگير ثاني له خوا استقبال شو او په جنوري (۱۷۵۷م)، کې احمد شاه دهلي ته ورننوت او ځينې مخالفين يې تنبيه کړو او غازي الدين د اودې(۱) نه د ماليه را ټولولو د پاره هغه خوا ولېږلو د اوده او د فرخ آباد بنگش حاکم څپل هرڅه افغاني حکومت ته تقديم کړه او د اوده حاکم ته يې م دغسې

---

(۱) اوده د يو ولايت نوم وو.

مشوره ورکړه او سعدالله خان روهیله او شجاع الدوله د اوده حاکم
پخپله لکه روپه احمد شاه ابدالي ته ور ولیږلې او عالمګیر ثاني هم
خپله وریره شهزاده تیمور ته ورکړه او د محمد شاه مغلي ښځې صاحب
محل خپله لور احمد شاه ابدالي ته په نکاح ورکړه او د خپلې بار بنې
سره یې د قندهار د تللو اراده وکړه احمد شاه ته د مغلي سلطنت
کمزوري معلومه شوه نو د هند وزارت یې نظام الدوله د قمرالدین خان
ځوی ته ورکړو او سپه سالاري یې نجیب الدوله یوسفزی مقرر کړو
او پخپله وطن ته را وګرځېده.

شپږم سفر :- احمد شاه شپږم سفر په (۱۷۵۸م) کې جنوب خواته وو
خنګه چې احمد شاه بېرته وطن ته راوګرځېد او راغی په پنجاب کې بیا
بغاوتونه وشوه او سکهان هم را پیدا شوه او په امرتسر کې یې خپل تشکیلات
وکړل او مرهټیانو هم په دهلي ور غلل چې جاټان هم ورسره ملګري وو
او دهلي یې را لاندې کړو او سکهان د غازي الدین په ملسون راپاڅېدل
او د پنجاب په جلندر کې یې ډیر افغانان و وژل او ادینه بیګ هم
ورسره ملګری شو او د احمد شاه د حملې له ویرې سکهان او مرهټیان
سره یو شوه او په پنجاب یې حمله وکړه او په (۱۷۵۸م) کې یې افغاني
قوه له پنجابه لرې کړه او عبدالصمد مامن زی افغاني حاکم یې
بندي کړو او په اپریل (۱۷۵۸م) کې مرهټیانو او سکهانو په لاهور
حمله وکړه خو شهزاده تیمور او خان جهان افغاني سپه سالار را

رسېدلې وه خو د مقابلې توان يې نه و نو انګک ته تري را په شاشو.
او د پنجاب حکومت يې ادينه بېګ ته په عوض د (۲) نيم ميلونه
روپو سالانه ماليات پرېښود او مرهټيانو د هند حکومت پرته داوده
د رياست نه قريباً نور ټول هند رالاندې کړو او په اوده پسې
يې هم لښکر وکړو او د افغانستان د سياسي حدودو سره مرهټيان
ولګېدل، په دې وخت کې د فرصت نه په استفاده ځينې فيودالانو چې
د افغانستان ضعف يې د مرهټيانو په مقابل کې حس کړو نو خپلو داخلي
استقلال او بغاوتونو ته په پام شو لومړی نصيرخان بلوڅ والي بلوچستان
د خپل استقلال اعلان وکړو، احمد شاه د هند مسئله په خای پرېښوله
او خپل داخل د مملکت ته په پام شو، شاه ولي خان خپل صدراعظم
يې د يو درانه لښکر سره په نصيرخان پسې ولېږلو خو هغه په مستونګ
کې له نصيرخان نه ماتې وکړه. احمد شاه چې خبر شو بخپله د لښکر سره
ورغی او نصيرخان يې مات کړو او وتښتېد او په قلات کې قلعه
بند شو خو اخر نصيرخان جرګه را ولېږله او د شاه ولي خان په شفاعت
هغه وبخښلی شو او بېرته يې د افغانستان تابعيت ومانه او په خان
يې ومنله چې د احمد شاه لښکر ته به په جنګونو کې شپږ زره بلوڅي -
رسالې کومک ورکوي او نصيرخان د خپلې کورنۍ نه يوه انجلۍ احمد-
شاه ته په نکاح هم ورکړه.

**اووم سفر**:- د احمد شاه اووم سفر په ۱۷۶۰ م نه تر (۱۷۶۱ م) پورې

په ۱۷۵۸ ام، کې په هند کې مهم واقعات پېښ شوي وو او په شمالي هند کې سکهانو په پنجاب کې پاڅون وکړ او مرهټیان په منځني هند ورغلل او دهلي حکومت سقوط وکړ او احمد شاه خود نصیرخان په معامله نښتی وو او مرهټیانو په هند کې په اکثرو ځایو او پنجاب قبضه وکړه خو احمد شاه چې را وزګار شو او دخپل (۳۰) زره لښکر سره د بولان په لاره سند ته ورغی او هلته د تیمور او خان جهان لښکر هم ورسره یو ځای شو نو مرهټیانو پنجاب پرېښود او د سهارنپور پلو ته په شا لاړل او احمد شاه پنجاب ته ننوتلو او په سهارنپور هم ورغی مرهټي لښکر په شا شوی وو او دهلي ته تللی وو او غازي الدین خو مخکې عالمګیر ثاني مغلي باد شاه له منځه وړی وو بل څوک نه وو د اورنګ زیب نمسی یې د دوهم په دهلي کې باد شاه کړی وو او دی پخپله غازی الدین وزیر شو خو د احمد شاه افغاني لښکر پرې ورغی او سندیا د مرهټیانو قوماندان ته یې ماتې ورکړه او داخبر چې غازي الدین واورېده له دهلي نه وتښتېد او مرهټیان هم وارخطا شوا و احمد شاه دهلي ونیوله او د راجپوتو ځینو راجا ګانو خپل اطاعت افغاني دولت ته وړاندې کړو او جاټان هم له مرته وننه ښېل شو او احمد شاه څه عسکر هغه خوا ته ور ولېږل او ځینې قلعه ګانې یې ونیولې او د یره محکمه قلعه ،، ارامکده ،، یې هم لاندې کړه او غازي الدین او سورج مل دواړه د حافظ رحمت خان په وسیله په شفاعت احمد شاه وبخښل خو د مرهټیانو

مشرانو یو زور اور لښکر ترتیب کړ چې زرونه سرې پیکي و واو
زرونه غوایان او آسونه او (۲۴۰۰) فیلان هم پکې شامل وو د
شمشیرو او وماچې سندیا او هولکر په مشره د احمد شاه د فوځونو
په مقابل کې ور ولیږل د افوځونه مخ په وړاندې را روان وو
او ډهلي په خطر کې ولوید احمد شاه هم ډهلي ته ور وګرځېد او
په جمنا ور پورې شو خو ډیر تلفات یې ورکړه لنډه دا چې په (۱٦)
جولایې (۱٧٦۱ م) کې د پاني پت په میدان د مرتیانو او افغانانو
زوراوره جنګ جوړ شو او په جنګ کې ویسراس د پیشوا را و
ځوی وو ژرل شو او میرهتي لښکر ماتې وکړه او ډیر تلفات ور
کړه او د جنګ میدان افغاني لښکر وګاټه احمد شاه بیرته فاتح ـ
ډهلي ته ورغی او میرهتي لښکرې وتښتېدلې او یې چپله مخه لاړې
تردې حده خو د انګریزانو د انډیا کمپنۍ د پاره حالات دخوښۍ
سبب وو خو د افغانانو قوت چې د مرتیانو په ځای راتللو هم په
ډیر تشویش کې وو خکه چې دوی ته دلندن نه امداد را رسېدلو
د پاره لږ د لږه یو کال پکار وو، په جنوب کې هم فرانسویان د ماتې
په حال کې وو، او د دکن حکومت هم دغه حال وو خو سړی نشي پوهېدلی
چې احمد شاه څه وجې هاتق مجبور کړ چې په ډیر تلوار افغانستان ته
بیرته روان شي احمد شاه په ډهلي کې (عالي ګوهر د عالمګیر ثاني ځوی)
تدیې ډهلي و باجښیر او هغه چپله بنګال کې وو نو په ځای (میرزا

جوان بخت، د پلار په غیاب کې د دهلي د باچا نایب السلطنه و تاکل
او نواب شجاع الدوله د اوده صوبدار یې وزیر او سپه سالار یې
نجیب الدوله و تاکلو او دهلي یې ورته و سپارلو او احمد شاه افغانستان
ته روان شو او د پنجاب په حکومت زین خان مومند مقرر کړی شو
او هند یې په هغسې مغشوش حال کې احمد شاه پرېښود او په دې وخت
کې په میسور کې حیدر علي مشهور مجاهد چې د انګرېزانو سره یې جګړې
کړې وې او د هند په تاریخ کې یې ځانله باب دی په میسور کې بادشاه
شو.

**اتم سفر:** اتم سفر په پنجاب کې د ۱۷۶۲م نه تر ۱۷۶۳م پورې
و احمد شاه چې په (۱۷۶۱م) کې له هنده راوګرځېد سکهانو په پنجاب
کې بیا پاڅون وکړ او زین خان مومند د پنجاب والي یې د کوټ په
کلي کې قلعه بند کړ چې وروسته شهید شو او د کشمیر سکهانو
هم بغاوتونه وکړه احمد شاه بیا پنجاب ته روان شو او سکهانو ته
یې په چندالله او کوپ کې ماتې ورکړې او د سکهانو (۲۰) زره لښکر
ته یې په سرهند کې ماتې ورکړه او په کشمیر کې هم د احمد شاه افسر
نورالدین شورشیان مات کړه او امنیت یې جوړ کړ او احمد شاه له
هغه داڼې نه چې په مخ یې ښکاره شوې وه او داد ناسور دانه وه او
د پنجاب هوا ورته نامساعده وه افغانستان ته بېرته وګرځېد خو
سکهان په قرار ناست نه وو بیا یې بغاوتونه وکړه او په (۱۷۶۴م)

کې احمد شاه بیا د پنجاب تللو ته مجبور شو.

**نهم سفر:** احمد شاه غازي پنجاب ته ورغی او سکهانو ته یې ماتې ورکړه او پنجاب یې ترلاسه کړو او افغانستان ته وګرځېد او د بخارا د جنیدي روستني باد شاه عبدالعزیز سره یې معاهده وکړه او د آمو د ریاب د دواړو ملکونو سرحد مقرر شو. او شاه ولي خان وزیر چې هغه خواته تللی و خرقه مبارکه یې د بدخشان نه ځان سره قند هار ته راوړه چې اوس په قند هار کې ده او د پنځوخبنتو یو خاص عمارت پرې جوړ دی او خلک د دوعاد پاره ورځي !! او په (۱۷۶۱م) کې احمد شاه د اوسني قندهار تاداوکېښو.

**لسم سفر:** - په (۱۷۶۹م) کې چې احمد شاه غازي خبر شو چې د افغانستان په دلغل کې دخراسان د ولایت احوال بنه نه دی او د روند شهرخ خان، نصرالله میرزا او نادر میرزا د اقتدار د حاصلو د پاره دیو بل سره اخته دی او نور فیودالان او زمکه وال او د لویو رتبو ماموریت هم په دوی وله شوي او د وخت نه استفاده کوي نو احمد شاه د حالاتو د سمون د پاره مشهد ته په (۱۷۶۹م) کې ور روان شو، نصرالله خان لا مخکې د کریم خان زند د ایران د باد شاه سره خبره غوټه کړې وه نو په مشهد کې د احمد شاهي لښکر سره یې څه جګړه وکړه او علیمردان خان د قوت او طبس حاکم هم بغاوت وکړ او نادر میرزا یې هم په لاس کې وو احمد شاه د مشهد ښار

محاصره کړو او جهان خان سپه سالار او نصیرخان د بلوچستان والي یې په علیمردان پسې ولېږل - په نصرالله میرزاخو احمد شاه غازي بری ومونداو میرزا تسلیم شو او بیا وروسته شهرخ چې له لوري گوهرشاد، د احمد شاه خوی شهزاده تیمور ته په نکاح ور کړه او خپل خوی یزدان بخش یې یرغمل احمد شاه ته ور کړو او نصیرخان او سپه سالارجهان خان په جنگ کې علیمردان ووژلو او د هغه ځای یعني قوچان او طبس د نیولو نه پس د احمد شاه حضور ته بریالی را ستانه شو نو احمد شاه د نادر افشار په لحاظ او خاطر د مشهد ولایت بیرته شهرخ ته وسپاره او په (۱۷۷۰م)، کې احمد شاه بیرته قندهار ته راوگرځېد او د احمد شاه مرض د ناسور (کېنسر) نارو غي نوره هم ډېره شوه او احمد شاه بابا په ۱۷۷۳م، کې د قندهار نه د «توبې» غره ته او د معروف علاقه داره ته لاړ چې د هغه ځای هوا ښه او سمه وه - د دې سفر نه مخکې احمد شاه افغاني لویه جرگه راغونډه کړه او شهزاده تیمور یې خپل ولیعهد و ټاکلو او جرگې هم ومانه او د هغه شهزاده په ولیعهدۍ تاکل کېدل د افغاني عنعنوي دود نه خلاف وه ځکه چې د باد شاه احمد شاه مشرخوی شهزاده سلیمان وو او د وزیر شاه ولي خان خوم وو- شهزاده تیمور چې په هرات کې د خپل پلار د مرض نه خبر شو نو قندهار ته راروان شو خو د هلمند نه شاولي خان د احمد شاه په امر هرات ته بیرته

ستون کړی شو.

# د احمد شاه وفات

کله چې په (جون) ۱۷۷۲م[1] کې او رجب ۱۱۸۷ هـ.ق، کې احمد شاه بابا د ۵۰، کلنۍ په عمر وفات شو او جنازه یې د معروفه قندهار ته ویوړه شوه او هلته ښخ کړی شو، چې اوس پرې یو خاص عمارت جوړ دی، او عسکري پهره پرې ولاړه ده، احمد شاه ډېر پوه افغان بادشاه وو او د افغانستان د مرکزیت او استقلال د پاره یې ډېر څه کړي دي، احمد شاه د پښتو ژبې ښه وتلی شاعر وو او دیوان یې هم شته دی.

# د تیمور شاه د سلطنت وخت د (۱۷۷۲م نه تر ۱۷۹۳م) پورې (۲۱) کاله

تیمور شاه په (۱۷۴۶م) کې په مشهد کې زېږېدلی وو او د پلار د مرګ په وخت کې د هرات والي وو، ده تحصیل کړی وو او په دري ژبه کې هم شاعر وو او پلار یې احمد شاه د پښتو ژبې ښه وتلی شاعر وو او دیوان یې هم شته، د تیمور خان شاه شجاع او نادر میرزا هم په دري ژبه کې شاعران او لیکونکي وو. پلار یې چې وفات شو نو شهزاده سلیمان بادشاه شو او په دې کار د شاولي خان

(۱) احمد شاه ۲۵ کاله پادشاه وو.

وزیر رضا وه ـ تیمور چې په هرات کې خبر شو نو قندهار ته را ـ
روان شو وزیر شاولي مخې ته ورغی چې حمله پوره کړي چې سلیمان
د سلطنت مدعي نه دی صرف له دې کبله چې ته لري وې او د ـ
سلطنت مقام یې د وخت د پاره سنبال کړی دی خو تیمور دا که منله
او شاولي خان و وژلو او سلیمان یې تابع شو او تیمور په قندهار
کې باد شاه شو د تیمور لس ښځې وې چې ځینې پښتنې وې او ځوک
هندوه او کشمیره او افشاریه هم وې د د تیمور شاه د دغه ښځو
نه ( ۲۳ ) ځامن او ( ۱۳ ) لونړه وې ، چې د افغانستان په تاریخ کې مثبت
او منفي برخه لري لکه همایون ، عباس ، محمود او شاه شجاع چې دي
تیمور چې د سلطنت واګې په لاس کې ونیولې او د قبایلو د مشرانو
په ځای یې د متوسطې طبقې خلکو ته اهمیت ور کړلو او ځینې فوځي
او ملکي افسران یې هم د خپلې خوښې مقرر کړه او د فوځ واک
یې هم پخپل لاس کې واخیست او خپل محافظین یې هم د خپلې خوښې
د فوځ نه تعین کړه چې قوماندان یې محمد خان بیات و و ـ تیمور شاه
تجمل او عیش او عشرت هم خوښاوه ـ تیمور شاه په داسې وخت
کې د افغانستان باد شاه شو چې په اروپایي تاریخ کې د یو مهم
بدلون نه راغلي وو او نړۍ د نیا ته یې تکان ور کړی وو او
هغه عبارت وو د فرانسې د انقلاب کیږي نه چې په ۱۷۸۹ - ۱۷۹۵
میلادي پېړۍ چې د فرانسې د سلطنت ماڼۍ نړولې وه او خلکو

د ډیموکراسۍ بیرغ پورته کړی وو او د بشر د حقوقو اعلان شوی وو او د افغانستان او فرانسې په منځ کې دا توپیر وو چې په فرانسه کې د سلطنت ماڼۍ ونړېدله خو په افغانستان کې د سلطنت ماڼۍ لا ټینګېدله. تیمور شاه د زاړه دربارغیانو او لویانو لړۍ کړه لکه شاولي خان او خان یې وواژه، سپه سالار خان جهان یې له کاره موقوف کړ چې د بې کارۍ په حال کې دا مشهور سپه سالار په کال (۱۷۷۶م) کې د فراه په دل آرام کې د انزوا په حال کې وفات شو.

تیمور شاه د خپل جلوس په کال د حکومت مرکز د قندهار نه چې د قومي او قبیلوي خانانو او مشرانو تاټوبی وو کابل ته بدل کړ او په حکومتي مامورینو کې یې مهم بدلونونه وکړل لکه لوی وزیر یې شیخ عبداللطیف جامي هروي مقرر کړ او د خزانو آمر یې التفات خان هندي مقرر شو او د استخباراتو چارې یې ملا عبدالغفار خان هندو مسلمان ته وسپارلې او قاضي فیض الله یې خپل مشاور مقرر کړ او پخواني خانان او مشران یې د دولتي چارو نه لرې کړل او څو تنه هغه کسان چې د ده حکومت په پټو سترګو منل پرېښودل «لکه نور محمد خان بابړ، امین الملک، میر هزار خان الکوزی فتح الله خان سدوزی او خینې نور» په دې او ځینو د تیمور شاه نه د قندهار مشران او په تېره ابدالیان ډېر متاثر وو او د تیمور دلې کولو په لټه کې شو په دې کار کې غلجي مشران هم ورسره یو

لاس شو او د تیمور د سلطنت په لومړي کال کې یې د بغاوت بنا وکړه او عبدالخالق خان سدوزی چې پخوا د سند د مالیه مامور و او ډیرې پیسې یې درلودې د بادشاه په توګه وټاکه او د (۲۵) زرو په شمار د ابدالیانو او غلجو لښکر په تیمور شاه پسې کابل ته په (۱۷۷۴م) کې ور روان شو. د کابل قواوې هم بلخ ته په قبادخان یاغي والي پسې تللې وې او د کابل په مرکز کې کافي قوه نه وه خو بیا هم تیمور شاه دخپلې بقا د پاره (۱۲) زره لښکر تیار کړه او پخپله د قندهار د لښکر د مخنیوي د پاره ور روان شو دا دواړه لښکرې د غزنې په ششګاو کې سره مخامخ شوې او د تیمورشاه لښکر د قندهار ایله جاري لښکر ته ماتې ورکړه او عبدالخالق خان یې ونیولو او ړوند او بندي شو او ملګري یې اعدام کړه شو او په کابل کې هم تیمور شاه د افسرانو خپلو خپلوانو چې په قندهار کې بغاوت کړی وو د هغوی نه یې هم منصبونه واخیستل او مالونه یې ترې مصادره کړه او هغوی بندیان کړه لکه عبدالله خان دیوان بیګي او نور، او د عبدالخالق او د قندهار په لښکر کې ځینې کسان لکه پاینده خان بارکزی او دلاور خان د ششګاو په جنګ کې د عبدالخالق خان لښکر پریښود او تیمور شاه ته را واوښتل او پلوي شو او تیمور شاه هغوی دواړو ته پاینده خان ته د سرفراز خان او دلاور خان ته د مدد خان خطابونه ورکړه -

(سرفراز خان یا پاینده خان) مخه ښوکځ دی چې وروسته د محمدزای کورنۍ مورث اعلیٰ گڼل شي) چې وروسته زمان شاه و وژلو، او ځامنو یې د سدوزو سلطنت ته تکان ورکړو.

تیمور شاه د شش گاو د فتحې نه وروسته د باغیانو د بیخ کنې د پاره قندهار ته ورغی او د مخالفینو جرړې وښکلې، مالیه او باقیات یې پرې حواله کړه او سردار رحیم داد خان د سردار پاینده خان بارکزی وروریې ننگرهار ته فرار کړه (چې د بهسود و سرداران یې اولاده ده) او نور یاغیان یې ښوکځ مړه او ښوکځ یې بندیان کړه او کابل ته بېرته وگرځېد او مددخان اسحق زی په عنوان د امیرالامراء (سپه سالار) مقرر کړو. او د خراسان په یاغي فیوډالانو پسې خراسان ته ولیږلو او مدد خان ورانکاري سم کړه او د ولایت چارې یې بېرته نابینا شهرخ ته وسپارلې.

په (۱۷۷۹م) کې تیمور شاه چې کله د ژمي د تېرېدو د پاره پېښور ته راغی نو ځینو کسانو چې مشر یې ارباب فیض الله خان خلیل وو او روحاني مشر یې میا محمد د ښوکنو د میا صاحب ځوی هم ورسره ملگری وو د تیمور شاه د وژلو توطیه وکړه خو کامیاب نشو فیض الله او ځوی یې ونیول شوا و ووژل شو میا محمد د خلکو په سفارش چې د ښوکنو میا صاحب د احمد شاه بابا پیرو و د مرگ نه عفوه شو او بل ملگری ارسلا خان مومند باجوړ ته وتښتېد او وروسته

په (۱۷۹۱م) کې د قاضي فيض الله خان په واسطه راغی او تسليم شو او وبخښل شو. خو چې د تيمور په لاس ورغی نو وو وژل شو. همدغسې تيمور شاه د ير سفرولوی خان فتح خان چې د ابا سيند په غاړو اوسيدلو او بغاوت يې کړی وو هغه هم د فيض طلب خان په واسطه دربار ته راغی او تيمور شاه هغه هم اعدام کړو او په دې ډول يې د مرکزي قدرت ساتنه کوله، او تيمور شاه بېرته کابل ته لاړ او د ژمي کاله په قرار و وخو ځينې مشران يې مخالف وو تيمور شاه به هر کال ژمي څلور مياشتې په پېښور کې تېرولې، دی په پېښور کې وو چې خبر ورته راغی چې سکهانو بغاوت کړی دی او په پنجاب راغلي او ملتان يې نيولی دی، تيمور شاه د پېښور نه ملتان ته روان شو خو د لښکر په مخکې د زنگي خان جارچي باشي وله وه هغه د سکهانو زور او را مخکې قوت مات کړی وو تيمور شاه د ملتان حکومت شجاع خان ابدالي ته ورکړو او سپه سالار مدد خان يې د سند د چارو د سمون له پاره په هغه خوا ولېږلو او پخپله کابل ته راغی مدد خان په سند کې را پاڅيدلي حاکمان او ميران لکه مير فتح علي خان تالپور او محمد بهاول خان او حافظ الملك را ود پوتړه لاربې ته را وستل اهاليه يې پرې ومنله خو داعارضي کار وو او هغوی بيا په (۱۷۸۶م) کې غاړه ونه ګرځوله. تيمور شاه دا پېره په هغوی پسې جنرال احمد خان نورزی ولېږلو او هغه دغه د سند ياغي مشران سم کړه

او په زور یې په مالیه ومنله تیمورشاه هم سند ته ورغلی وو او د سند حکومت یې فتح علي تالپور ته وسپارلو او بیرته کابل ته راغی تیمور شاه لا د مه شوی نه وو چې په (۱۷۸۶م) کې دکشمیر د حادثاتو نه (پیښو) خبر شو چې آزادخان د کریم دادخان عرف بیګی ځوی چې د احمدشاه د وخت نه دکشمیر حاکم وو د تیمور شاه د-سلطنت نه غاړه غړولې او مالیه یې چې کابل ته لیږله منعه یې پخپل لښکر لګولې وه او نوی دریې زره لښکر یې جوړ کړی دی. تیمورشا په منعه پسې مددخان سپه سالار ور ولیږلو او پخپله هم پیښور ته ورغی. آزادخان د افغاني لښکر نه ماتې وکړه او د خپل خسر رستم خان قلعه ته ورغی او هلته یې احساس وکړو چې رستم خان دې تیمورشاه ته ورځوي نو پخپله تمانچه یې ځان مړ کړو. او له دې نه پس په داخل کې تیمور شاه خپلو مخالفینو ته د بغاوت مجال نه ور کولو او د مرکزي دولت قوت په ځای وو. خو د افغانستان په ګاونډ کې د کریم خان زند د مرګ نه پس په ایران کې هرج او مرج پیدا شو او ملوك الطوایفي راغله او د ایران د مرکزي دولت قدرت یې له پښو وغورځاوه خو افغانستان د ایران سره څه سیاسي معامله نه لرله نو څه کار یې هم نه وو د افغانستان په شرق کې هم په شرقي هند او جنوبي هند کې انګریزان بنه په زور د مخکې کېدو په حال کې وو خو افغانستان او تیمور شاه په دې وخت کې څه

خاص د هند سره روابط نلرل لکه د ایران په شان ترې بې غمه وو
خو انګرېزانو د پنجاب سره خاصه دلچسپي لرله او هم د افغانستان
حال ته متوجه وو او په بنګاله او پټنه کې فعالیتونه کول او په شمال
د افغانستان کې په بخارا کې نوي امیران منځ ته راغلي وو او د دې
لړې په سر کې میر معصوم شاه مراد وو د (١٧٨٥م نه تر ١٨٠٠م)
پورې چې دی یو توسعه جو شخص وو چې په (١٧٩٥م) کې تاشکند
ونیولو خو بیا یې تاشکند یونس خواجه چې یو حاکم ته ورکړ او
له دې وروسته تاشکند د بخارا او خوقند په منځ کې د کشمکش -
سبب وو او شاه مراد کولی شو چې د افغانستان د پاره سر دردي را
پیدا کړي او دغه په (١٧٨٨م) کې د افغانستان په یو ولایت مرو
لښکرکشي وکړه او مرو یې لاندې کړه او د مرو خلک چې په مذهبي
دول شیعه ګان وو نو شاه مراد هغوی مذهبي تبدیلۍ ته مجبور کړل
خلک ترې خفه وو تیمور شاه هم د حالاتو د کتنې د پاره بلخ ته راغی
شاه مراد د آمو نه وراپسې پورې وتو او کلفت ته ورغی او وروره یې
عمرخان د دغه فوځ سره په آقچه ورغی او علي مردی خان د یوې رسالې
سره په زور د تیمور شاه د لښکر د خوراك خښناك لارې بندې کړې خو
د تیمور شاه افغاني لښکرې وراپسې ورووتلې او د بخارا لښکرې یې
په شا کړې او شاه مراد خو دومره وارخطا شو چې د علماوو یوه
جرګه یې تیمور شاه ته را ولېږله او صلحه یې وغوښتله او د مملکتونو

بريد ورنه يې ورمنل او د پخوا په شان يې هغه تصديق کړ او آمو د د واړو خواو سرحدي بريد شو او د اجنګ د افغانانو په ګټه خلاص شو او تيمورشاه کابل ته راغئ .

# د تيمور مرګ

تيمورشاه په کال ، ۱۷۹۳ م ، کي پيښور ته تللی وو او هلته ناروغه شو او کابل ته راغئ او په ، ۱۲۰۷ هـ . ق ۱۷۹۳ م ، کې وفات شو ، او يو انګريز خو ويلي دي چې تيمورشاه په زهرو وژل شوی دی ، او دا په دې منطقه کې يو سياسي قتل ګڼل شوی چې د ابدالي دولت په سلسله کې مخ ته راغئ ، محمدغسې ويلی شي چې غازي وزير اکبرخان د اميردوست محمد خان ځوی هم په زهرو وژل شوی وو چې يو هندي طبيب ده ته د درو په شکل ورکړي وو خو خلکو آوازه اچولي وه چې اکبرخان ته چنل پلار اميردوست محمد خان د الماسو براده ورکړی وه او د هغې په اثر مړ وخو نه د اخبره غلطه وه ځکه چې د وزير سکه ورور غلام حيدرخان امير دوست محمد خان وليعهد و ټاکلو - همدغسې ويلی شي چې امير شيرعلي خان ته په مزار شريف کې هم زهر ورکړه شوي وو او په هغه اثر مړ شو ځکه چې امير شيرعلي خان هلته د روس سره د انګريز په مقابل کې د جنګ

په سلسله کې د کومک اخیستو د پاره خبرو او مذاکرو ته ورغلی وو
او د سید جمال الدین مرګ هم ویلی شي چې په استنبول کې په زهرو
ورکول شوی وو. او دغسې نورې بلګې هم شته دی لکه د اسلامپور
میر صاحب جان پاچا صاحب او یا په هند کې نور واقعات چې شوي دي.

تیمور شاه د کابل په چهار باغ کې ښخ کړی شو او بیا یې ځوی
زمان شاه پرې مقبره جوړه کړه - تیمور شاه په داخل کې د مرکزیت
قدرت و ساتلو او په شرعه مذهب او نورو کې تعصب نه وو او
په د باندنۍ سیاست کې ډیر محافظه کار وو او ډیر سره مدبر هم
وو او په د باندنیو ملکونو یې غیر له پنجاب نه چې پلاس کې وو
په هیچا تېری او تجاوز نه وو کړی او د خپل سلطنت په شل کلنه
دوره کې یې په مملکت کې یې ځینې لاسي صنایع هم رواج کړې او
امن او امان یې ساتلی وو او د وطن د ښارونو خلک ښه غني
شوي وو او د شعرا او ادب هم قدر داني کېدله خو د دهقانانو په دې
تر چې یو خوا ته یې مرکزي دولت ته به یې مالیه ورکوله او له بلې خوا
به یې خپلو زمکو والانو هم پرې بار ونه اچول - نو له دې کبله -
د دهقانان په تنګ وو. تیمور شاه چې مړ شو افغانستان له دې امله
چې د تیمور ډیر ځامن او لونه وې او په مملکت کې یې ولیعهد تعین
کړی نه وو د هرج او مرج او اړې ګړې په حال کې پرېښود. په
دې وخت کې محمود د تیمور شاه دویم ځوی په هرات کې حاکم وو

او سکه وهوه یې فیروزالدین هم وهسه وه او همایون مشرځوی یې په قندهار کې حاکم وه او شجاع الملک د زمان شاه سکه وهوه په غزني او زابل حاکم وه او عباس شهزاده په پېښور حاکم وه او هریوه د بادشاه کېدو دعوه لرله او د عباس سکه وهوه کُندل خان په کشمیر حاکم وه.

د پلار د مرګ نه وروسته شهزاده زمان، شهزادګان او نور مشران او جرګه بالاحصار ته راوبلله او ځینې شهزادګان او ځینې د جرګې مشران یې هم طرفداران وو زمان شاه د خپلې خوښې د بادشاهۍ اعلان وکړ وخو شهزاده محمود او همایون د ده د بادشاهۍ تصدیق ونکړ وخو د دربار ځینو مقتدرو سردارانو لکه سردار پاینده خان محمدزای د زمان شاه حمایت وکړ.

## د زمان شاه سلطنت د (۱۷۹۲م نه تر ۱۸۰۱م) پورې (۹ کاله)

د زمان شاه د سلطنت په لنډه دوره کې د افغانستان د ننه او هم په ګاونډي مملکتونو کې مهم سیاسي حوادث او واقعات پېښ شو او په ټوله دنیا کې هم مهمې پېښې وشوې لکه د ده د سلطنت نه څلور کاله مخکې په فرانسه کې انقلاب کبیر راغلی وه او د ده د سلطنت د جلوس نه شپږ کاله پس د ناپلیون په قیادت کې د فرانسې نوی

دولت منځ ته راغی او په اروپا د وړې اوترو لړې راخورې شوې د زمان شاه دجلوس په وخت کې په شرقي گاونډي ملك هندوستان کې «سرجان شور» د انگریزانو گورجنرال وو چې هغه په هند کې یې د انگریزانو مخکې تګ جاري ساتلو د وه کاله پس مرتهیانو د دکن د ریاست نه نیمایي زمکې ونیولې دري کاله پس د انگریزانو گورنر جنرال «مارکی وسلی» هند ته راغی او یو لوی فوځ یې تشکیل کړو او د هندوستان د پوره نیولو اراده یې وکړه او مرتهیان او د میسور ایالت د سلطان ټیپو لوی مجاهد حکومتونه یې له منځه وړل او د راجپوتو راجه گان یې هم رالاندې کړه - او دري کاله پس د زمان شاه د سلطنت په دریم کال په (۱۸۰۴م) کې انگریزانو د هند دقوي مدافع «هولکر» قوتونه هم مات کړل او په شاشوا و یو کال مخکې یې لاویلي او اگره هم انگریزانو رالاندې کړي وو او غوښتل یې چې تول هندوستان د انگریزانو په قبضه کې راشي او د دې لپاره «مارکیس وسلي» گورنر جنرال نوي اصول داعانه په نوم وضع کړل چې هندوستان په دې نوم تالا او تاراج کړي او د زمان شاه حکومت ته هم خطر وړپیښناوه که څه هم د زمان شاه چې څه قوت پلاس کې وو هغه په دخپل وطن دلرو وړ مالیاتو نه تجهیز کېدل خو د انگریزانو د - تهدید سره مخامخ وو - د افغانستان په غرب کې د ایران په خاوره کې د قاجاریانو نوی دولت په (۱۲۹۵م) کې د آغامحمد قاجار په مشرتا

کي منځ ته راغی آغا محمد ښه مدبر او بااراده شخص و وخو ورسره د ېر سفاك او قاتل هم وو لکه چې د ېر کرمانیان یې ووژل او ډېر تفلسیان یې هم قتل عام کړه او خپل رقیبان لکه دجعفرخان زند او لطف علي خان یې هم مات کړل او افغانستان ته یې هم په بده سترګه کتل ، او یوځل یې دخراسان په ولایتونو یې یرغل وکړو او دمشهد ړوند شهرخ دافغانستان کېنولی والي هم ونیولو او شکنجه او تېل داغ یې کړه ، مال او جواهر یې تري واخېستل او دی یې مرکېدو خو زر بېرته دخراسان دچورچپاو نه پس ایران ته وګرځېد او په (۱۲۹۲م) کې آغا محمد قاجار ووژل شو او په ځای یې ، فتح علي شاه قلجار دایران د سلطنت واګې پلاس کې ونیولې، چې دی دخپل ۲٦ کلن سلطنت په دوره کې د اروپایي زورګیرو، دلاس آله شو او دېرو یې ځانه شي په شان د سطرنج د ېوې مهرې په څېر د انګریزي استعماري سیاست په لاس کې لوبېدلو ؛ او روس او فرانسه هم ترې وخت په وخت ګټې اخېستلې . فتح علي شاه دخپلو سوونو ښځو او اولادو ونو په چارو مشغول وو د دې قدرت یې نه درلود چې د خلکو د ښېګڼې د پاره څه وکړی شي ـ هغه لومړی د انګرېز کپتان مالکم سره او بیاد فرانسې او جنرال ګاردن سره معاهدې وکړې او بیا د انګلیس سردار فور د جونز ته تسلیم شو داضعیف الاراده او عیاش سړی نه په بین المللي سیاست کې د ایران مقام څه معلوم کړی شو اولا دګلستان او

ترکمانچای په معاهدو یې گرجستان او دایران دخاورې ځینې برخې د لاسه ورکړې او دالا پرېږده کله به یې د انگریزانو کله به یې د روس په لمسون د افغانستان په داخلي چارو کې هم گوتې وهلې او هلته به یې جنگ جگړې جوړولې او د عمر په آخر کې یې د روس په لمسه او امر په هرات حمله هم وکړه خو ناکام شو او بېرته ستون شو او بل کال ته په ( ۱۸۳۳م ) کې مړ شو - او روسانو د هغه د ځوی او ولیعهد میرزا عباس دایران د باد شاه په حیث ومانه ! فتح علي شاه چې د روس نه څه احیستي وو هغه صرف شخصي او ناچیزه گټې وې او د ایران د ملت د پاره سراسر تاوان وو؛ خو په مقابل کې زمان شاه لکه غربي مولف فریرچې لیکلي دی یو کلک ځوان او با اراده ذکي شجاع او بصیر او فعال شخص وو او تل به په آس سور وو په یو جنگ پسې به یې بل جنگ کولو ځکه چې داخلي او خارجي دسیسو به دی جنگ ته مجبورولو او د افغانستان خلک هم د تیمور شاه د ټولو ځامنو نه زمان شاه ته په درنه سترگه گوري او بنه یې یاد وي

یو انگرېز لومړی سفیر د شاه شجاع په دربار کې مونټ سټوارټ د زمان شاه په باب لیکي چې ؛ ما زمان شاه په راولپنډۍ کې هغه وخت ولیده چې د شجاع کډې هلته تللې وې د زمان شاه د ډېر شهرت ما او رېدلي وو نو د هغه لیدلو ته ډېر لېواله وم هغه ماته د لیدلو وخت راکړو او زه په ۱۸۰۹م جولایي د زمان شاه حضورته

ورغلم، دی په یوه خېمه کې په یوچپرکټ بنه په درناوي ناست وو او تور شال یې په سر تړلی وو او سپینه څغه یې اغوستې وه او ښکلې خبرې یې لرلې او رورند نه معلومېده»، زمان شاه مخکې خپل ورور محمود ړوند کړی وو» او مخاطب ته یې دروغ سړي په شان کتل! او ماته یې د ناستې اجازه راکړه او په خبرو کې یې د افغانستان په واقعاتو او پېښو بحث کولو او په آخر کې یې ویلې چې انشاالله بریالیتوب زموږ وي. زمان شاه ته د افغانستان واک په داسې حال کې لاس ته ورغی چې د افغانستان مرکزیت قایم او امنیت یې پوره تامین وو چې نیمه پېړۍ مخکې د افغانستان مرکزیت قایم شوی وو د زمان شاه هم دا تصمیم او اراده وه چې د افغانستان مرکزیت او امنیت لا پسې ټینګ کړي او وې ساتي او په دې لار کې ډېرې داخلي او خارجي ستونځې ور پېښې شوې وې. زمان شاه د افغانستان د بحراني حیثیت ساتلو ته ډېر متوجه وو او د انګرېزانو د استعماري او زورګیرنه د سیاست مخنیوی کولو خود داخلي کشمکش په سلسله کې پاتې شو او خپل ورور شاه محمود زمان شاه ونیولو او ړوند یې کړ او د سلطنت مقام یې ترې لاندې کړو. زمان شاه ته د داخلي فیرورالانو او د د باندني استعماري انګرېزي او روسي زورګیرنه له خوا او د ایران د حریص بادشاه نه ډېرې ستونځې او کړاوونه ور پېښ شو او په آخر کې ډېر دو

او ځینو خپلو په واسطه زمان شاه په (۱۸۰۱م) کې خلع او ړوند شو او خپل وړور محمود چې د ایران او د سردار پاینده خان د ځامنو - مخصوصی د فتح خان وزیر په کومک بریالی شوی وو زمان شاه یې ړوند کړو او په سلطنت محمود قبضه وکړه او د افغانستان ډېرې برخې هم د پردو پلاس ورغلې وې چې د ډېرو افغانانو په قربانوا وینو ګټلې او ساتل شوې وې.

# د شاه محمود ابدالي سلطنت د (۱۸۰۱م نه تر ۱۸۰۴م) پورې

د زمان شاه د خلع او ړندېدو نه پس شاه محمود رسماً د افغانستان بادشاه شو - خو بې کفایته وو او د انګریزي استعماري سیاست په لمسون د ایران دولت او قاجاري بادشاه د افغانستان غربي خواته - خراسان د افغانستان نه بېل کړو او په ایران پورې یې وتړلو او شرق خواته سکهانو او رنجیت سنګ په پنجاب قبضه وکړه او تر پېښوره را ورسېده - شاه محمود خپل وزیر اکرم خان امین الملك مقرر کړو او د قاضي القضات رتبه یې ملا سعید خان ته ورکړه او شیر محمد خان د دولت دویم سړی وو او فتح خان ته د شاه دوست لقب ورکړی شو او - عبدالله خان الکوزی چې مخکې زمان شاه بندي کړی وو صفه یې د بند نه خلاص کړو او د کشمیر په حکومت یې مقرر کړو او د عبدالله خان مشهور

ځوی وزیر یارمحمد خان و وچې په هرات کې یې د ایرانیانو په مقابل کې د پر مقاومت کړی وو، او شهزاده فیروزالدین د هرات والي مقرر شو؛ شجاع الملك د زمان شاه سکه ورور و وچې د واره دیوې یوسف زیه مور ځامن وو، دغه وخت په پېښور کې وو او د دربار د خلکو او مشرانو سره یې خط او کتابت وکړو او له بله پلوه د غلجو لوی قوت د عبدالرحیم خان (غلجي) په مشرتابه د ابدالیانو د دې فاسد حکومت په مقابل کې راپاڅېده او مخامخ په غزني ور روان شو او غزني یې لاندې کړ او پاڅون کوونکي آن ترلوګره راورسېدل خو د شاه محمود لښکر د شیرمحمد خان مختارالدوله په مشرتابه د یاغي لښکر مخه په سجاوند کې ونیوله شورشیان د زړین په قلعه کې غونډ شو او د شپې د شپې یې د کابل د حملې په نیت مخه خواته حرکت وکړو خو مختارالدوله هم خبر شوی وو او مخه یې ونیوله او جنګ جوړ شو او ویلې شي چې په دې جنګ کې شپږ زره تنه مړه شو او غلجو د وسلې د لږ والي او د خوراك د نشتوالي له امله او تنظیم یې هم نه لارم نو ماتې یې وکړه، د بله پلوه شجاع الملك د زرداد خان پوپلزي حمله چې د یوسف زو نه یې په شجاع ګړې وه د ګل محمد خان او فیض طلب خان بامیزي په واسطه بېرته په شاکړه او شجاع د لښکر سره کابل ته ور روان شو، د شجاع مخکې لښکر د محمود لومړنه برخې لښکر ته په جلال آباد کې ماتې ورکړه خو د شاه محمود لښکر په اشپان

واک کې د شجاع لښکر مات کړی او د شاه محمود ځوی شهزاده کامران کابل ته ورغی او شجاع د کرمې او خیبر په دره کې پناه واخیسته او د نوې قوا ور په راټولېدو بوخت شو خو بیا عبدالواحد حاکم او خواجه محمد نظامي قوماندان د پېښور د شجاع لښکر ته د ناریانو په دغه د شینوارو د سنګوخېلو په دره کې مات ورکړه او شهزاده کامران هم د پېښور نه کابل ته ورغی او پلار یې شاه محمود کامران د قندهار په حکومت مقرر کړه او هرات ته یې هم فیروالدین د شاه محمود د ورور د میرافضل خان د قیصر د نایب په واسطه رسېدلی و (قیصر د زمان شاه ځوی او د هرات والي و ) قیصر و تښتېد او خپل تره شجاع الملک ته ورغی.

په (۱۸۰۳م) کال کې غلجو بیا د عبدالرحیم په مشرتابه د (۴۰۱) زره لښکر په زور په قندهار او کابل حمله وکړه خو غلجو په د وار ورځاذ و نو مات وخوړه او د بل پلوه د بخارا لښکر هم د آمو نه راپورې وتو خو په بلخ کې د شاه محمود لښکر ورته مات ورکړه او په شا وتښتېد - د ایران قاجاري دولت هم د فرصت نه استفاده وکړه او په خراسان کې چې د افغانستان علاقه وه نیشاپور او مشهد یې لاندې کړه او د نادر میرزا افغاني حاکم د (۱۸) تنو د کورنۍ د غړو سره یې تهران ته بوتللو او دیو ورکړتیې نه غیر نوره وقل یې اعدام کړه، شجاع الملک د اریدو د علاقې نه د غلجو او کاکړستان په

په لاره ښکارپور ته ورغی او ملتهٔ یې په زوره د سوداګرو نه څه پیسې ټولې کړې او څه لښکري جوړ کړه او په قندهار ورغی خود کوژک د غره سره یې د شهزاده کامران د لښکر نه ماتې وخوړه او ارغستان ته لاړ خو ملته د فیروزالدین پلله نوره لښکرچې ملك قاسم او خپل خوئی یې مشر وو په شجاع حمله وکړه خو شجاع الملك یې جنګه میدان پرېښود او وتښتېد، شاه محمود سره ددې او ضاعو د کابل په بالاحصار کې منه په قراره په خپل عیش او نوش او د ښځو په صحبتونو مشغول وو او د مملکت واګې د بیرځو تنو مخالفو خلکو په لاس کې وې چې د شاه محمود رقیبان او د یو بل د ښمنان وو، فتح خان شاه دوست او شیرمحمد خان مختارالدوله د محمد اکرم وزیر مخالف وو او ورسره وران وو او جنرال احمد خان نورزی او نواب خان او میرواعظ روحاني بزرګ، د شخص شاه محمود سره وران وو او د ښمني یې ورسره کوله شاه محمود فتح خان د پېښور د مالیې د را ټولولو د کار د پاره پېښور، کوهات او بنو ته ولېږلو فتح خان مالیه ټوله کړه او قندهار ته شهزاده کامران ته راغی او له هغه ځای نه کابل ته ورغی او وزیر شو شیرمحمد خان مختارالدوله چې د وزارت په طمعه وو د بادشاه په دې کار د برخنه شو او د «سید احمد میرواعظ» ملګری شو او محمد علي میراخور باشي او محمد خان نسا قچي باشي لا مخکې د کابل نه تللی او شاه شجاع ته ورغلی وو، په (۱۸۰۴م) کې لوړې وار

په کابل کې د شیعه او سُني په منځ کې مذهبي نزاع پوره ته شوه څرڅه وزیر فتح خان په صلحه او سلم غلي کړه ـ څرڅه وخت چې وزیر فتح خان د بامیانو د مالیې د راټولولو د پاره څغه خوا لاړ نو د کابل خلکو چې د شاه محمود داداري نه خوابدي وو راپاڅېدل او شاه محمود یې په بالاحصار کې راحصار کړو شاه محمود هم د بالاحصار نه په خلکو او ښار د توپو وزې وکړې خلکو هم ناراستي ونکړه او د بالاحصار ، شاه برج ، ته یې کند ، نقب ، ورواهه او د کوهدامن خلك هم د کابل د خلکو په کومك ور ورسېدل ، مختارالدوله هم د کابل نه شجاع الملك ته وتښتېد ، شجاع ته د کابل خلکو کابل ته د راتللو بلنه ورکړه او شجاع د کرمې او التمور په لاره زر کابل ته راغی او د کابل په باغ بابر کښې یې واړول او (۱۵۰) زره نفر وره ته راټول شو په دې وخت کې فتح خان هم د بامیانو نه د (۱۰) زره لښکر سره د شاه محمود د خلاصون د پاره را ورسېد خو د شجاع الملك لښکر د ـ مختارالدوله په مشرتابه په قلعهٔ قاضي کې د فتح خان مخه و نیوله فتح خان قندهار ته وتښتېد او شاه محمود تسلیم شو او بندي شو او شجاع الملك په بالاحصار کې د چپل سلطنت اعلان وکړو د شاه محمود ځوی کامران په قندهار کې وو او فتح خان هم ورغی.

# د شاه شجاع سلطنت د «۱۸۰۴ م نه تر ۱۸۰۹ م» پورې

شاه شجاع لوهري پنځه زره سواره د مختارالدوله د ځوی عطامحمد خان په مشرتابه قندهار ته په کامران پسې ولېږل چې جرنیل احمدخان نورزی او سیدال خان او شهزاده حیدر هم ورسره وو. شهزاده کامران او فتح خان بې جنګه له قندهاره فراه ته لاړه او وتښتېدل او قندهار ونیول شو شاه شجاع د هرات سره غرض ونکړ او هغه ښار دپخوا په شان د فیروزالدین د محمود د ورور پلاس کې وو، فیروالدین د فراه ولایت چپاول وباره کامران ته ورکړ وخو فتح خان ورسره جوړ را نغی هغه تر یې معروف ته لاړ. شاه شجاع قندهار شهزاده قیصر ته ورکړو او ملاعاشق شینواری چې زمان شاه یې د شاه محمود پلاس ورکړی وو کابل ته وغوښت او مړ یې کړو او د ملاعاشق د قلعه نه یې د کوه نور «الماس» هم پلاس راوړ، فتح خان هم د مختارالدوله په واسطه عفوه شو او شاه شجاع ته راغی خوښکاری وو ځکه چې په افغانستان کې به دا آوازه او انګازه وه چې فتح خان تاج بخش دی نو فتح خان هم د دې تلقین د تاثیر لاندې راغلی وو څه وخت چې شاه شجاع د ۱۰۰۰۲، زره لښکر سره پېښور ته د کشمیر او دیرجات د مالیاتو

د هولولو د پاره روان شو نو فتح خان تر پېښ بېل شو او قندهار ته لاړ او د شهزاده قیصر خواته ورغی - شهزاده قیصر یې د بادشاهۍ د پاره جوړ کړ او هغه چېل مشیر او نایب احمد خان نورزی بندي کړ او ځان یې د سلطنت د مدعي په حیث اعلان کړ او د چېل لښکر او فتح خان سره کابل ته ور روان شو چې کابل ونیسي - شاه شجاع چې خبر شو بېرته کابل ته راستون شو او کابل ته راغی او په قلعهٔ قاضي کې یې ځان وینولو - قیصر او فتح خان چې زور ونه لید او فیض الله خان هم د لښکر سره تر پېښ شاه شجاع ته وراغی بېرته قندهار ته وګرځېدل او شاه شجاع ور پسې ورغی او فتح خان او قیصر له قندهار نه هم وتښتېدل - ړوند زمان شاه د شاه شجاع - ورور هم ورسره و او هغه شاه شجاع ته سفارش وکړ چې د هغه ځوی قیصر عفوه کړي او د قندهار حکومت ورته بېرته ورکړي او زمان شاه به هم ورسره وي شاه شجاع ومنله - او قندهار یې قیصر ته ورکړو. په دې وخت (۱۸۰۵م)، کې د بخارا د بادشاه - امیر حیدر تور له خوا هم شاه شجاع ته سفیر راغی او د خپلوۍ - پیغام یې راوړی وو چې امیر حیدر لور دې شاه شجاع وکړي او د شاه شجاع لور دې امیر حیدر ته ورکړي خو شاه شجاع د اخبره ونه منله - شاه شجاع د سند د انتظام د پاره د قندهار نه هغه پلو روان شو شاه شجاع چې شکارپور ته ورسید د سند میرانو دوه میلونه روپۍ

مالیه ورته راوړه شاه شجاع د دغه ځای نه دېروت ته را وګرځېداو په (۱۸۰۶م) کې پېښور ته راغی او مختارالدوله یې د کشمیر د مالیې د پاره دغه خوا ولیږلو مختارالدوله عبدالله خان د کشمیر والي چې د ډېر دکار سړی وو د کشمیر د حکومت نه لرې کړو او د دغه په ځای جنېل ځوی عطامحمد مقرر کړو هم په دغه کشمکش کې عبدالله خان وفات شو. فتح خان بیا داوار کامران ته ورغی او دغه یې په قندهار پسې راپاڅوه او د قیصر نه قندهار و نیولو شاه شجاع چې خبر شو په قندهار پسې یې لښکر وکړو خو کامران او فتح خان ـ وتښتېدل فتح خان بیا د شاه شجاع نه عفوه وغوښته او عفوه شو شاه شجاع په قندهار کې شهزاده یونس حاکم مقرر کړو او د کابل حکومت یې قیصر ته ورکړو او شاه شجاع شکارپور ته لاړ په دې وخت کې شاه محمود بندي د کابل د بالاحصار نه د علي محمد خان فوفلي په کومک وتښتېد او فراه ته لاړ - شېرمحمد خان مختارالدوله هم د کشمیر نه کابل ته راغی او قیصر یې بیا بغاوت ته جوړ کړو او خواجه محمد خان پوپلزی یې هم ملګری کړو او پېښور ته یې لښکر وکړو فتح خان هم د شکارپور نه وتښتېد - شاه شجاع د شکارپور نه پېښور ته راغی او په (۱۸۰۸م) کې د قیصر د لښکر سره یې جنګ وکړو او مختارالدوله او خواجه محمد خان د واړه په جنګ کې ووژل شو او قیصر کابل ته وتښتېد، څه وخت چې بادشاه کابل ته راغی نو میرواعظ صاحب

لا مخکې بندي شهزادګان یعنې (د تیمور شاه نور ځامن) د بالاحصار نه
خلاص کړي وو او کوهدامن ته د قیصر سره تللي وو او د مختارالدوله
انتقام غوښتلو او د شاه شجاع د لښکر سره یې څو جنګونه وکړه او
د مختارالدوله ځوی عطا محمد هم په کشمیر کې بغاوت کړ او فتح خان
په قندهار کې شهزاده یونس ولساوه او میرعلم خان کابل ته په تښتېدو
مجبور کړی شو او شاه محمود یې له فراه نه راوغوښت او په قندهار
کې یې بادشاه کړ په دې وخت کې په ټول افغانستان کې خانانو
او زمکه والو سر اخیستی وو او هرچېرته د نفاق او شقاق اور بل
وو او افغاني ولس په کورنۍ غم اخته وو د دولت مرکزي قوت
له منځه تللی وو او بادشاه چې پخپله د دغه خلکو په قوت منځ ته
راغلی وو د هغوی د رضا تابع وو او سړی ویلی شي چې د شاه شجاع
او شاه محمود په وخت کې د مرکزي دولت قوت د محلي فیوډالانو
پلاس کې وو او مستقل وجود یې نه لاره او د افغانستان د
استقلال او خپلواکۍ په باب هم د بادشاه سره څه فکر نه وو د
خپل ځان او خپلې خانۍ بادشاهۍ په غم کې وو. قاجاري ایراني دولت
چې دا حال ولیده نو په هرات یې حمله وکړه او هرات یې (۴۰)
څلوېښت ورځې محاصره کړ او آخر فیروزالدین مجبور شو چې
محمد ولي میرزا ته څه پیسې او تحفې ورکړي او بېرته ګرځېد و
ته یې ترغیب کړ محمد ولي میرزا بېرته ایران ته وګرځېده خود

پنځه سوه تنو افغاني مدافعينو سره ونه يې په نيزوکې فتح علي شاه ته وليږل او د لارې د سرتول افغاني کلي او اوسني خلک يې تالاترغه کړه شاه شجاع د شاه محمود او فتح خان د مقابلې دپاره قندهار ته ورسره روان شو او د غزني نه ور تېر او پل سنګي ته چې ورورسېد نو شاه محمود او فتح خان بې جنګه د قندهار نه فراه ته وتښتېدل - شاه شجاع هم فراه او هرات ته روان شو خو په لارکې د فيروزالدين د تسليمۍ نه خبر شو چې شاه شجاع ته يې غاړه ايښې وه او شاه شجاع هم د پخوا په شان د هرات په حکومت هغه مقرر کړی وو او د شاه محمود د آينده اعمالو ضمانت يې هم کړی وو نو شاه شجاع بېرته وګرځېد او په (۱۸۰۹م) کې د کشمير د چارو د سمون د پاره پېښور ته لاړ او د شهزاده منصور په مشرتابه يې (۱۲) زره لښکري کشمير ته وليږل او د شهزاده سره محمد اکرم خان ——— امين الملک هم وو- دا وخت و چې د انګريزانو لوړی سفير الفنستن د راجپوتانې نه د سند او ديره او کوهاټ په لاره پېښور کې د شاه شجاع حضور ته راغی او د پېښور په بالاحصار کې د شاه شجاع حضور ته ورغی (الفنستن د افغانستان په باب کتاب ليکلی او ډېر معلومات يې راټول کړي دي) او دا هغه وخت وو چې د انګليسي دولت د زار روس او د فرانسې د ناپليون د اتحاد نه وېرېدلو چې په هند به حمله وکړي!

د الفنستن هیئت په سند او ملتان کې هم ځینې معاهدې کړې وې او د دې مقصد د پاره د شاه شجاع حضور ته هم راغلی وو او په «۱۲» مارچ «۱۸۰۹م»، کې سرهارد فورډ د انګریز ایران ته راغلی وو او د شاه قاجار سره یې معاهده کړه وه چې یو اروپائي ملک به هم نه پرېږدي چې د ایران په لاره تېر او په هند حمله وکړي الفنستن ډېرې تحفې توپک، تمانچې، آیینې او ساعت او زردوزي بالاپوش او نوره څه د انګلستان د باد شاه له خوا شاه شجاع ته راوړي وو د الفنستن سره د خبرو او معاهدو د تسوید د پاره محمد اکرم خان امین الملك او ابوالحسن خزانه دار مقرر شوي وو چې په «۱۷» جون «۱۸۰۹م»، کې لومړی وار د انګرېزانو او د افغانستان د حکومت معاهده وشوه چې د انګرېزانو د هند د دفاع مقصد یې پوره کولو- انګرېزانو د شاه شجاع سره درې معاهدې کړې وې چې یوه هم د اد پېښور معاهده وه چې شاه شجاع د افغانستان رسمي باد شاه وو- او دویمه معاهده یې د لاهور وه چې شاه شجاع د غه وخت مخلوع او بې اختیاره شوی وو او دریمه معاهده یې د قندهار وه چې شاه شجاع د انګرېزانو د فوځي زور پلاس کې وو. او دې درې واړو معاهدو نه د انګرېزانو چل او فریب په شرق کې په ښکاره ښکارېږي، او انګلیسي ابن الوقتي ترې ښه معلومېږي !!

د معاهده اوله معاهده په (۱۷) جون (۱۸۰۹م) کې په پېښور کې شوې وه او دوهمه معاهده په (۲۶) جون (۱۸۳۸م) کې په لاهور کې شوې وه او درېمه معاهده په قندهار کې په (۲۶) جون (۱۸۳۸م) کې شوې ده دا درې واړه معاهدې شاه شجاع د انګرېزانو سره کړې وې چې افغان ملت شاه شجاع ته د دغه معاهدو په ګناه په (۱۸۴۲م) کې د مرګ سزا ورکړه.[۱]

شاه شجاع په پېښور کې چې لومړۍ معاهده د انګرېزي سفیر الفنستن سره لاس لیک کوله د اغه وخت وو چې د شاه شجاع لښکر په کشمیر کې ماتې خوړلې وه. او په قندهار کې محمد عظم خان او میرعلم خان د شهزاده یونس نایبانو په خپل منځ کې سره اخته وو او میرعلم خان په پټه د شاه محمود او فتح خان سره جوړه کړې وه او د فراه نه یې د قندهار د نیولو د پاره رابللي وو او هغوی راغلل او میرعلم خان سره د لښکره شاه محمود ته تسلیم شو او شهزاده اعظم پېښور ته وتښتېد شاه محمود په قندهار کې بیا د خپل سلطنت اعلان وکړه او د قندهار حکومت یې خپل ورور شهزاده ایوب ته ور وسپوه چې اسدالله خان د فتح خان ورور یې نایب وو. او په خپله او فتح خان کابل ته روان شو. د فتح خان د میرعلم خان سره ورانه او رقابت وو

---

(۱) د دغه معاهدو تفصیل په مسیر تاریخ (۳۹۷) کې تر (۳۹۹) پورې وګورئ.

نو میرعلم خان یې د شاه محمود په حکم بندي او بیا مړکړ ـ او شاه محمود
او وزیر فتح خان کابل ته ورروان شو او کابل یې ونیولو او په
شاه شجاع پسې پېښور ته ورروان شو او شاه شجاع هم کابل ته ور
روان شو دا د واړه لښکرې د خوګیانو په میمله کې سره مخامخ شوې
نو د شاه شجاع لښکر ماتې وکړه او امین الملک محمد اکرم خان ووژل
شو او د دې ماتې سبب د مدد خان خیانت وو چې د شاه شجاع یو ـ
جرنیل وو او د کشمیر په جنګ کې هم ماتې کړې وه ؛ شاه شجاع چې پېښور
ته ورسید خبر شو چې ابوالحسن خزانه دار او ملا جعفر د شاه شجاع
کړې د اټک قلعه ته بیولې وې او جواهر او طلا یې د خان سره
اخیستي او لاهور کې رنجیت سنګ ته ورغلي وو او دا خبر هم را
ورسید چې شاه محمود جلال آباد ته راورسید او شهزاده کامران
یې د پېښور نیولو ته رامقرر کړی دی نو شاه شجاع د پېښور نه کوهاټ
او بنګښو ته او بیا نورو جنوبي علاقو ته د لښکر د ټولولو د پاره
ورغی ـ او لښکرې یې ټول کړه او په (۱۸۱۰م) کې یې بیا قندهار و
نیولو ـ او نواب اسدخان او شهزاده ایوب کابل ته وتښتېدل ـ
شاه محمود چې خبر شو د جلال آباد نه کابل ته بېرته وګرځېد ـ او کامران
شهزاده پېښور لاندې کړه او د پېښور حکومت یې عطا محمد خان
د مختار الدوله خوی ته ورکړه او پخپله کابل ته راوګرځېد ـ شاه
محمود په قندهار پسې لښکر وکړ او شاه شجاع ماتې وکړه او د دیرو

په لاره راولپنډۍ ته لاړ او په دې ډول د شاه شجاع سلطنت ختم شو
خو شاه شجاع په قرار نه و او ولاس او پښې خوځولې - او بيا يې څه
لښکر ټول کړه او په (۱۸۱۱م) کې بيا قندهار ته راغی او د شاه محمود د
د لښکر سره يې جنګ جوړ کړه خو بيا مات شو او پېښور ته لاړ او
عطامحمد د کشمير ياغي والي شاه شجاع ونيوه او په کشمير کې يې بندي
کړه په (۱۸۱۳م) کې د شاه محمود او فتح خان لښکر او (۱۰) زره د
رنجيت سينګ امدادي لښکر د فتح خان په مشرتابه په کشمير حمله
وکړه او په عطامحمد او کشمير بريالی شو او کشمير فتح خان لاندې
کړه او شاه شجاع يې د حکم چند د سکهانو د قوماندان پلاس
ورکړو - چې رنجيت سنګ ته يې وسپاري ، شاه شجاع د رنجيت
سنګ پلاس ورغی او په لاهور کې يې بندي کړه او کړاو به يې
چې کوه نور الماس ترې واخلي خو رنجيت سنګ هر څه وکړه چې
د کوه نور الماس تر لاسه کړي خو شاه شجاع د رنجيت سنګ د بند
نه په څه چل په (۱۷۱۵م) کې وتښتېده او بيا يې لښکر جوړ کړه
او په کشمير يې حمله وکړه خو ماتې يې وخوړه او په (۱۷۱۶م) کې
لو د هيانې ته ورغی او د انګرېزانو په دام کې کېوت او بيا هغوی
دغه بد نصيبه مخلوع باد شاه د خپلو غرضونو د پاره استعمالوه
چې آخر په (۱۷۳۸م) کې د درې ګوټي معاهده يعنې د لاهور د
رنجيت سنګ او انګرېزانو او شاه شجاع ګډ تړون يې پرې لاس

لیک کړه - او په (۱۲۳۹م)، کې د انګریزي لښکر په زور افغانستان ته راغی او په (۱۲۴۲م)، کې شاه شجاع د چنل دوست او ملګري انګریزي لښکرو سره د افغان غیرتي ملت د قهر په پنجه کې ورغی او سر یې وخوړ.

# د شاه محمود دویم وار سلطنت

## د (۱۷۰۹ میلادي نه تر ۱۷۱۸ میلادي) پورې

د شاه محمود دویم وار سلطنت چې د فتح خان په کومک جوړ شو نو داري دولت یې هم بدل کړی شو اوس نه شاه شجاع په منځ کې وو او نه د فتح خان لکه (محمد اکرم خان امین الملک او شیر محمد خان مختار الدوله او میر علم خان هم وژل شوي وو)، میدان سردار فتح خان او ورونو ته یې خالي شوی وو شاه محمود دارګ د ننه پټپله عیاشۍ اخته وو او وزیر فتح خان او ورونه یې په افغانستان مسلط شو فتح خان چنل ورونه د مملکت په ځینو غټو ولایاتو حاکمان مقرر کړه لکه بلوچستان یې سردار رحدل خان ته ورکړه د دې نه پس چې لقب د سردار او یا نواب چې یاد یږي نو مطلب به یې د فتح خان د کورنۍ غړي او محمد زیان وي، په قندهار یې

سردار پردل خان په پښور کې سردار سلطان محمد خان (طلائی)
په غزني کې سردار شېردل خان په باميانو کې سردار کهندل خان
مقرر کړه او نور ورونه يې لکه سردار محمد عظيم خان نواب -
جبار خان نواب، اسد خان او سردار دوست محمد خان چې وروسته
امير دوست محمد خان شو، د مرکز په اداره د خان سره پرېښودل
او په کارونو يې مقرر کړه - چې وروسته محمد عظيم خان دکشمير
والي و ټاکل شو.

شهزاده کامران د شاه محمود ځوی د وزير فتح خان د دې بې
حده واک او اختيار دېر مخالف و وخو د پلار د رضا نه بې غير يې
څه کولی شو؛ د وزير فتح خان په مخکې يو څند په کشمير کې د عطا
محمد خان حکومت پاتې وو!! او غوښتل يې چې دا خنډ هم لرې کړي
نو پدې بهانه چې د کشمير ماليه نه راځي په کشمير پسې يې په ۱۸۱۲م،
کې لښکر وکړو عطا محمد خان چې خبر شو نو هغه هم خپل لښکر تيار
کړو او مقاومت يې وکړو، وزير فتح خان په دې وخت کې د رنجيت
سنګ سره خبرې وکړې او فوځي کومک يې ترې وغوښت او په
بدل کې ورته د دريمه برخه د کشمير ماليه ومنله - د پنجاب سکهه
حکومت ۱۰، زره لښکر د محکم چند قوماندان په مشرتابه کې
ورکړه کشمير لاندې کړی شو او د سردار فتح خان ورور
محمد عظيم خان پرې حاکم مقرر شو. او پردو د افغانستان په

داخل کې د مداخلې موقع ورکړل د وزیر فتح خان په نامه داېی تور داغ دی.

رنجیت سنګ موقع وموندله د کشمیر د الوګولو په وخت کې په (۱۸۱۲م) کې یې د عطامحمدخان د ورور سره سازباز وکړ او هغه داټک جنګي قلعه د رنجیت سنګ حاکمانو ته و سپارله.

رنجیت سنګ په (۱۸۱۴م) کې په دې بهانه چې د کشمیر مالیه ده ته نه راځي په کشمیر پسې لښکر وکړ وخو سردار محمد عظیم خان ورته سخته ماتې ورکړه او د سکهانو مشهور جرنیل منه سنګ په جنګ کې ووژل شو.

رنجیت سنګ د افغانستان د داخلي جنګونو او الوګولو نه ګټه اخیسته په (۱۸۱۸م) کې سکهانو په ملتان حمله وکړه، مضفرخان د ملتان افغاني حاکم شپږ میاشتې پوره مقاومت وکړ چې آخر دی او د وه ځامن یې په جنګ کې مړه شو او د وه نور ځامن یې وېنول شو او ملتان سکهانو لاندې کړ او د افغانستان نه هیڅ کومک هم ملتان ته ونه رسیده ځکه چې شاه محمود او وزیر فتح خان په خپلو منځو کې سره اخته وو.

فتح علي شاه قاجار د ایران بادشاه چې خراسان یې لا مخکی د خپلې خولې نمرچه کړی وو په (۱۸۱۶م) کې د هرات د نیولو د پاره لښکر وکړ او حسن علي میرزا یې د فوج سر لښکر و ټاکلو، او د غوریان

قلعه یې ونیوله شهزاده فیروزالدین د کابل نه کومک وغوښت او
شاه محمود څه لښکر د وزیر فتح خان په مشرتابه د هرات د کومک
د پاره هرات ته ور ولیږلو وزیر فتح خان د خپلو ځینو ورونو لکه
پُردل خان، شیردل خان، کُندل خان او دوست محمد خان هرات
ته ورغی خو مخکې له هغې چې د ایراني لښکر سره وجنګیږي شهزاده
فیروزالدین چې مخې ته یې راغلی وو بندي کړه او کُندل خان
او دوست محمد خان یې د ننه د هرات ښار ته ور ولیږل هغوی
په ناڅاپي ډول ارګ ته ور ننوتل او هراتي افسران (زینل خان
او حسن خان) یې ووژل او شهزاده قاسم (د شاه محمود زوم) یې
ژخمي کړ او حاجي آغاجان د هرات وزیر او سردار عبدالرشید
یې اعدام کړه او بیا د شهزاده فیروزالدین حرم سرای ته ور
ننوتل او ټولې نقدې پیسې او جواهر او ګاڼې یې ضبطې کړې او ویلې
شي چې دوست محمد خان پخپل لاس د شهزاده قاسم د ښځې (د
شاه محمود د لور نه) ګاڼې راټولې کړې. څه وخت چې وزیر فتح خان
ښار ته راغی نو په دوست محمد خان باندې د ځینو کارونو د کولو
له آمله په قهر شو او څوک وایي چې نه له هغه له دې امله چې
ځینې قیمتي جواهر چې پلاس ورغلي وو وېرېده چې فتح خان یې ترې
واخلي د هرات نه وتښتید او کشمیر کې خپل ورور سردار محمد عظیم
خان ته ورغی خو وزیر فتح خان عظیم خان ته د دوست محمد خان

دې اعتداليو وليکل او عظيم خان دوست محمد خان د کوه ماران په
بندي خانه کې بندي کړه . وزير فتح خان فيروز الدين د شاه محمود
ورور د هرات حاکم سو د کډو بندي کابل کې شاه محمود ته واستول
او پخپله د لښکر سره د ايرانيانو مقابلې ته ورووتلو او آن تر اوسني
اسلام قلعه پورې ورغلل او سره د دې چې څه زخمي شوی هم وو
خو دښمنان يې په کهسان کې هم مات کړه او تر مشهده په تېښته-
لاړل - وزير فتح خان د فيروز الدين د شاه محمود د ورور سره چې څه
وکړه هغه په مملکت کې د عمومي بد امنۍ او الغاو تلغاو سبب شو څه
وخت چې شاه محمود د دې حالې او د هرات د وضعيت نه خبر شو
نو په شمي کال (١٨١٧م) کې شهزاده کامران د هرات د چارو د
سمون د پاره ورولېږلو چې د هرات حکومت د خپل تره فيروز الدين
په ځای تر لاسه کړي- شهزاده کامران د وزير فتح خان د ډېر زيات
اقتدار له کبله زړه خوږېدی وو څه وخت چې وزير فتح خان د ده
د استقبال د پاره د کامران دربار ته راغی شهزاده کامران دی بندي
او روند کړه د فتح خان ورونه چې خبر شول له هراته وتښتېدل او
هرچېرته يې د وزير فتح خان بند او روندول بهانه کړه او د خپل
نفوذ لاندې علاقو کې يې په بغاوتونو پيل وکړ او په افغا-
نستان کې د خانه جنګۍ اور بل شو سردار محمد عظيم خان د فتح خان
مشر ورور چې په کشمير کې وو هغه هم څه لښکر را ټول کړه او دوست

محمدخان یې له بنده خوشې کړه او د لښکر مشري یې ورکړه او کابل ته یې ور ولېږلو. سردار پردل خان د فتح خان بل ورور هم په قندهار لښکر وکړه او سردار گل محمد خان چې په قندهار کې د شاه محمود حاکم و، د قندهار نه هرات ته وتښتېده. شاه محمود خپل نمسی جهانگیر په کابل کې پرېښود او عطا محمد د کشمیر پخوانی والي یې ور سره د وزیر په حیث مقرر کړه او پخپله غزني ته روان شو او کامران هم د هرات نه غزني ته را روان وو. سردار یار محمد خان او سردار دوست محمد خان چې څه وخت پېښور ته راغلل نو شهزاده ایوب سدوزی یې هلته باد شاه کړه. سردار محمد عظیم خان لا مخکې فراري شاه شجاع د باد شاه کېدو د پاره رابللی وو او لیک یې ته لېږلی وو. څه وخت چې دوست محمد خان کابل ته ورسېد نو د کابل والي شهزاده جهانگیر ماتې وکړه او غزني ته وتښتېد او وزیر یې عطا محمد د دوست محمد خان پلاس ورغی او ړوند یې کړه او دوست محمد په کابل کې د خپل لښکر ځای وټاکه. سردار محمد عظیم خان هم د کشمیر نه پېښور ته راغی او شاه شجاع هم هلته راغلی وو او بیا یې خپل سلطنت جوړ کړی وو خو سردار محمد عظیم خان د خپلو وعدو په خلاف هغه د پېښور نه تېښتې ته مجبور کړه او شکارپور ته لاړ او پېښور سردار عظیم خان لاندې کړه. شاه محمود او شهزاده کامران د غزني نه کابل ته را روان شو چې فتح خان هم ور سره وو او په

لاره سید اباد د وردکو کې ورونه فتح خان ته وویلي چې خپل ورونه په قرار که فتح خان وویل چې زه ورونه سړي یم زما دلاسه څه کیږي ؟ او څنګه ورونه په قرار ولی شم ؟

په دې وینا شاه محمود په قهر شو او فتح خان یې هم هلته ووژلو «خلک وایي او ځینې مورخین لیکي لکه سید مهر کاکاخیل د پښتنو د تاریخ په رڼا کې چې لیکلي دي چې لومړی د توري ګذار یې پخپله شاه محمود وکړ او بیا شهزاده کامران او نورو افسرانو په تورو و وهلو او ویې وژلو» خو د کابل چهار آسیاب چې شاه محمود ته و رسید نو خبر ورته راغی چې قندهار سردار شیردل خان، کُهندل خان او پردل خان ونیوه نو د شاه محمود د هرات سره چې رابطه قطع شوه نو هم واخیست له هغه ځایه د قلات او ده راود په لاره هرات ته لاړ - هرات یوازې د شاه محمود پلاس کې شو او نور افغانستان د وزیر فتح خان د ورونو پلاس ورغی او ابدالي دولت په افغانستان کې له منځه لاړ او شهزاده فیروزالدین هم ایران ته لاړ او هلته پناه ګزین شو او د ( ١٨١٨م ) کال وو او ابدالي سلطنت د یو شهزاده نشین په حیث بیرته ژوندي شو او یوازې د هرات په قالب کې پاتې وه چې د کال ( ١٨٦٣م ) پورې یې دوام وکړ چې د میمنې او فراه او د هزارجات د ځینو برخو پورې هم ورغځیدلي وو، خو د شاه محمود هرات ته بیرته د ورتللو نه پس د هرات اداره په

دېرش ورځې شهزاده کامران پلار سرکې ونیوه شاه محمود چې دا کار ولید
او کامران په هرات کې ځ وروور وو نو له هراته نه ووت او د
باندې یې د ایماقو خلکو نه یو لښکر جوړ کړه او په هرات وروګرځېد
او هرات یې قلا بند کړه خو په (۱۸۲۰م) کې شاه محمود د خپل ځوی کامران
په مقابل کې مات شو، مګر بیا یې په (۱۸۲۱م) کې شاه محمود په هرات حمله
وکړه خو د ولس خلك په منځ کې شو او د ځوی او پلار جوړه یې په دې
وکړه چې پلار یعنې شاه محمود به باد شاه او ځوی کامران به یې وزیر
وي. دا فیصله د واړو خواو ومنله د دې نه پس شاه محمود بس په
عش او عشرت ونښت او د ښځو سره یې سروکار ووا او د سیاسي
چارو ته یې هیڅ توجه هم نه وه او کامران په مستقل ډول حکومت
کولو. په (۱۸۲۲م) کې شهزاده فیروز الدین چې ایران ته د پناه
ګزین په ډول ورغلی وو د تایمني قلیج خان په واسطه او د قاجاري
ایراني حکومت په مرسته یې په هرات حمله وکړه او د کامران قوت یې
درې میاشتې مدافعه وکړه او په یو لسم جنګ کې قلیج خان په میدان
جنګ کې ووژل شو او فیروز الدین بندي ونیول شو قاجاري دولت
مجبور شو او د څه پیسو اخیستلو په بدل کې صلحه وکړه او ایراني
لښکر بېرته په شا وګرځېده او شهزاده کامران بیا د فراه د نیولو
په فکر کې شو چې دا ولایت قندهاري سردارانو ته تسلیم شوی وو
کامران د فراه ولایت د لښکر په زور بیا ونیوه. خو په هرات کې ـ

فیروزالدین محمد حسین حاکم او مصطفیٰ د هرات قوماندان پاڅون وکړ، او (۱۲۳۰ کال) جهانګیر د کامران ځوی یې په هرات کې رئیس کړ، او شاه محمود لا په ارګ کې د بادشاه په حیث موجود وو او وچنل شراب او کباب خوړل، محمد حسین او مصطفیٰ زر جهانګیر هم بندي کړ، او پخپلو منځو کې سره اخته شوا و محمد حسین شهزاده فیروز الدین د بند نه راخلاص کړ او په هرات کې رئیس کړ، او مصطفیٰ شاه محمود را و ویست او د علم ابیرغ، د لاندې یې ودراوه او جګړه جوړه شوه چې (۱۸) ورځې اوږده شوه له هرې خوا ګولۍ وریدلې. اخر محمد حسین او فیروز الدین مات شو او د هرات نه مشهد ته وتښتېدل او کامران چې د فراه نه را وګرځېد نو د مصطفیٰ د دفاع سره مخامخ شو او بېرته وګرځېد مصطفیٰ د قندهار د حاکم شیردل خان یوه حملهٔ په شا وتمبوله، او پخپله مستقل واکدار شو، خو د هرات خلکو کامران د ځینو وجوهاتو له کبله لکه میړانه او زړه ور توب په نورو امراو و مرجح ګڼه نو را پاڅېدل او مصطفیٰ یې د لس زره لښکره سره په ارګ کې قلابند کړ او شهزاده کامران ته یې د هرات د راتللو بلنه ورکړه، کامران راغی مصطفیٰ مغلوب شو او بندي او اعدام شو او د شاه محمود نه یې شراب منع کړه او چنل باغي ځوی جهانګیر هم بندي کړه په دې وخت کې د فراه خلکو چې د هرات دارې ګڼي وا وریدل نو خان یې بېرته په قندهار پورې وتاړه ـ خو کامران د لښکر په زور بیا فراه د هرات پورې وتړله؛

په ۱۸۲۹ ام، کې شاه محمود په خپل تشناب «غسل خانه» کې مړ وموندل
شو (خلك وايي چې وژل شوی وو) له دې نه پس کامران دابدالیانو
دمستقل باد شاه په حیث دخپلې باد شاهۍ اعلان وکړ او دکامران ـ
وزیر عطا محمد خان الکوزی وو چې په ۱۸۳۰ ام، کې مړ شو او په ځای
یې یار محمد خان دعبدالله خان الکوزي ځوی دکامران وزیر شو ـ اودا
ډیر لایق او په کار پوه شخص وو او دهرات په اداري او منظامي
چارو کې یې ښه بدلونونه وکړه ځو د قاجاري دولت باد شاه ـ
محمد شاه چې د فتح علي شاه په ځای ناست وو د روسانو د تزاري
په لمسون په هرات دتیری او فوځ په زور چې اروپائی افسران
هم پکې وو. په ۱۸۳۷ ام کال حمله وکړه داداسې وخت وو چې ـ
انگریزانو هم د شرق له خوا په افغانستان دحملې کولو تیاری کولې
او د افغانستان له هرې خوانه د مرگ ترطیبي کیدلې ـ ابدالي دولت
له منځه تللی وو او په مملکت کې ملوك الطوايفي وه ول محلي حکومتونه
وو (محمدزو ورو) زوروراو دښمنان لکه انگریزان اودسکهانو
دپنجاب دولت هم کړی وو او د وطن والانو سره په لانجو اخته ول
ځکه چې روسانو او انگلیسیانو د وارو په پنجاب او افغانستان
او ایران کې قوي حکومت نه غوښتلو چې د دوی د منافعو سره ټکر
وکړي ـ محمد شاه قاجار د (۳۶) زره قوي لښکر په زور د روس
د تزاري دولت په لمسون په افغانستان حمله وکړه او څه وخت چې

د افغانستان بريد ته ايرانيان ور سپدل نو لښکري (۴۰) زره ته رسيدلی وو، او په دې لښکر اروپايي قوماندانان هم وو چې عبارت وو د لفتننټ کرنل بلارم برگ د انجنيري افسر مخکې چې د روس د سفارت غړی وو او جنرال بوروفسکی او کرنل سمينوف روسي وو، د ايران نظامي قوه د مستخدمينو په نوم وه، او سارجن سمسن او يوه پوليندی افسر د پروسکی په نوم يکې هم وه او ايراني افسران يکې سپه سالار محمد ولي خان او شهزاده محمد رضا او شهزاده علي قلی ميرزا او سلطان محمد ميرزا او شهزاده بوحسن ميرزا، فرخ غفار سکندر قاجار، جعفر قُلي سالار، محُب علي جنرال، عبدالله ياور، جعفر سرهنگ، شير خان او احمد بيک او نور يکې وو - د ايران د دې زور او ر لښکر په مقابل کې يوازې د افغانستان يو ولايت او د يو ښار هرات (۶) زره لښکر وو او بس نوره څه نه وو او د قندهار سردارانو هم د ايران پلوي کوله او سردار عمرخان دکندل خان ځوی د خلورو زرو سورو سره د ايران په مرسته هرات ته ور ليږلي شوي وو - چې څخه فراه او اسفزار د کامران د ځوی جلال - الدّين نه لاندې کړه او سردار دوست محمد خان د کابل نه د ايران دولت د هرات د نيولو کار ته تشويقولو - او سردار شمس الدّين د هرات نه وتښتيد او ايرانيانو ته ورغی سره د دې چې د شهزاده - کامران خپل اوښی وو، داحال هرف د سردارانو وو او نوره ملت

دچلې ملي آزادۍ په جذبه ولاړ وو - د روس سفیر په ایران کې او روسي
قونسل په قندهار کې ددې اوضاعو نه ښه خبر وو او استفاده یې
هڅې کوله - انګریزان په دې وخت کې د ایران دلښکر نه چې د روس په
ملسه په افغانستان ورغلي وو ځنیوۍ نشو کولی نو یواځې برنس او مستر
لیچ یې د کابل نه قندهار ته ور ولیږل او غوښتل یې چې انګریزان
هم د روس په مقابل کې افغانستان ته ور ننوځي نو افغانستان په دې
وخت کې د جرندې د دوو پلونو په منځ کې واقع وو په هدې وخت کې
د افغاني ولس حیرانونکی طبعي استعداد او د مبارزې قوت په -
آسیا کې ظهور وکړ او دلوی خدای جَلَّ جَلَالُهُ په فضل د اغیرتي
ملت د دې مرحلې نه هم بریالی ووت :

محمد شاه قاجار په (۱۸۳۷م) کې د کال په اواخرو کې د افغاني سرحد
نه را تیر شو او په فوځي ترورې د غوریان قلعه ونیوه او د یار محمدخان
وراره شیر محمدخان یې بندي کړه او ایراني افسر الله یارخان سیف الله
د (۱۲) زره فوځ سره د هرات د علاقې آن تر میمنې پورې و نیولو په
کار مامور شو او پخپله محمد شاه په (۲۳) نومبر (۱۸۳۷م) کال کې د هرات
محاصره وکړه او دې قلابندۍ آن تر (۸) د سمبر (۱۸۳۸م) کاله پورې
دوام وکړ - او په دې موده کې ایرانیانو د هرات چار چاپیره تقریباً
(۳۰) کیلو متره علاقه تالا ترغه کړه او برباد یې کړه او د هرات په ښار
کې د ننه هم د ایران توپخانې ، بانارونه ، سرایونه او کورونه وران

کړي وو او په ښار کې د ډېر قحطۍ راغلې وه او په ډېرو لږو شو وبندیانو
د ایران حکومت امر کړی وو چې هر یو دې (۲۵۱) زره روپۍ تحویل
کړي نو هله به خلاص شي په دې حال کې یو افغان بندي پیر محمد شاه
په خنجر حمله وکړه خو کامیاب نه شو نو محمد شاه قاجار د ټولو بندیانو
د مرګ او اعدام حکم وکړو - د ښاريو نه په هرات کې څه خوراک
نه وو نو وزیر یار محمد خان ښځو او ورو ته اجازه ورکړه چې له ښاره
ووځي او زر ونه غیر جنګي خلک له ښاره ووتل خو محمد شاه هغه ټول
خراسان ته تبعید کړه او هغه یې ایران ته ولېږل ، افغانانو د پخوانی
ملي تکتیک په اساس یې په ګوریلا ( داړو ) شبخوني جنګو ته یې
لاس پورې کړه او د شېر محمد خان په مشرۍ د ایراني فوځ نه (۶۰۰)
آسونه وتښتول او بوی تلل او د شکیبان د کلي خلکو په تربت شیخ جام
کې د ایراني لښکر د اذوقې کاروان تالاکړو او په میمنه کې هم زړه وړو
ازبکو د اصف الدوله ایراني په لښکر حملې وکړې او ماتې ته یې مجبور
کړه او هزاره خلکو او جمشیدي قوم د اصف الدوله په شاتللو عسکرو ته
په لاره کې ډېر تاوانونه واړول او مضراب خان د میمنې حاکم شېر محمد خان
هزاره او ز ماغان جمشیدي او د فیروزکوه شاه پسند خان او -
خلیفه عبدالرحمن ترکمان سره د خپلو خپلو ډلو د (۱۲) زره تنو په شمار
سره ټول شو چې سواره او پیاده پکې وو او د ایراني د ښمن په طرد
کولو او شړلو کې سره یو لاس شو او علي قلي طوره د خوارزم حاکم

هم يو زر سواره راوليږل او د قندهار نه هم يو زر تنه دافغاني لښکر کومک ته راور سېږل د خوارزم د حاکم په کومکي لښکر او د قندهار بينه په راغلو کومکي دلو افغان قومي لښکر لا قوي شو او ايراني لښکر يې په مخه واخېست خو په جنګ کې د قندهار خلک اکثره و وژل شو او محمد شاه امر وکړ چې د سرونو نه يې کله منار جوړ کړي او يو تن يې پرېږدي چې قندهار ته داخبر ورسوي . د کرخ خلک چې د هرات د قحطۍ نه خبر شو نو ياغي شول او غله يې قوله کړه او هرات ته يې د دېرو تا وانو په بدل ور ورسوله او دا کار آن د جنګ د خلاصون پورې روان وو ، روسانو ډېره بيړه کوله چې هرات دې ژر ايرانيان ونيسي - محمد شاه د هرات په ښار دلوي حملې امر صادر کړه خو افغاني علماو د ايرانيانو دې تيري ته ناجايز جنګ او افغاني مدافعينو ته مجاهدين او د هغوی جنګ ته يې د جهاد فتوا ورکړه افغانانو دروازې مېرته کړې او افغانان په ايراني فوځ پسې ور ووتل او په ايراني لښکر کې يې بې درېغه مرګ ژوبله وکړه او د ېرلوی لوی افسران يې پکې ووژل او محمد شاه قاجار په شاتللو ته مجبور شو او الله ناکام وګرځېده او په لاره کې يې د افغانانو کلي تالا لاترغه کړه - په دې وخت کې د انګرېزانو بحري لښکر هم د « خارک » جزيرې ته راورسېدلي وو د ايران په ماتې افغانانو يو ځل بيا دا ثابته کړه چې افغانان خپله آزادي او استقلال

ساتلی شي او پردي متجاوز سره د زور او قوت په خپله خاوره کې نه مني او آخر يې ماتوي - د هرات دې دفاع ته دد دنيا خلکو په وسطي آسيا کې د افغانانو د ايو نظامي شهکار ګڼلو او انګرېزانو ترې دخپلې ګټې دپاره سياسي داستانونه جوړ کړه چې دالوی کار يې دخپلې پاليسۍ او تدبير نتيجه بنودله ، خونه ! داعحض دافغانانو دخپلو يې مثالو قربانو برکت وو چې پردي ايراني لښکر يې ماتې ته مجبور کړه - او ورو سته يې انګرېزانو ته هم خپلو جنګونو کې درس ورکړه - افغانانو په (۱۸) اتلسمه پېړۍ کې تل د ايرانيانو په مقابل کې دوستانه او بې طرفانه روېش اختيار کړی وو او په خصوص کاله کې يعنې (۱۸۰۶م) نه تر (۱۸۵۶م) پورې يو افغاني حکومت هم د ايران په داخلي چارو کې څه ګرې نه دي وهلي او ايرانيانو اته وارې په افغانانو نظامي تجاوزونه او تيري کړي دي او بېرته په ماتې تللي دي .

دا فغان او انګليس د لومړي جنګ په وخت کې چې وزير يار محمد خان وليدل چې انګرېزانو په افغانستان حمله وکړه او شاه شجاع ورسره ملګری دی له دې وېرې نه يې چې شهزاده کامران د شاه محمود - زوی او د شاه شجاع وراره دی چېرته د انګرېزانو سره جوړه ونکړي او هرات ورته ونه سپاري شهزاده کامران يې لومړی بندي او بيا يې په (۱۸۴۲م) کې ووژلو او دا مېرني وزير يار محمد خان هم هغه وخت

چې د قندهاري سردارانو سره يې جګړه وه او سردار شیرعلي خان ته يې ماتې ورکړې وه په (۱۲۶۷ هـ.ق) او (۱۸۵۰م) کې نا روغه شو او هرات ته راستون شو او په رباط میرکې وفات شو او په هرات کې د جامي د مقبرې سره ښخ کړی شو او په هرات یې ځوی. سعید محمد خان حاکم شو خو هغه د کار سړی نه وو او د حکومت لیاقت یې نه درلوده نو خلکو سردار کهندل خان د قندهار نه را وغوښت هغه راغی فراه او اسفزاري هم ونیول او هرات ته را ورسیده خو د ایران حکومت مداخله وکړه او دیار محمد خان وزیر د ځوی پلوي یې وکړه او فوځونه یې هرات ته را ولیږل د قندها سردارانو کهندل خان او ورور یې د ایران سره د پخوانۍ دوستۍ پت ساته یې له جنګ او جګړې یې هرات پرېښوده او قندهار ته لاړه او هرات بیا سعید محمد خان پلاس ورغی خو د خلکو دی خوښ نه وو سعید محمد خان د ایران لښکر ... ولیږلو خو خلک را پا څېدل او نایب عیسیٰ خان شهزاده یوسف ابدالي د سردار قاسم ځوی د فیروزالدین نمسی یې د مشهد نه را وغوښت او په (۱۸۵۵م) کې یې هغه د هرات حاکم کړو او سعید محمد خان یې اعدام کړو او ایران بیا د سعید محمد خان د انتقام اخیستو په بهانه هرات ته لښکر وکړو نایب عیسیٰ خان د امیر دوست محمد خان او کابل نه امداد او کومک وغوښت خو هغه هم د خپلو قندهاري ورونو په شان

د کومک نه پوره وکړه نو نایب عیسی خان لاچار شو او شهزاده ـ
یوسف یې د ایران لښکر ته د صلحې د پاره ور ولېږلو خو ایراني قوماندان
مراد میرزا شهزاده یوسف ووژلو او د هرات محاصره یې نوره هم
پسې ټینګه کړه عیسی خان هم ټینګ نه شو او ایرانیانو ته تسلیم شو
او مراد میرزا هغه هم په ټګۍ ووژلو او هرات یې ونیولو خو چې
وای ورېدل چې د انګریزانو بحریه بوشهر ته را ورسېدله نو په
منډه یې هرات پرېښوده او ایران ته وګرځېده ـ سردار سلطان
احمد خان د سردار محمد عظیم خان ځوی د امیر دوست محمد خان ـ
وراره او زوم، چې د افغان او انګلیس د لومړي جنګ نه وروسته
د دوست محمد خان نه خفه شوی وو او ایران ته تللی وو او ایران
کې اوسېده هغه د ایران د حکومت په صلا راغی او د هرات حکومت
یې پلاس کې واخیست چې د (۱۸۵٦م) نه تر (۱۸٦۲م) پورې هرات
د هغه پلاس کې وو ـ د امیر دوست محمد خان د سلطان احمد خان
حکومت په هرات کې خوښ نه وو نو د فراه حاکم محمد شریف خان ته
یې امر وکړو چې په هرات پسې لښکر وکړي محمد شریف لښکر وکړو
او غور او ساغر یې لاندې کړو خو سردار سلطان احمد خان ور ته
ټینګ شو او مخ په فراه ورغی او په (۱۸٦۱م) کې سلطان احمد خان
د فراه ولایت هم ونیولو، امیر دوست محمد خان چې خبر شو نو زر
یې په هرات پسې لښکر وکړو سلطان احمد خان هرات ته بېرته را

ستون شو او په هرات کې يې د قلابندۍ تعبيه وکړه امير دوست محمد خان راغی او په کال ۱۸۶۲ م، کې هرات قلابند کړ خو په دغه وخت کې لوړی د سلطان احمدخان ښځه او بيا دی هم وروسته مړ شوه او په گازرگاه شريف کې ښخ کړی شو د هغوی د تدفين په ورځ د جنگ متارکه او صلحه وشوه چې مړی ښخ شو نو بيا به جنگ وو د سلطان احمدخان د مرگ نه پس يې ځوی شهنوازخان په هرات حاکم وو او د امير دوست محمدخان سره جنگېده خو آخر امير دوست محمد خان هرات فتح کړ او شهنوازخان بندي شو او شپږ ورځې پس پسې امير دوست محمدخان هم وفات شو او په هرات کې ښخ کړی شو.

# د ابدالي دولت په وخت کې د افغانستان تولنيز حال

---

د لوی احمد شاه بابا او تيمور شاه په زمانه کې ۱۴۵۱ کاله د افغانستان کې نسبتاً څه آرامي او امنيت وو او د افغانستان مرکزيت هم پيدا کړی وو او تجارت او زراعت هم وده کړې وه او علم او فرهنگ هم په پخواني زاړه اساس د څه نه څه خو وو او په مدرسو کې به په زاړه اساس درس او تدريس کېدلو چې د انحطاط د دورې يادگار وو، په دغه وخت کې په نوره دنيا کې برق او بخار او

چاپ خاني پيدا شوې وې او نوی انکشاف منځ ته راغلی و، او د انسانانو په ژوندکې ډېر بدلونونه شوي و، خو د زمان شاه په وخت کې بیا په افغانستان کې فیودالي جنګونه پیل شول او د انکشاف لاخه کوې چې زاړه سیاسي او علمي او اقتصادي مؤسسات هم د منځ نه لاړل او د انحطاط او تنزل د وړ راغله او افغانستان په ((۱۹)) قرن کې د اروپایی قومونو څخه کوم چې د آسیایی قومونو نه هم ډېر وروسته پاتې شوا و په شلم قرن کې هم افغانستان د وروسته پاتې قومونو نه یوه نمونه وه چې په ټوله دنیا کې موجوده وه.

# په افغانستان کې د انګلیسي دولت سیاست

## انګلیس :

د انګلستان اقلیم یخ او زمجن دی د خلکو احتیاجات ډېر دي. او په تنګسه کې دي. لومړی «سلتیان» او بیا جرمنیان او سکاندویان ور ته راتلل. انګلستان د اوسپنې او د اورګټې د کانونو مهم مملکت دی او سید ونکو به یې تر ((۱۵)) قرنه پورې په بحر شمال کې د خلکو او تولو قاموتو کشتیو لوټلې - ورو ورو په تجارت ونښتل او صنعت ته

یې هم پام شو. انگلیسیان عملي خلک دي او رئیالست، واقعیت بین، دي او سوړ او غمجن طبیعت لري بلکه چې هوښیاران او عالمان د اروپایي قومونو په باب ویلي دي : د انگلیسیانو غایه (مطلب، حسن، ښکلا) نه ده بلکه «حقیقت دی» او د حقیقت معنی هغوی ته هغه څه دي چې د دوی په گټه وي. انگرېزان د قوت او قدرت ډېر خواهشمند او دلدادہ دي او کار او لټون د قدرت د حصول د پاره د دوی هدف دی ځکه چې دوی شرونډ محض لوبونې نه گڼي بلکه جدي یې بولي. او د طبیعت د سختیو سره مجادله کوي. خو د کامیابۍ او دولتمندۍ د پاره نور خواران او کمزوري سپکوي او شتمنو ته یې اخلي د وی دوی په مقابل کې یخ او کبرجن دي خو په خپلو منځو کې او اجتماعي چارو کې د یو بل سره تعاون او تساوند کوي او د انفرادي مناسباتو کې شریف او باناموسه هم دي. خو حاکمه طبقه یې په بین المللي مناسباتو کې سنگدل، ظالم، بې زړه سوریه، غولونکي او بې وفا دي. د انگرېزانو دولت لږ وخت مجبور شوی چې د خپلې جزیرې نه د فاع وکړي ځکه چې د بحر کمربند له دوی نه تاو دی او د ښمن ته یې لرې منع کوي :

نو ځکه بین المللي جنگونو کې د دوی گډون د خپلې جزیرې او وطن د دفاع د ضرورت د پاره نه بلکه د حرص په غرض وي. او جهانگیري او دولت گټه او شته غواړي ځکه چې د وی وایي خواري او فقر د دوی په نظر د جنایت او د نایت سره برابر دی او د گناهونو سرچشمه

يې بولي او د شتمنيو د حصول دپاره ظلم او تېري او فريب مباح گڼي د دوی کاريگرۍ او صنعت او تجارت د ملتونو د استهلاک او ـ استثمار په لار کې د دوی لار بشود دی. دوی په اتلسمه پېړۍ کې په آسيا او افريقا او امريکا او استراليا کې تېري او تجاوزونه کړي دي او د ملتونو د استثمار دپاره د اعتدال د حدو نونه وړ تېر شوي دي او ميليونونه خلک يې خوار او ناتوان او فقيران کړي دي او غلامان يې ترې جوړ کړي او حکراني يې پرې کړې ده د ملکي الزابيتي په وخت کې به ويلې شو چې ايرلنډيان بايد د لوږې مړه شي او دا د دنيا د خلکو عقيده ده چې انگرېزانو په کاناډا کې سور نسل او نژاد ورک کړو او هندي هم ولوټلو او تالا يې کړو. د انگلستان پارلمان «شورا» چې دار و پاڼې پارلمانونو مور گڼلى شي څه وخت چې د اسکندريه د دوو لکو اوسيدونکو ښار د انگرېزانو ار د و بمبار کولو او څه وخت چې د کابل بالاحصار انگريزي لښکر ورانولو او سېزلو نو د دوی پرې د اختر په شان خوشحالي کولې ـ د انگلستان فردي آزادي او حکومتي متانت د صنعت ترقي او تجارت علمي او فلسفي ادبي او هنري مخ تگونه خو په ټوله د نيا کې مشهور دی خو ورسره د دوی زور او تېری هم د نيا والو ته ښکاره دی.

# هند ته دانگرېزانو راتلل

د انگرېزانو خپل تاریخ هم د جنګ او جګړو نه ډک دی هند ته لومړی وار پرتګالیان راغلي و وچې مرکز یې په ګوا کې و و بیا هالنډیان او بیا انګلیسیان او فرانسویان او ډنمارکیان هند ته راغلل خوانګرېزانو په (۱۶۰۰م) کې د شرق الهند کمپنۍ تشکیل او تاسیس کړه او په تجارتي بهانه هند ته راغلله او په سورت کې مرکز ونیوه (او سورت د هند غربي ساحل ګټلی شي په (۱۶۱۴م) کې جیمز اول دانګلستان باد شاه یو چپل نماینده د «سر توماس رو» په نوم د مغلي بادشاه جهانګیر دربار ته د سفیر په توګه راولیږلو او د تجارتي ارتباط غوښتنه یې کړې وه.

په (۱۷۰۰م) کې انګرېزانو د «شرکت متحده هند شرقي» جوړکړو او د هند سره یې د تجارت د انحصار حق په لاس راوړ دانګرېزانو کمپنۍ په کال (۱۶۳۹م) کې مدارس د کرناټک د راجا چند راګیري نه په قیمت واخیست او د سنت جارج قلعه یې پکې جوړه کړه او د مدراس محلي استوګن ځایونو ته یې په لومړي ځل د توپ پوستکو بنار ویل پیل کړه او هلته یې دار وپا یانو د نفوذ او امتیاز اعلان یې وکړو په (۱۶۴۰م) کې د شاه جهان شهزاده بیګم په اور وسوله او د-

کمپنۍ د اکترانو هغه تداوي کړه او د هغې په بدل او حق الزحمه کې
یې د مغلي حکومت نه د گنگا په خوله کې (هوگلي) واخیست او ورپسې
یې نور درې ځایونه واخیستل چې د هغې نه یو کلکته وه، بمبیي
خو لا د غه وخت د پرتګال پلاس کې وه خو څه وخت چې چارلس دوم
انگریز چې د پرتګال د باد شاه د لور سره واده وکړو نو بمبیي ورته
په (۱۶۶۲م) کې د پرتګال باد شاه په جهیز (نرورې) کې ورکړه
شپږ کاله وروسته چارلس بمبیي په عوض د لسو پونډو کې د کال
په اجاره کمپنۍ ته ورکړه په (۱۶۴۰م) کې کمپنۍ په کلکته کې خپل
تجارتي مرکز پرانستلو - په (۱۶۸۹م) کې له دې آمله چې کمپنۍ د
هند په داخلي چارو کې مداخله کړله د هند حکومت په کمپنۍ حمله
وکړه ځو تنه د کمپنۍ نه مړه شو او څه یې یرغمل ورکړه او د بیا
د پاره یې وعده وکړه چې د هند په داخلي چارو کې به گوتې نه وهي
(سورت)، تړې ومیتول شو او بمبیي محاصره او قلا بند شو نو کمپنۍ
ټینګه معاهده وکړه چې د هند په داخل کې به بیا مداخله نه کوي
او صرف په تجارت به مشغول وي بل کال ته کمپنۍ په کلکته کې د
سنت ویلیام قلعه جوړه کړه او په بنگال کې به یې هم محلي حکومت
ته د تجارتي ځایونو کرایه او اجاره ورکوله په دې وخت کې هالینډ
هم په هند کې تجارتي مرکزونه لرل او فرانسه هم په پانډیچري او
چندرانیگو کې تجارتي مرکزونه لرل او د انګلیسانو او فرانسویانو

د تجارتي مرکزونو رئيسان به د دغه ځای د گورنر په عنوان
یا د بدل ، او د يو بل سره په (سيالۍ ، او رقابت کښې وو . او پس
د (۱۶۴۴م) نه چې په اروپا او هند کښې د فرانس او انگليس
جنگ جوړ شو او مدراس فرانسې فتح کړو او په (۱۶۴۸م) کښې
د دواړو حکومتونو صلحه وشوه او مدراس يې بيرته انگريزانو
ته ورکړه شوه خو رقابت لا د دواړو په منځ کښې پاتې ووچې آخر
د انگريزانو په قطعي فتحه منتج شو د انگلستان د کمپنۍ د تجارت
انحصار په هند کښې (۲۱۳) کاله عمر وکړو او بيا آزاده شوه او کمپنۍ
عملاً بې رقيبه (بې سياله) وه او آخر وکړی شوچې د تجارت د
شکل نه د جهانگيرۍ په شکل کښې را ښکاره شي په دغه وخت کښې د
هند حکومت فاسد او وران شوی وو او مملکت په څو برخو ويشل
شوی وو مثلاً د اباسيند دچيپي غاړې نه تر ستيلج پورې علاقه
باندې (پنجاب او ملتان او کشمير) باندې د افغانستان حکومت مسلط
وو او په راجپوتانه باندې د راجپوت راجه گان قابض وو او په
اوده باندې د شجاع الدوله حکومت وو او په بهار او بنگال خو
د نواب علي وردي په قلمرو کې وو او منځنی هند د مرهته و په لاس
کې وو او جنوبي هند د دکن د نظام په لاس کې وو چې د حکومت
مرکز يې په دکن کې په حيدرآباد کې وو او د نظام د حکومت
په جنوب کې په ميسور کې د مشهور سلطان حيدرعلي حکومت وو،

او په شرق کې د کرناټک حکومت وو چې سربراه یې نورالدین وو.
په بنګاله دا ټول ریاستونه او محلي حکومتونه د بابري شهنشاهیت
تابع وو چې مرکز یې ډیلي وو او ځینې ریاستونه یې آزاد او خپلواک
وو. د انګریزانو حاکمې طبقې چې دا د سرو زرو مرغه هند په
دې حال کې ولیده نو ځان یې د هیڅ معاهدو او وعدو پابندنه
ګڼلو او غوښتل یې چې دا د سرو زرو مرغه هر څنګه چې وي په
لاس کې راوړي او ځلوېښت میلونه انګریزان په ځلور سوه میلونه
هندي ملت باداران او آغایان کړي - مدراس چې انګریزان ورته
راغلي وو او خپل تجارت یې له دغه ځایه شروع کړی وو د خپل
سیاسي فعالیت مرکز یې هم مدراس کړ او سیاسي فعالیت یې هم
له دغه ځایه پیل کړه - د بنګال بادشاه سراج الدوله چې دعلي وردي
په ځای ناست وو د دغه نه یو مامور تښتیدلی وو او کمپنۍ ته
یې پناه وړه وړې وه په (۱۷۵۶م) کې سراج الدوله د کمپنۍ نه خپل
مامور وغوښت خو کمپنۍ د سراج الدوله خواهش رد کړ او سراج الدوله
د کمپنۍ دا کار په خپل داخل کې ګوتې وهل وګڼل نو په کلکته یې
حمله وکړه او کلکته یې رالاندې کړه او (۱۴۶) تنه انګریزان یې
هم بندیان کړه چې پرته د (۲۲) تنو نور په بندي خانه کې د خرابي
هواله کبله مړه شو، انګریزانو خپل فوځ د اډمیرال واټسن او کرنل
کلایو په مشرتابه په سراج الدوله پسې له مدراس نه ور ولیږل

او آخر یې سراج الدوله ته ماتې ورکړه او علت یې دا وه چې د سراج الدوله پوه صاحب کار میر جعفر چې خیانت یې کړی وو او د انگریزانو سره یو لاس شوی وو سراج الدوله مات شو او وینول شو او د میر صادق د میر جعفر د ځوی په حکم ووژل شو او مال دولت یې د کمپنۍ او میر جعفر په منځ کې سره وویش شو او میر جعفر د کلکتې خوا وشا ځمکې انگریزانو ته ورکړې او پخپله د انگریزانو تابع بادشاه شو، وروسته میر جعفر هم د پرنگیانو د رویش نه خفه شو د هالنډیانو سره یې جوړه وکړه او د پرنگیانو په ضد پاڅېدل خو پرنگیانو میر جعفر او ملګري هالنډیان یې مات کړه او نوره وېره ځمکه یې په بنگال کې هم لاندې کړه وروسته پرنگیان د میرقاسم د میر جعفر د ځوم (داماد) سره جوړه وکړه او میر جعفر یې د بنگال د تخت نه کوز کړه او جعفر یې د هغه په ځای کېناوه خو دري برخه ځمکه د بنگال د بردوان، چټاګانګ او مدناپور، د پرنگیانو کمپنۍ په پیسو واخیسته میرقاسم په دې کار د پر خفه شو او د پرنگیانو جنگ ته راپاڅېده او انگریزي لښکر ته یې ماتې ورکړه پرنگیانو بیا جعفر میدان ته راوست او خلک یې د هغه د بیرغ لاندې د میرقاسم په خلاف پاڅول - میرقاسم د نواب شجاع الدوله د اوده د بادشاه او د شاعالم (علي گوهر)، مغلي د ډهلي بادشاه سره خبرې وکړې او د دریو وارو یوه اتحادیه جوړه شوه او د پرنگیانو په مقابل کې راپاڅېدل خو په

د ۱۶۶۴م ، کې پرنګیانو اتحادیې ته ماتې ورکړه ځکه چې د پرنګیانو منځ نارېه وسلې وې او د هغوی سره نه وې - او د اتحادیې په منځ کې د درځ راغی او بدګماني پیدا شوه او شجاع الدوله میر قاسم وهڅوه او شته یې تری ضبط کړه او د امداد په طمعه شجاع الدوله بنګش نواب د فرخ آباد ته او بیا نورو افغاني سردارانو ته ورغی او پرنګیانو یې تعقیب کاوه - شاه عالم د دهلي بادشاه چې د دې اتحادیې بدحال ولیده نو د انګریزانو سره یې جوړه وکړه او بهار او اړیسه او بنګال یې د انګستان بادشاه ته د کال په دوه نیم میلونو روپو معاش په بدل کې ورباښه او دی بې قلمروه بادشاه کېناست او - انګریزانو د میر جعفر ځوی برای نام په بنګال مقرر کړ او اصلاً یې انګریز ګورنر پکې واکدار وو - دا ټول حادثات په داسې وخت کې وشو چې احمد شاه بابا لا ژوندی وو او له دې نه دري کاله مخکې یې دهلي لاندې کړی وو پرنګیانو په خپلو چلونو او زور د هند اکثره برخې رالاندې کړې چې د هند په تاریخ پورې اړه لري او موږ د افغانستان متعلق تاریخ سره دلچسپي لرو او زموږ مُدعا هم داده او هغه راځو هغه وخت ته چې پرنګیان پنجاب ته را ننوځي او د افغانستان سره یې مستقیماً تماس پیدا کیږي.

په (۱۷۹۹م) کې زمان شاه افغان بادشاه پنجاب ته راغی او اراده یې درلوده چې هند ته د پرنګیانو د زور زیاتي نه نجات ورکړي

او په لاهور کې یې د هندو مسلمانانو او سکهانو د اتحاد یې کوشش وکړو او رنجیت سنګ یې د پنجاب ګورنر مقرر کړو او زمانشاه بېرته کابل ته وګرځېد او سبب یې دا وو چې د افغانستان په داخل کښې اغتشاشونه پیدا شوي وو . پرنګیان د افغانستان نه په وېره کې وو نو اته واري یې پنجاب ته خپل نماینده ګان سره د تحفو لېږل د انګریزانو لومړی نماینده منشي یوسف علي وو او دوهم نماینده یې (چارلس مټکاف) وو او دا خبرې او واقعات د پوان اسرار د رنجیت سنګ سوانح نګار په خپل کتاب کې لیکلي دي او دا واقعات د (۱۸۰۰م کال نه واخله تر ۱۸۰۸م کال پورې) پېښې شوي دي انګرېزانو د سکهانو دولت ته په (۱۸۰۳م) کې (۴۰) نفره افسران ورکړه .

# د رنجیت سنګ بادشاهي

کله چې انګرېزانو د سکهانو دولت ته (۴۰) نفره افسران ورکړه چې د سکهانو عسکر منظم کړي رنجیت سنګ د زمان شاه د سلطنت د مقام نه د خلع کېدو نه پس پخپله د پنجاب د بادشاه په حیث د استقلال اعلان وکړو او خپله سکه یې هم ضرب کړه ، رنجیت سنګ (۱۲) کلن د پلار نه پاتې شو او د هغه جانشین شو او په (۱۷) کلنۍ کې خپله مور ووژله او په (۱۹) کلنۍ کې د پنجاب ګورنر د زمان شاه له خوا

مقرر شو. د زمانشاه د خلع نه پس افغانستان په خپلو منځني جګړو او شورشونو اخته وو او پنجاب ته يې د توجه مجال نه شو پیدا کولی سکهانو ۱۸ زره عسکري اردو چې (۳۲۰) توپونه یې هم درلود ترتیب او تنظیم که. په (۱۸۰۹م)، کې شاه شجاع فراري او مخلوع پاد شاه د رنجیت سنګ سره ولیدل او په (۱۸۱۰م)، کې شاه شجاع لاهور ته ورغی. رنجیت سنګ چې د افغانستان د داخلي اوضاع نه خبر شو نو زړور شو نو په (۱۸۱۲م)، کې د اټک قلعه د افغاني حاکم نه ونیوله او په (۱۸۱۸م)، کې ملتان او په (۱۸۱۹م)، کې کشمیر او په (۱۸۲۱م)، کې ديره غازي خان او اسمعیل خان د افغانستان نه بیل که او ويې نيول دا دامي وخت وو چې شاه محمود او فتح خان په غم اخته وو او خپل اقتدار يې لتاړه او په افغانستان يو دول ملوک الطوايفي وه او د رنجیت سنګ دځنيزي قدرت پکې نه وو رنجیت سنګ ورځ په ورځ قوت پیدا کولو په (۱۸۲۲م)، کې د فرانسې د ناپلیون د ماتې شوې اردو نه یو افسر لومړی ایران او بیا کابل او وروسته پنجاب ته راغی او رنجیت سنګ د غه افسر د ځلورو غونډونو قوماندان او جرنیل مقرر کړو او په دغه قوت رنجیت سنګ د اباسیند په بنيغاړه د پېښور علاقه رالاندې کړه د دې فرانسوي افسر نوم ونتورا وو چې په (۱۸۲۲م)، کې رنجیت سنګ حضور ته راغلی وو. په (۱۸۳۲م)، کې د انګرېزانو یرغلګر فوځ د

د سرکلو مارټین وید په صحرتابه د سند نه پنجاب ته راغی ، رنجیت سنګ پخپله د ستلج په غاړه د هغه استقبال وکړه او امر یې وکړو چې د پنجاب فوځ دې ټول بسنتي زېړې جامې واغوندي - رنجیت سنګ مارټین وید د تلقین لاندې راغی او مارټین وید د رنجیت سنګ نه تر مرګه پورې بېل نشو ، مارټین وید د افغانستان سخت دشمن وو او پر فساد یې سرې وو او اخر په ۱۸۳۸ م ، کې رنجیت سنګ د لاهور دربې جانبه معاهده چې د افغانستان مخلوع پادشاه «شاه شجاع ، رنجیت سنګ او انګرېزانو په منځ » کې وشوه لاسلیک کړه .

# د رنجیت سنګ مرګ

ورپسې زر د ۵۷ کلنۍ په عمر رنجیت سنګ مړ شو او ځوی یې کړک سنګ په پنجاب کې پادشاه شو خو هغه یو کال باد شاهي وکړه او په ۱۸۴۰ م ، کې مړ شو او ځوی نونهال سنګ یې په ځای کېناست خو په تخت باندې د کېناستو د پاره چې شاهي دربار ته ورتللو د دروازې منارې پرې راولوېده او په سر یې ولګېده او مړ شو موریې رانی چندرکور ، ملکه او د کړک سنګ په تخت کېناسته خو خلور میاشتې دولم یې وکړه او بیاخپلو درباریانو بندي کړه او په بند کې ووژله شوه او د رنجیت سنګ دریم ځوی شېرسنګ بادشاه شو خو دبادشاهي

په څلورم کال (۱۸۴۴م) کښې هغه هم خپلو درباریانو (هیان سنگ وزیر اجیت سنگ او ولهاسنگ) دلاهور نه د باندې په یوه تفریح گاه کښې و وژلو. هیرا سنگ د شیر سنگ ځوی فوځ را وگرځاوه او د هیان سنگ او او اجیت سنگ یې و وژلو، فوځ د رنجیت سنگ دریم ځوی دلیپ سنگ بادشاه کړو او هیرا سنگ یې وزیر شو خو وروسته یې دا وزیر یې هم مړ کړو او ځای یې لعل سنگ خزانه دار ته ورکړو. لعل سنگ تحریک شو چې د سکهانو لښکر باید د ستلج نه پورې په هند حمله وکړي چې مصروف وي او تانه یې پام نشي لعل سنگ هډغسې وکړه او لښکر یې په هند پسې وکړو او په نومبر (۱۸۴۵م) کښې د پنجاب لښکر د ستلج نه ورپورې شو او انگریزانو دا بهانه له خدایه غوښتله، دلارډ هارډ نگ گورنر جنرال انگلیسي لښکر یې مخې ته ودرېده په لومړي جنگ کښې یې د پنجاب د لښکر (۱۷) توپونه او په دوېم جنگ کښې (۷۳) توپونه سره د لعل سنگه لاندې کړه او په دریم جنگ کښې (۵۰) توپونه ترې انگریزانو لاندې کړه او په څلورم جنگ کښې مشهور د پنجاب جرنیل شام سنگ هم ووژل شو او دا ټول جنگونه په دریو[۳] هفتو کښې (په آخر د ۱۸۴۵م) نه د ۱۸۴۶م پورې وشو او د پنجاب مشهور لښکر ټوله درنه توپخانه او زرونه فوځیان دلاسه ورکړه دا انگریزانو لښکر لاهور ته راورسېد او چنل قدیمي دوست سکهه دولت ته یې ماتې ورکړه او ټول پنجاب یې د ستلج او راوي سیند ونو په منځ کښې

د نیولو او د افغانستان مربوط کوهستاني علاقي چي سکهانو نیولي وي
را لاندي کړي - او ریذډنټ او اسسټنټ ریذډنټ یي پکي مقرر کړه
او د پنجاب اداره انګریزانو په خپل لاس کي واخیسته او په افغاني -
خاوره پیښور او بنو او دیرو کي هم جارج لارنس او هربرټ مقرر شو
چي وروسته هم دا جارج لارنس د هند ګورنر جنرال و ټاکل شو. پنجاب
د جنګ د روند غرامات انګریزانو ته ورکړه او د انګریزانو لښکر په
پنجاب کي ډیره شوخو په دري کاله موده کي چي د انګریزانو سخت
حکومت چلولو نو په افغاني ولایتونو او پنجاب کي خلکو پاڅون وکړه
او په چیچ هزاره کي خلک پورته شو شیرسنګ هم چپلي لښکري را ټولولي
په ملتان کي هم دوه تنه انګریزان ووژل شو جارج لارنس چي دا حال
ولید نو د خپلي ښځي سره په شاهدره کي د سردار سلطان محمد خان طلائي
ځای ته ورغی او هلته یي پناه واخیسته خو سردار سلطان محمد د وی
د واره سکهانو ته وسپارل خو سکهانو خپله کمزوري حس کړله نو د افغا
نستان د حکومت سره یي د سردار سلطان محمد خان په واسطه خبري -
پیل کړي او د امیر دوست محمد خان نه یي کومک وغوښت سلطان محمد خان
دوست محمد خان ته دا موضوع ولیکله او د ځواب په انتظار وو امیر
دوست محمد خان هم د افغانستان د خلکو نه ناچار شو چي غوښتل یي خپلي
ځمکي بیا تر لاسه کړي څه لښکري د پنځه زره تنو نه د سردار محمد اکرم خان
او سردار شمس الدین او سردار شاه دوله په مشرۍ کي د ګجرات جګړي

ته چې د اباسیند او جهلم په منځ کې وه ور ولیږل چې د سکهانو مرسته وکړي - شیر سنګ او چتر سنګ د کرنل هربرټ د فوځونو سره مخامخ وروچې مخکې په دریو جنګونو کې په ملتان کې ګټې کړې وې په (۲۴) فروري ۱۸۴۹ م کې جنګ جوړ شو او د اکرم خان لښکر مات کړی شو او شیر سنګ هم نهه بایللی وو او په راولپنډۍ کې انګریزانو ته تسلیم شو انګریزان د افغانانو او امیر دوست محمد خان نه په وېره کې وو خو خبر شو چې امیر دوست محمد خان د پیښور نه - جلال آباد ته لاړ او میدان په ګټه د انګریزانو پلاس کې ورغی او لارډ دلهوزی د پنجاب په مستقل دولت د فتح اعلان وکړ او دلیپ سنګ د رنجیت سنګ ځوی یې لندن ته تبعید کړ او په پنجاب باندې لارنس د چیف کمشنر په حیث مقرر کړی شو او کشمیر خود ګلاب سنګ په سازش لا مخکې د انګریزانو لاس ته ورغلی وو او د برطانیه عظمی دولت د افغانستان شرقي ګاونډی شو چې د افغانستان په تاریخ کې د انګریزي سیاست او فعالیت د پر دلخراش واقعات شته دی. او افغانستان سل کاله موده د پرنګیانو نه ډېر کړاونه او مصیبتونه ،جنګونه ، مادي او معنوي تاوانونه ولیدل - پرنګیانو یو پلو د افغانستان شرقي برخې ونیولې او د بله پلوه د ایران د قاجاري دولت سره د افغانستان د غربي برخو د نیولو د پاره سازشونه وکړل چې په نتیجه کې یې د خراسان ایالتونه له افغا

منستان نه بېل او ایراني قاجاري دولت د خپلې خاورې جز کړه.
افغانستان د هند په لارکې واقع وو هر زورگیر به چې د هند د نیولو د پاره راروان شو نو لومړی به د افغانستان د آزادي خواه ملت سره مخامخ شو او دې ملت به خپله توره او شهادت او زړه ورتیا ور ښودله، انگرېزانو د هند د ساتنې او د روس د خطر نه د هند د دفاع په غرض د افغانستان سره خاصه دلچسپي لرله او پټ او ښکاره یې دا کوشش وو چې د افغانستان حکومت نه او افغاني موجودیت لرې کړي او افغانستان انگرېزان قبضه او تصرف کړي او د روسانو مخنیوی وکړای شي د دې مقصد د پاره انگرېزانو رنگارنگ نقشې جوړې کړې او ډېر سیاسي فعالیتونه یې وکړل خو آخر یې د افغانستان د اشغال د پاره په (۱۸۳۹م) کې لومړی جنگ او (۱۸۷۸م)، کې دویم جنگ د افغانانو سره پیښ شو چې په دواړو جنگونو کې د پرنگیانو مغرور لښکر فوځ سره د زوره او قوته ماتې وکړه او د افغاني خاورې نه په ډېر ذلت او سپکاوي ووتل او افغانانو د خپلې خاورې د تمامیت او ملي نوامیس په خپلو یې بې شماره قربانو وساتل او آخر په (۱۹۱۹م)، کې خپل ملي استقلال هم له انگرېزانو نه واخیست د دې واقعاتو تفصیل او یاد د افغانستان په ټولو معاصرو تاریخونو کې شته دی او د هرچا له او د تاریخ د مینه وړو له نظره به تېر شوی دی او بیا بیا یاد به یې ضروري

نه وي دولت او په دې کتاب کې موږ د افغاني ملت هغه رشادتونه او میړانې ښودلې چې په تېرو وختونو کې د زورواکو او ظالمانو په مقابل کې کړي دي او هغه ظلمونه مو خلکو ته د ښکاره کولو کوشش کړی دی چې پردو زورګیرو ظالمانو په افغاني ملت کړي دي او د دې ملت د احیا او وړکاوي کوشش کړی دی او دا ملت د خپل قوت په زور له دغه بحرانونو نه وتلي دي او زموږ کوشش دا دی چې خلکو او راتلونکو نسلونو ته دا وښایو چې افغانانو یوازې په دې زمانه کې د روس د لوی جهاني طاقت سره جنګ نه دی کړی او ماتې نه ده ورکړې، بلکه هر کله او هر وخت یې د هر زورواکي او زورګیر سره جګړې او جنګونه کړي دي او آخر بریالي شوي دي او سنۍ تاریخي پېښې چې د دې زمانې د تاریخي مهمو پېښو نه دي په غوره ګڼو چې سږو سانو په (۱۳۵۲ هـ.ش) کې د داوُد خان په واسطه په افغانستان کې غنګه توطیه او کودتا وکړه او بیا غنګه پر دوه سوو سانو په (۱۳۵۷ هـ.ش) کې د نور محمد تره کي په واسطه کودتا وکړه او داوُد د منځ نه لاړ او سره د خپلې کورنۍ وژل شو او په (۱۳۵۸ هـ.ش) کې بیا نور محمد تره کی غنګه د منځ نه لاړ او حفیظ الله امین اقتدار په لاس کې واخیست

په همدغه کال (۱۹۷۹م) کال کې په (۲۷) د سپتمبر په میاشت کې روسانو ببرک کارمل چې د روسانو پلاس کې په ماسکو کې ژوندکاوه کابل

ته راوستل شو او حفیظ الله امین د منځه یوړل شو او روسانو
په افغانستان پوځي هوائي یرغل وکړو او په افغانستان د خپل
پوځي قوت په زور مسلط شو او یو لکو څلویښت (۱۴۰۰۰۰) زره
لږ و ډیر پوځ یې په افغانستان کې واچاوه او افغاني مسلمانان
هجرت کولو ته مجبور شو او څو میلونه افغانان له افغانستان نه
ووتل، دریو میلونه په پاکستان کې ځای کړه شو او یو نیم
میلون مهاجر په ایران کې ځای کړی شو او نور اروپا، امریکا
او ځینې نورو مسلمانو ملکونو ته په هجرت لاړل او افغانانو
د روسانو سره په جګړو پیل وکړو او نهه (۹) کاله موده یې
د روسانو سره سخت جګړونه وکړه او پخپلو بې مثاله قربانۍ یې آخر
روسان دې ته اړ کړه چې د افغانستان نه ووځي او د اپریل،
(۱۹۸۸م)، کال د جینوا معاهده یې بهانه کړه او د دغه کال د اګست
په میاشت کې د روس نیمائي پوځ له افغانستان نه ووتلو او د (۱۵)
فبروری (۱۹۸۹م) کال پوره د روس ټول پوځ له افغانستان نه په
تللو او وتلو مجبور شو د دې چې (۲۰) زره پکې مړه او څو زره پکې
زخمي شو او د ډاکټر نجیب الله یې چې د ببرک کارمل د لرې کولو
نه پس روسانو منځ ته راوستلی وو په واګه د مجاهدینو حملو ته
ورپېښ وو. مجاهدینو په مارچ کې (۱۹۸۹م)، کې خپل عبوري حکومت
جوړ کړو او جناب صبغت الله مجددي د مملکت صدر او عبدرب رسول سیاف

د حکومت صدراعظم وټاکل شو - او د عبوري حکومت لومړی غونډه په
افغانستان کې د پکتیا په ولایت کې په لسم د مارچ وکړه او په (۶) مارچ
۱۹۸۹م، کې افغاني مجاهدینو په جلال آباد خپله حمله پیل کړه - او
جنګ روان دی - موږ دا وروستني واقعات ځکه مختصر ولیکل
چې دا واقعات د افغانستان د انګریزانو سره د لومړي جنګ او دویم
جنګ او دریم د استقلال د ګټلو د جنګ قصې مفصلې زما په لیکلي
کتاب (د افغانستان لنډ تاریخ، کې او په "نولسمه پیړۍ کې د افغان
تاریخ څه برخه" زما په بل کتاب کې مفصلې راغلې دي، مبناغلي
لوستونکي دې لطفاً هغه ولولي او د نولونه وروستۍ برخه
د روس سره جنګ چې کله د افغانستان د اجنګ خلاص شي او
افغانان خپل هود ترسره کړي او په خپل وطن شي او خپل ملي
او اسلامي حکومت جوړ کړي انشاالله نه او نور محترم لیکوالان
به د برخه ولیکي او لوستونکو ته به مفصل مواد پلاس ورشي انشاالله
په دې کتاب کې موږ د افغان ملت د تېرو زمانو د مجاهدو
او مبارزو او پردو سره د مقابلو ذکر او یاد کړی دی، له دې امله
چې محترم لوستونکي پوه شي چې د تاریخ په اوږدو کې دې ننګیالي
ملت د هر یرغلګر سره مقابله او مجادله کړې وه او اخر -
بریالي شوي دي، دا یوازې روس نه دی چې د افغان میړني ملت د
جنګ جګړو سره مخامخ او زرونه عسکري تلف شوي دي، د هغې

زماني هر ورور چې د افغانستان د ښيولو فکر او خيال کړی دی د سر په کاسه کې يې او به څکلي او بېرته ناکام په شاتللی دی او د دې مسلمان افغان ملت د مېړانې قصې پاتې دي. موږ ټوله د الله جل جلاله د افغان ملت د بقا او فتحې په دوعا بس کوو. نَصْرٌ مِّنَ اللهِ وَفَتْحٌ قَرِيبٌ ط

والسّلام.

۳۰ مارچ ۱۹۸۹م کال

م ۰ ج «سيال» مومند

# منڼه

دا به بې انصافي وي که زه د ټول اسلامي د ملي افغاني تاريخ د ترتيب او تدوين په سلسله کې جناب فاضل عالم بې ريا خوش خلق د ډېر مهربان دوست مولانا فضل منان صاحب د يو نيورسټي بُک ايجنسي مالک او منتظم هېرکم د جناب مولانا صاحب د فيضونو د کې ناستې پاستې په ماغونډې يو لې مايه چا کې د پښتنو د تاريخ ليکلو په باب څه همت را پيدا کړ او د غښې دا نه کار ته چې زما د وسې نه پوره ته وو او نه زما عمر او سن

او سال هم د اجازت نه کولو چې دا د روند کار به څنګه وکړی شم؟ - خو د لوی خدای جل جلاله په فضل او توفیق او د جناب مولانا فضل منان صاحب په ترغیب او تشویق ماغوندې یو کمزوري چا دومره د روند کار ته ملا وتړله او په هره مرحله کې د لیکوالو او محترمو دوستانو نه د راهنمائي طمعه لرم او اُمید کوم چې ما به یواځې نه پرېږدي او ما به په خپلو ګټورو مشورو سرفرازه کړي او زما په دې هغه د غه لیکو به تنقید نه برای تنقید - تنقید برای اصلاح وکړي او زما مټ به مضبوط او قوي کړی زما سترګې به د درنو لیکوالو د مرستو پلو ته تل انتظار کې وي په آخر کې د خپل درانه عالم فاضل مشفق مهربان د پښتو د خدمت په لار کې فداکار او سرباز مولانا فضل منان صاحب نه بیا بیا منته کوم او د ده مینه او محبت به تل زما په زړه کې وي که خدای جل جلاله او هم د خطاط خان بهادر «سرچوال» څخه ډېره منته کوم او د لوی خدای جل جلاله څخه یې د دنیا او آخرت کامیابي غواړم چې زما د کتاب په لیکو کې یې ډېر زحمت تېر کړی دی تل دې وي عالمان او علمي پوهان وي.

د لته د رشید او شریف خوان رشید صاحب د مکتبه سرحد د منتظم اعلی هم مشکور یم چې د کتاب په ترتیب کې یې ډېرې مرستې راسره کړې دي.

په ډېر احترام او درناوی
م. ج «سیال» مومند.
۱۹۸۹ ع کال.